# کندهار

د ۱۳۹۲ش کال شپږمه ګڼه

(دلو - حوت)

د کندهار د اطلاعاتو او فرهنګ ریاست دوې میاشتنۍ خپرونه













**اولسمشر کرزي په کندهار کي**

**د افغانستان د زراعتي علومو او ټکنالوژۍ ملي پوهنتون پرانیست**

# اولسمشر حامد کرزي په کندهار کي

## د افغانستان د زراعتي علومو او ټکنالوژۍ د ملي پوهنتون پرانیستنه وکړه

نیټه: ۲۶/۱۱/ ۱۳۹۲ش

کندهار – افغانستان: نن د افغانستان اولسمشر جلالتماب حامد کرزي له ورسره پلاوي سره کندهار ته د یوه ځانګړي سفر پر مهال د افغانستان د زراعتي علومو او ټکنالوژۍ د ملي پوهنتون پرانیستنه وکړه.

په یاده غونډه کي د افغانستان د اولسمشر جلالتماب حامد کرزي تر څنګ، د دوست هیواد هندوستان د بهرنیو چارو وزیر سلمان خورشید، د لوړو زدکړو وزیر ډاکټر عبیدالله عبید، د افغانستان د عامي روغتیا وزیري میرمن ډاکټر ثریا دلیل، په فرهنګي چارو کي د اولسمشر سلاکار زلمي هیوادمل، د افغانستان د کرهني وزیر، د افغانستان د بهرنیو چارو وزیر ضرار احمد مقبل، د ولسمشر سلاکار ډاکټر سپنتا، په هند کي د افغانستان لوی سفیر، په افغانستان کي د هند لوی سفیر، او د هندوستان د زراعتي ټکنالوژۍ مؤسس پروفیسر ډاکټر سوامیناتن، د کندهار والي پوهاند ډاکټر توریالي ویسا، د ولایتي شورا رئیس، اولسوالانو، تر زرو زیاتو سپین ږیرو او قومي مشرانو ګډون درلود.

یاده غونډه چي د سترو مراسمو په ترڅ کي پیل سوه، د غونډي په لومړي سر کي کندهار والي پوهاند ډاکټر توریالي ویسا د افغانستان اولسمشر او ورسره پلاوي ته د ښه راغلاست تر څنګ د یاد پوهنتون په اړه د معلوماتو ورکولو په توګه وویل: د افغانستان د زراعتي علومو او ټکنالوژۍ ملي پوهنتون د دوست هندوستان هیواد په حمایه او د کاناډا هیواد په مالي مرسته د کندهار په ترنک فارم کي د څلور نیم میلیونه امریکایي ډالرو په لګښت د دوو کلونو په اوږدو کي په لومړي ځل په افغانستان کي جوړ سو.

یاد پوهنتون د ۳۰۰ ښځینه او نارینه زده کوونکو له پاره لیلیه، دوه د دوه ړ خوړلو ځانګړي ځایونه، یو تخنیکي ورکشاپ، یو اداري تعمیر، د ټرینګ له پاره درسي خونه، ۳۰ درسي اطاقونه او مسجد په درلودلو د ۱۲۰۰ زده کوونکو ظرفیت لري.

کندهار والي د غونډي برخه والو ته د یاد پوهنتون په اړه د معلوماتو ورکولو تر څنګ وویل: "موږ د افغانستان د اولسمشر جلالتماب حامد کرزي تر قیادت لاندي (پاته دوقاییږ پر دریم مخ)






# کندهار

علمي، تاریخي، ادبي او ټولنیزه مجله

د امتیاز څښتن: د کندهار د اطلاعاتو او فرهنګ ریاست

دریمه دوره
د ۱۳۹۲ش کال شپږمه ګڼه (سلواغه - کب)
پرله پسې ۶۱ مه ګڼه

**څو ضروري یادونې**

- کندهار مجله اسلامي او ملي ګټو ته زیانمنې لیکنې نه خپروي.
- کندهار مجله د مجلې د ټاکنې لیکنې معیار سره سم د لیکنو په اصلاح کې د لاسوهنې حق لري.
- را استول سوې لیکنې بیرته نه ورکول کېږي.
- هره لیکنه د لیکوال خپل نظر څرګندوي.

**په هیواد او دباندې کې د مجلې بیې**

هیواد: ۲۰ - افغانۍ

پاکستان: ۵۰ - کلداري

**کلنی ګډون**

هیواد: ۱۲۰ - افغانۍ

پاکستان: ۳۰۰ - کلداري

نور هیوادونه: ۸۰ - امریکایي ډالره



پته
علامه حبیبي واټ
د اطلاعاتو او فرهنګ ریاست
د کندهار مجلې دفتر
ټلیفون: ۳۰۰۱۴۴۰

# فهرست

## ځېړنه


| | | | |
|---|---|---|---|
| ۱. | د افغانستان د زراعتي علومو او تکنالوژۍ ملي پوهنتون.... | ۳ | اداره |
| ۲. | شاهپور تېمور او شاهپور سلیمان د ستر احمدشاه بابا ...... | ۴ | ډاکټر عبدالرازق پالوال |
| ۳. | د ادم خېشکي پیر، شاه عیسی څوک وو؟ ........ | ۱۱ | استاد م. معصوم هوتک/کاناډا |
| ۴. | په معیاري پښتو کي د "اکثریت" او "اقلیت" بابولاله ...... | ۱۵ | محمدهارون خپل شعشعي/لندن |
| ۵. | د پښتو نظم ځیني توکي او اړخونه ........ | ۳۶ | استاد عبدالباري جهاني/امریکا |
| ۶. | د سومنات فتح ........ | ۵۷ | ډاکټر نثاراحمد صمد/کاناډا |
| ۷. | د روشن لال ملهوتره ژوند او آثار........ | ۶۵ | څېړندوي رفیع الله نیازی/کابل |
| ۸. | ما ته به دومره مینه څوک راکوي؟ ........ | ۸۱ | پیرمحمد کاروان/کابل |
| ۹. | شیخ عبدالحکیم کندهاری افغاني څوک وو؟........ | ۸۵ | فدا نظري/لندن |


## ترجمه


| | | | |
|---|---|---|---|
| ۱۰. | د سقراط تلپاته نظریات........ | ۸۸ | ژ/واحد فقیري/امریکا |
| ۱۱. | نوبل جایزه وړونکي ادیبان........ | ۹۴ | ژ/نثاراحمد آریا |
| ۱۲. | اغېزه ناکه مذاکره ........ | ۱۰۳ | ژ/سعید لودین/کاناډا |
| ۱۳. | د کابل پېغله (ناول) ........ | ۱۰۷ | ژ/ډاکټر نثاراحمد صمد/کاناډا |
| ۱۴. | د جبران خلیل جبران هنري ټوټې ........ | | ژ/احمدالله څرګند |


## شعرونه


| | | | |
|---|---|---|---|
| ۱۵. | هنر او ادب (اوسنی ادب)........ | ۷۵ | ترتیب: پردېس کندهاری |
| ۱۶. | د بنګړو شرنګ ........ | ۷۹ | ترتیب: مینه انتظار |


## خاطرې


| | | | |
|---|---|---|---|
| ۱۷. | د غره او د وره........ | ۱۱۶ | استاد م. معصوم هوتک/کاناډا |
| ۱۸. | وختونه او یادونه ........ | ۱۲۵ | هارون خپل شعشعي/لندن |
| ۱۹. | د عبدالرحیم هاتف لیکونه ........ | ۱۳۴ | اروابناد عبدالرحیم هاتف |
| ۲۰. | د غلو پر مېنه او نور بدوان........ | ۱۴۲ | ډاکټر عبدالرازق پالوال |
| ۲۱. | زموږ یو لایق استاد ........ | ۱۴۷ | ډاکټر نثاراحمد صمد/کاناډا |
| ۲۲. | شېرین عمر چي تېر یږي د رېغه د رېغه........ | ۱۵۰ | حاجي عبدالظاهر څرک |

د اداري یادانښت:

# د افغانستان د زراعتي علومو او ټکنالوژۍ ملي پوهنتون

د روان کال د سلواغې میاشتي پر ۲۶مه نېټه د افغانستان د اولسمشر حامد کرزي له خوا د افغانستان د زراعتي علومو او ټکنالوژۍ ملي پوهنتون په کندهار کي د یوې لویي غونډې پر مهال پرانیستل سو.
د غونډي په مراسمو کي د دوست هیواد هندوستان د بهرنیو چارو وزیر ښاغلي سلمان خورشید تر څنګ د افغان دولت د کابینې څو وزیرانو او د دواړو هیوادونو ځینو لوړ پوړو چارواکو هم ګډون کړی وو. د افغانستان د زراعتي علومو او ټکنالوژۍ دغه ملي پوهنتون په افغانستان کي لومړی پوهنتون دئ، چي تر دې مهاله د ټول افغانستان په کچه په کندهار کي پرانستل سو. په نوموړي پوهنتون کي به د ماسټرۍ په کچه لوړ تحصیلات تر سره کېږي.
افغانستان په سیمه کي یو له هغو هیوادونو څخه دئ چي د زراعت او کرهنې له پاره پوره مساعدوالی لري. د دغه پوهنتون پرانستنه به په مستقیم ډول د افغانستان پر زراعت او د دې مملکت پر کرهڼه اغېز ولري. د راتلونکي له پاره د افغانستان د کرهنیز سیستم د لا پیاوړي کېدو په موخه د دې پوهنتون له فارغینو او محصلینو څخه ډېره تمه کېدلای سي.
د افغانستان اولسمشر جلالتماب حامد کرزي یادي غونډي ته د خبرو په ترڅ کي د دې پوهنتون پرانیستل د علم او پوهي په ډګر کي یو ستر او خورا مهم ګام وباله او یادونه ئې وکړه چي په دې پوهنتون کي به د ټول افغانستان په کچه د ماسټرۍ تر کچې پوري رسېدلي کسان زدکړي وکړي.
اولسمشر زیاته کړه چي د افغانستان په کچه د کرهنې پوهنتون له پاره زیاته اړتیا لیدل کېده او له هندي چارواکو سره ئې درې کلونه وړاندي د دې پوهنتون د جوړېدو په اړه خبري کړې وې خو د وزیرانو شورا تر تایید وروسته ئې دغه مرکز په کندهار کي جوړ کړ.
اولسمشر د هندوستان له لوري د یاد پوهنتون حمایه کېدل له افغانستان سره د هند د ټینګو اړیکو د دوام په معنا یاد کړ او یادونه ئې وکړه چي د افغانستان او هندوستان تر منځ به دوستانه اړیکي نور هم ټینګ او پاخه سي.
د اولسمشر په خبره هندوستان د افغانستان د پوهي په لوړولو کي هغه رول لوبولی چي په هیڅ ډول سترګي نه سي ځني پټېدلای.
د دې پوهنتون د دوام او لا پرمختګ له پاره د افغانستان د لوړو تحصیلاتو وزارت توجه او حمایه ډېره ضروري ده. د دې تر څنګ د دولتي اداري هراړخیزه ملاتړ او پاملرنه به د دې پوهنتون د نور انکشاف او تحصیلي سیستم د لا چټکتیا باعث وګرځي.
کندهار مجله په کندهار کي د افغانستان په کچه د زراعتي علومو او ټکنالوژۍ د دغه ملي پوهنتون پرانستنه بالاخص د کندهار او بالعموم د ټول افغانستان له پاره پر نېک فال نیسي، خدای دي وکي چي زموږ په زراعتي محصولاتو او کرهنیز سیستم کي د دغه ملي پوهنتون ونډه بارزه او اغېزمنه ثابته سي، تر څو د افغانستان زراعتي محصولات په سیمه کي د لا نور شهرت او توسیعې سبب وګرځي.

د افغانستان د لا پرمختګ په هیله



ډاکټر عبدالرازق پالوال PH. D.

# شاهپور تېمور او شاهپور سلیمان

## د ستر احمدشاه بابا دوه سیالان زامن



ستر احمدشاه بابا که به شپږ یا لا اته زامن لرل، سرغنه ئې دغه دوه ول. یو پیاوړی بل نازولی.

د کندهار دوې میاشتنۍ مجلې د ۱۳۹۲ش کال په پنځمه ګڼه کي مي د ښاغلي ډاکټر نثاراحمد صمد یوه لیکنه د "تېمورشاه مشر وو که سلیمان؟" تر نامه لاندي ولوستله. زما دغه لیکنه پر دغي موضوع باندي وېښه مستنده نه ده. ځکه چي یو خو ئې زما ډېر کتابونه او ناچاپه لیکني راځخه وړي دي، او بل دا چي خورا ډېر، د څورلسو کالو د کتابتوني پلټنو او ګروپړنو نوټونه ئې هم راځخه وړي دي. بده ئې لا دا ده چي زما حافظه ئې هم راخرابه کړې ده. کمپیوټران مي بند یا ویجاړ کړل سوي دي. خود مراد به ئې دا وي چي ته هم حزبي مریی، غل او غدو سه! وایي: "غله څه کوي، د ځان مله کوي!" په دغسي حالت کي نو زما دغه لیکنه د دې له پاره ده چي هغه مستعد لیکوال چي دوی له هري خوا څخه په مساعدو شرایطو او محیط کښې اوسېږي، و هر څه ته ئې لاس رسېږي، زما د دغي لیکني پر اساس دي پلټنه او ګروپړنه وکړي، څو تاریخي واقعیت برملا سوئ وي. دا هیڅ پروا نه لري چي زما دغه لیکنه یا بله هره یوه انتقاد او رد کړه سي خو حقایق باید موندل سوي او روښانه سوي وي. څه چي ما تر شپاړسو کلونو ترمخه لوستلي دي، هغه به مي په راخرابه کړه سوې حافظه کښې سم یا ناسم پاته وي. زه بیا هم له ډاکټر صمد او هم نورو لیکوالانو څخه هیله کوم چي

د ثقت او سمون له پاره ئې عالمانه غور پر کړئ
وي.
د يوء يا بل کندهاري په عاميانه اصطلاح سره، چې ما پخوا اورېدلې ده، هغه دا چې زما "په غير نامعقول" فکر سره به هم شاهپور سليمان د ستر احمدشاه بابا مشر زوی وي، لکه ځينو مؤرخانو چې داسې کښلي دي، او هم به شاهپور تېمور د لوی احمدشاه بابا مشر زوی وي، لکه ځينو نورو مؤرخانو چې داسې کښلي دي او ښاغلي صمد ئې اخستنه او يادوءنه کړې ده. دغه حکم به خود هاله صحيح وي څو مونږ په دې باوري پوهېدلي يو چې احمدشاه بابا به دوې ماينې لرلې يوه به ئې کندهارۍ پښتنه ماينه وه چې شاهپور سليمان به ئې زوی ؤ او بله به ئې د ايران د نادري شاهي کورنۍ شاهلا وه چې شاهپور تېمور به ئې مشر زوی ؤ.
د نادرقلي افشار په سپاه او لښکر کښې د عراق، ايران او افغانستان د هر توکوم او قبيلې اوز لښکرونه ول. په خبوشان کښې د نادرقلي افشار تر وژل کېدني وروسته، دغه بېلابېل لښکرونه په خپلو منځونو کښې يو له بل سره په جنګ ول څو د ايران واکمني ئې اخستې وي. زما ئې شپږ ټلونه په يادېږي. په دوی کښې يوء ټل کوښښ کاوء څو د ترمخنۍ نادري کورنۍ يو پاته سوی شاهپور، شاهرخ، ئې و قدرت ته رسولئ وي. بل ټل چې د څه وخت له پاره ئې واکمني ګټلې وه، دغه نادري شاهپور ئې په سترګو ړوند کړ څو د نادري کورنۍ بيا و قدرت ته رسېدلې نه وي. پر دغسي مهال باندې ځوان سرغنه احمدشاه له خپلې سپاه او لښکر سره پر ور ورسېدئ او هغه ړانده شاهپور، شاهرخ ته ئې نجات ورکړ. پر دء باندې بيرته هغه ترمخنی ټل، چې دی ئې و شاهي ته رساوء، ورغونډ سو. دا چې ځوان احمدشاه دوی له نورو له اسارت څخه ژغورلي ول، د آزادانه مقام او حيثيت خاوندان کړي ئې ول، د نورو پېرزوينو په لړ کښې به ئې د دغې کورنۍ يوه پېغله شاهلا هم په پاداش کښې ور وادء کړې وه. نو به شاهپور تېمور خود د دغې شاهلا زوی ؤ (نور تحقيق، پلټنه، او ګروېږنه غواړي).
د وروستنۍ زمانې مؤرخ عزيزالدين وکيلي پوپلزائي داسې کښلي دي: "احمدخان درانی د ۱۱۵۳هجري قمري کال راهسې د خپلو ورونو او اکاګانو [...] سره د خراسان په مازندران کې اوسېدئ. د دې افغان سرلښکر درنه کورنۍ هم هلته ورسره اوسېدله. په ۱۱۳۵لمريز کال کې چې د ۱۱۶۰قمري کال د محرمي او صفري سره سمون خوري د احمدخان په کور کې د درانيانو لومړۍ ملکې له بطن څخه زوی وزوکېد. احمدخان پر خپل دغه زوی باندې [...] د تېمورشاه نوم کښېښود [... تر دغه] پنځه مياشتې وروسته نادر افشار ووژل سو" (اخستنه د ډاکټر صمد ۱۳۹۲: ۷). دا چې ښاغلي وکيلي پوپلزائي په څه استناد سره داسې کښلي دي. په اړونده ليکنه کښې ئې يادونه سوې نه ده.
دغه بې نومه د درانيانو لومړنۍ ملکه نه وه، او نه هم هغه زمان د درانيانو نوم ؤ. د پوپلزو لومړنۍ شهو (ملکه) زرغونه انا د سرغنه احمدشاه مور وه. دوهمه شهو ئې د دء ورېنداره د ذوالفقار شاه شهو (ماينه) وه. درېيمه شهو او څلرمه شهو په خپله د احمدشاه دوې مېرمنې وې.
بله سهوه دا ده چې هغه ذوالفقار شاه په مازندران کښې له کورنۍ سره بندي ؤ، نه سرغنه شاهپور احمد. ځکه چې دی خو څه اووء کاله له نادرقلي افشار سره يرغمل او نظربند ؤ. کله چې نادرقلي په خبوشان کښې

وواړه سو. د وژني په دسیسه کښې ئې د سرغنه شاهپور احمد لاس هم لرۀ دېرۀ.

اصلي پوښتنه دا ده چي آیا شاهپور سلیمان پر احمدشاه بابا باندي ګران ۇ، که ئې شاهپور تېمور ګران زوی ۇ؟ یا به لا داسي نور صراحت هم ورکړه سي چي احمدشاه بابا غوښتل شاهپور سلیمان ئې ځای ناستی (ولیعهد) وي، که لا شاهپور تیمور؟

د ښاغلي صمد له اخستنو څخه داسي پوهېږم چي په دغه اړوند څه صراحت نسته. خو چي به پېښه داسي وي، نو باید له قراینو، علایمو، کړو - وړو، قرب او سلوک څخه استنباط وکړه سي.

یو دا چي احمدشاه بابا شاهپور سلیمان له ځان او له کندهار څخه نه لیري کاوء. خو شاهپور تیمور ئې په لاهور او ملتان کښې واکوال مقرر کړئ ۇ.

بل دا چي د بادشاه احمدشاه بابا په سلطنت کښې دوهم پیاوړی د قدرت خاوند شخصیت وزیر شاه ولي خان بامیزی ۇ. د دې له پاره چي شاهپور سلیمان ئې تکړه او پیاوړی کړئ وي، دء، احمدشاه بابا، و خپل زوی شاهپور سلیمان ته د وزیر شاه ولي خان لور ورغوښتې وه. بې له هل و ول څخه به د احمدشاه بابا مراد او موخه دا ول چي د وزیر شاه ولي خان په چوټ سره ئې و شاهپور سلیمان ته د خپلي امپراتورۍ سلطنت ورخوندي کړئ وي.

که نه ګانه شاهپور تیمور په لاهور او یا ملتان کښې واکوال پاته سوئ وای، چیري چي دء په خپل نامه سکه هم وهلې وه، د احمدشاه بابا امپراتوري به د دوی دوو ورونو تر منځ ځله وېشلې سوې وای. خو نورو پېښو بله پېښه کړه. هغه دا چي په ایران کښې د لوی احمدشاه بابا خسرګنۍ، چي دغه مهال ئې شاه شاهرخ میرزا ۇ، له ستونزو او کلابندۍ سره مخامخ وه. شاهرخ میرزا هم له احمدشاه بابا څخه مرسته غوښتې وه. دا چي دی په خپله و مرستي ته ورتلای نه سوای، عامل چي به ئې هر څه ۇ، ښایي د شاهرخ میرزا کشر والی یا سیال نه ګڼل وي. نو به ئې خود د دء همزولی یا لا تر کشر شاهپور تیمور له ملتان یا لاهور څخه وروغوښت او دغه ماموریت ئې پر وسپارۀ. شاهپور تیمور هم د خپلي ماماګنۍ مرسته وکړه او شاهرخ میرزا ئې له خطره څخه وژغورلای سوای او هغه هم شاه پاته سو.

له شاهرخ میرزا سره خو کورنۍ دوستي وه، نو ځکه ئې د دء حمایت کاوء. لوی احمدشاه بابا چي څیرک او دراک سړی ۇ، ښایي داسي ببره یا اندېښنه به ئې هم لرله چي که نه ګانه د شاهرخ میرزا پر ځای باندي ئې یو یا بل مخالف قدرت ته ورسېږي د هغه له اسیته څخه به افغانستان یا په سرې سره هرات هم په وروسته کښې له جدي خطر سره مخامخ وي. څو داسي پېښه سوې نه وي، او که شاهپور تیمور بیرته و لاهور ته ځني ګرځېدلئ وي، د شاهرخ میرزا شاهي به بیا هم له خطره سره مخامخ وي. ځکه ئې نو شاهپور تیمور په هرات کښې واکوال ورته مقرر کړ.

لکه څنګه چي اندېښنه وه، او توقع کېدله هغسي هم پېښه سوه. شاهرخ میرزا لا بیا هم کلابند کړه سوئ او شاهي ئې د انقراض یا نړېدني له خطر سره مخامخ وه. دا پلا چي شاهپور تیمور هورې نژدې په هرات کښې ورته ناست ۇ، سمدلاسه ئې د شاهرخ و مرستي ته ورودانګل او و هغه ته ئې او هم ئې د هغه ږ شاهۍ ته ژغورنه ورکړه. دا چي شاهپور تیمور و هیرات ته ځني ګرځېدلئ ۇ، مخالفینو چي ترمخه ئې شاکوچ کړئ ۇ، او سخت ځپل

سوي نه ول، پسله څه وخته ئې لا بيا هم شاهرخ ميرزا تر بريد لاندي ونيوئ او په خپله شاهي ماڼۍ کښې ئې کلابند کړ. دغه واري، د درېيمي پلا له پاره شاهپور تيمور چي نسبتاً نژدې په هرات کښې ورته ناست ؤ، لا ئې دا پلا بيا هم د شاهرخ ميرزا او د هغه د شاهۍ ژغورني له پاره لښکرکښي وکړه او د شاه مخالفين ئې د خپل سپاه سالار احمدخان نورزي په وسيله سره سخت وځپل څو بيا ئې ژر داسي يرغل کړئ نه وي.

شاهپور تيمور چي په لاهور او ملتان، او بيا هم په هرات يا د احمد شاهۍ په لوېديځ کښي له جنگونو سره مخامخ ؤ، د ماتېدلو او وژل کېدلو خطر ئې دېرؤ. دا چي داسي پېښه سوې نه وه، او پر ځای ئې له راز –راز زدکړو او تجاربو سره مخامخ سوئ ؤ چي دغو پېښو ئې په تکړه والي کښي ډېره مرسته ورسره کړې وه، بله ئې لا دا چي په دغو جنگي مخامختياوو کښي دی د تکړه، مجرب او گړندي اردو خاوند سوئ هم ؤ.

له بلي خوا څه شاهپور سليمان چي د بېلابېلو اجتماعي محيطونو له تجاربو څخه بې برخي ؤ، د جنگونو له ژوبلېدني او مرگ له خطره سره مخامخ نه ؤ، د سياسي او حربي چارو څخه ئې زدکړه هم کړې نه وه. دا ځکه چي دی په شاهي ماڼۍ کښي خوندي، موړ او آرام ناست ؤ. پلار ئې خود نه غوښتل چي و دء ته څه ضرر ور رسېدلئ وي. د دء ساتنه ئې پر وزير شاه ولي خان باندي سپارلې وه چي هغه ئې لا ورخسر کړئ هم ؤ. دء به ښايي داسي اندېښنه لرله چي که ئې بل زوی شاهپور تېمور واکمني واخسته، نه گانه دی به د مورگنۍ و خوا ته ورښويېدلئ وي. ځکه چي هم هغسي مذهبي اغېز او احساس به ئې پکښې ليدئ.

دا معلومه نه ده چي ستر احمدشاه د خپلي مړيني پر مهال وصيت کړئ ؤ که نه، چي د دء ځای ناستی به شاهپور سليمان وي که لا شاهپور تېمور؟ زه فکر کوم چي دء به دغسي وصيت هرومرو کړئ ؤ او خپل ځای ناستئ به ئې شاهپور سليمان نومولئ ؤ. ځکه نو وزير شاه ولي خان هم دی د بادشاهۍ پر اورنگ باندي کښېنولئ ؤ او و شاهپور تېمور ته به ئې د پلار د مړيني او د شاهپور سليمان پر اورنگ کښېناستني مکتوبي اطلاع ورکړې وه.

شاهپور تېمور چي به ځان مشر باله، که به ؤ، او هم د غښتلي اردو خاوند ؤ د وزير شاه ولي خان له کړني سخت خپه‌مېدلئ ؤ. ځکه نو له خپلي سپاه او لښکر سره مخ د کندهار پر خوا باندي د جنگ په نيامت ورخوځېدلئ ؤ.

ولي ئې وزير شاه ولي خان مخنيوی نه وکړای سوای؟

۱– دء به ښايي داسي انگېرلې نه وه چي شاهپور تېمور دي د پلار له وصيت سره (؟) او د مشر وزير شاه ولي خان له فيصلې سره مخالفت کړئ وي.

۲– د مدافعې نه کولو بل علت او عامل دي د وزير شاه ولي خان زوړوالئ ؤ.

۳ – بل دا چي دء به نه غوښتل د دواړو خواوو تر منځ د مسلمانانوويني توی سوي وي.

هر عامل چي به ؤ هغه د دء د ژوندانه او د قبيلې د تباهۍ په قيمت ورته تمام سول. دی ووژل سو، او قبيلې به ئې د غچ اخستني يا د ځان ساتني په اړوند چي به ئې هر راز عکس العمل ښوولئ ؤ، پايلامه ئې له کندهار ښاره څخه د دوی شړنه سوې وه، او په دغه کار کښي پوپلزي هم له باميزو سره ملگري ول. دا ځکه چي سليمان شاه پوپلزی ؤ. دغه دواړي قبيلې له کندهار ښاره څخه وتلي او په دهله،

ویاند، توغي او باختو کښې خایاني سوي وې.

خو په کندهار کښې د منځنۍ ارغند ناوې پوپلزیان بیا څه نیمه پېړۍ یا ۵۷ کاله وروسته د یوې بلې پېښې په پایلامه کښې د ارغند ناوې له خپلو کلو څخه ایستل سوي ول، او دوی هم د کندهار و شمال ختیځې برخې ته و یادو کړو کلو ته پناه وروړې وه. زما د کوچنیوالي فهم ئې داسې دئ چې بامیزي او پوپلزي د دهلې په بېلابېلو کلو کښې اوسېږي. ای سره ګډ سوي نه دي. دغه مطالعه د یوې مونوګراف موضوع ګرځېدلای سي، او هم به ئې له خلګو سره لږ ؤ ډېر څه تاریخي څرک هم پاته وي.

په کندهار ښار کښې بامیزو دوې لویې کوڅې لرلې، چې د یوې کوڅې د لوی والي او اوږدوالي سارئ ئې په نور کندهار ښار کښې نسته. اوس په دغو دوو لویو کوڅو کښې یوازې یو کور بامیزي پاته دي. په دغو دوو کوڅو کښې اوس هر جال پښتانه اوسېږي. خو کوڅې لا بیا هم د بامیزو په نامه سره یادېږي.

که نه ګانه تېمورشاه د لوی احمدشاهي افغانستان اورنګ له پلازمېنې کندهار څخه و کابل ته وړئ نه وای، نن ورخ به د بامیزو په دواړو لویو کوڅو کښې هرجال قبایل خایان نه وای، او هم به دغه دواړې غبرګې کوڅې نورې د بامیزو په نامه سره هم نه یادېدلای، بل لا به خود "چندول" نومېدلای. دغه مانا دا چې په دغو دوو غبرګو کوڅو کښې به د تېمورشاه هغه لښکریان خایان سوي وای چې دء له هرات او یا مشهد څخه ورسره راوستلي ول. دغه به خود یوه دغسې پېښه وای لکه د کندهار د منځنۍ ارغنداو د ایستل سوو پوپلزو په کلو او کلاوو کښې چې د دوی د هغه زمان مخالفان خایان سوي دي کومو چې دوی هغوی شړلي ول.

د دوی دواړو خواوو تر منځ جنګ هرومرو سوئ دئ، خو بیان ئې نسته. بې له جنګه څخه بامیزي او پوپلزي له کندهار ښاره څخه ایستل کېدلای نه سوای. لکه بامیزو او پوپلزو چې کندهار ښار پرې ایښئ ؤ، دغسې نو تېمورشاه هم په ښار کښې ټېک کولای نه سوای، او دی هم په دې ښه پوهېدئ. ځکه ئې نو شاهي مرکزیت له کندهاره څخه و کابل ته نقل کړ چیري چې که به دء خواخوږي نه لرل، مخالفان او دښمنان ئې هم نه لرل. له دء سره ملګری لښکر چې د هرات او مشهد له شاوخوا څخه به ئې ورسره راوستلئ ؤ، د کابل مېنه ئې لا تر اوسه پورې د "چندول" په نامه سره یادېږي. دغه مېنه د تېمورشاه د ګومبتې په سوهېل کښې ده چې شمالي برخه ئې د میوند جادې په جوړېدو کښې ولاړه. دا کله چې پاپا غلام محمد فرهاد د کابل ښاروال ؤ، دء یوه غبرګه جاده، چې په لوېدیځ کښې له کابل رادء څخه پیل کیږي او تر چمن حضوري پورې رسېږي، ودانه کړه، چې د چندول شمالي برخه پکښې ونړېده. چندول هغه لښکر ؤ چې تېمورشاه له لوېدیځ څخه ورسره راوستلئ ؤ.

لکه ستر احمدشاه بابا چې خپل ګران زوی، شاهپور سلیمان له خانه څخه نه لیري کاوء. او په شاهانشاهي ښار پلازمېنه کندهار کښې ئې خایي کړئ ؤ، تېمورشاه هم د پلار غوندې داسې کار وکړ. دء خپل ډېر زامن، د والیانو په توګه په نژدو او لیري ولایتونو کښې مقرر کړل. خو خپل ګران زوی، شاهپور زمان ئې په کابل کښې له خانه سره وساتئ چې د کابل واکوال ؤ.

پر تېمورشاه باندې د شاهپور زمان د ګرانښت بل دلیل، شهادت، او شباهت دا دئ چې دء د خپلې ګرانې شهو پر زوی باندې د

خپل نیکه، زمان شاه، نوم ایښئ ؤ، یائې دی د دۀ د غور نیکه په نامه سره نومولئ ؤ. دغه پېښه دلالت پر دې باندي کوي چي تېمورشاه په خپل نیکه سره نازېدئ او و هغه ته ئې د ویاړ په سترګه کتل.

زمان شاه شعیه نه ؤ، ځکه چي مور ئې یوسفزۍ وه. خو په شجاع، وروسته شاه شجاع کښې د شعیه توب نخښې لیدل کېږي. و ما ته دا رامعلومه نه ده چي د دۀ مور به څوک وه، له کومي زیي څخه به وه، که به ئې لا توکوم ښېل ؤ.

یوه بله یادونه هم هرومرونې ده. هغه دا چي تېمورشاه پر جنګیالیتوب سربېره، د پلار، لوی احمدشاه بابا غوندي د عقل او فهم خاوند دراک سړی هم ؤ. دۀ چي بامیزي او پوپلزي له کندهار ښاره څخه ایستلي ول، ښار ئې هسي تر شا خوشي پرې ایښئ نه ؤ. دۀ به خود دا واسه (واهمه) لرله چي و کابل ته، د دۀ تر تللو وروسته به، په کندهار کښې د مخالفت او دښمنۍ خاله ورته جوړه سوې وي. څو داسي پېښه سوې نه وي، دۀ د حاجي جمال خان محمدزي زوی سردار پاینده خان ئې د سرفراز خان په لقب د کندهار د درانیو قبایلو مشر وټاکه (حبیبي: ۱۳۵٦: ۴۰۳). لوستونکي به ئې له پشالا څخه پوهېږي.

و تېمورشاه ته هم شاوخوا هر چیري ښورښونه جوړ سول. په کال (۱۱۸۸هـ، ۱۷۷۴ع) کښې عبدالخالق سدوزی و تېمورشاه ته یاغي سو،چي خود به ئې د پوپلزو او بامیزو غچ اخستني هوډ لاره. خو تېمورشاه هغه مات کړ، او تر نیولو وروسته ئې په سترګو ړوند کړ. د ړندولو مجازات کول له ایران څخه راوړل سوئ ؤ.

وروسته په ۱۱۹۳هـ، ۱۷۷۹ع کښې د پېښور او خیبر خلګ او مشران ئې لکه فیض الله خان او ارسلا خان مومند ورته پورته سول چي تېمورشاه ئې د پېښور په بالاحصار کښې کلابند کړ. خو تېمورشاه وکړای سوای چي کلابندي ماته کړي او هغوی ئې ټول ووژل.

سیکهانو چي د افغانستان له اړودوړ او بحران څخه په خپله ګټه کار اخستئ، نو ئې ملتان نیولئ ؤ، خو تېمورشاه په ۱۱۹٦هـ - ۱۷۸۱ع کښې هغه ښار بیرته له سیکهانو څخه واخست.

په سندهـ ولایت کښې میر فتح علي خان تالپوري هم و تېمورشاه ته بغاوت وکړ. تېمورشاه د خپل لښکر د نظامي سپاه سالار مدد خان په وسیله سره فتح علي خان د دۀ له تالپوري قبیلې سره سخت وټکاوه، دۀ هم د پلار غوندي بیرته هم هغه فتح علي خان د سیمي حکمران پر ښناوه.

په ۱۲۰۱هـ - ۱۷۸٦ع په شاوخوا کښې د کشمیر حکمران آزادخان ورته پورته سو. خو تېمورشاه وکړای سوای، چي هغه هم له زوره اچولئ پر ځای پر ېږدي.

په ۱۲۰۳هـ - ۱۷۸۸ع کښې د بخارا پادشاه چي شاه مراد نومېدئ مروه ئې و نیوله. ځکه نو تېمورشاه له یو لک لښکریانو سره د کندوز او آقچې له لاري څخه ورغلئ. تر څه مخامختیا وروسته شاه مراد معصوم ... ورسره روغه وکړه چي د آمو سیند ئې تر منځ وېش وټاکه (۱۲۰۴هـ - ۱۷۸۹ع) چي په هغه برخه کښې اوس هغسي پاته نه دئ.

تېمورشاه خپل پلارنی لوی مملکت د خپلو زامنو تر منځ داسي ځله وېشلی ؤ: کنداهر ئې و همایون ته، هرات ئې محمود ته، پېښور ئې و عباس ته، کابل ئې و زمان ته، غزني ئې و شجاع ته، کشمیر ئې و کندل ته ورسپارلي ول.

تېمورشاه هم د خپل پلار، ستر

احمدشاه غوندي کابل چې د بادشاهۍ پلازمېنه وه خپل ګران زوی شاهپور زمان ته ورسپارلئ او له ځانه سره ئې واکوال ساتلئ ؤ، چې دی هم د پلار تر مړینې (۱۲۰۷هـ – ۱۷۹۳ع) وروسته د هغه پر ځای په کابل کښې د بادشاهۍ پر اورنګ باندې کښېنوست. ده خپل ورونه وروغوښتل او بندیان ئې کړل. یوازې د کندهار واکوال همایون ورغلئ نه ؤ.

وړاندني معلومات د لوی استاد علامه پوهاند عبدالحي حبیبي، د افغانستان لنډ تاریخ ۱۳۵٦: ۴۰۳ – ۴۰۴ ځخه را اخستل سوي دي.

**هیله:**

د ښاغلي ډاکټر نثاراحمد صمد له اړوندي لیکنې ځخه زه داسې پوهېږم چې و دء ته د احمدشاهي کورنۍ تاریخ په زړه پوري دئ او هم ئې ورسره اړونده آثار موندلي دي. که به دی ته ګانه په بل ګران ارزښته کار بوخت نه وي، نو به ښه دا وي چې ګوندي دء به د احمدشاهي دربار د منشي محمود الحسیني الجامي تاریخ احمدشاهي چې په خورا مغلقه فارسي ئې کښلئ دئ، په رواني ساده او بوبي کندهارۍ خوږې پښتو سره ترجمه کړای سي. ځکه چې یو خو دغه زموږ له پاره یو خورا مهم اثر دئ، او بل دا چې زموږ خوانان ئې باید له لوستنې ځخه برخمن سوي وي. ځو دوی د فهم او شعور خاوندان سوي وي. ځنګه چې دغه دوه ټوکه لوی کتاب دئ، ښایي دء به له ځانه سره کم بل تکړه د فهم خاوند هم ملګرئ کړئ وي. زموږ ځوانان باید په لوستنه او مطالعه سره روږد کړل سي.

پای

لیکوال: جبران خلیل جبران
مترجم: احمدالله ځرګند:

## انار

یو وخت مي د یو انار په منځ کي ژوند کاوه، د یوې اناردانې ځخه مي واورېدل، ویله یې: "یوه ورځ به زما ځه لویه درخته جوړېږي، نرۍ شمال به مي په ځانګو کي سندري بولي، د لمر وړانګي به زما پر پاڼو نځا کوي او زه به په ټولو موسمونو کي ښکلې او پیاوړې یمه".

وروسته یوې بلې اناردانې خبري وکړې او ویې ویل: "یو وخت چې ستا په ځېر ځوانه ومه، په سر کي مي همداسي خیالونه وه؛ خو اوس چې په ښه او بد پوه سومه نو ټولې هیلې مي چټې راته ښکاره سوې".

دریمي دانې وویل: "زموږ ځخه په یوه کي هم زه د روښانه راتلونکي ځرک نه وینمه".

ځلورمي دانې وویل: "دا به نو ځه بې معنا ژوند وي، چې هیڅ روښانه راتلونکی و نه لرو!"

پنځمي وویل: "موږ تر اوسه په دې نه پوهېږو چې موږ ځه شي یو، نو جنجال پر ځه سره کوو".

شپږمي دانې وویل: "هر ځنګه چې یو، هغسي باید و اوسو". اوومي اناردانې وویل: "زه ښه پوهېږمه چې راتلونکی به ځنګه وي، خو بیانولای ئې نه سم".

وروسته اتمي خبري پیل کړې، بیا نهمي، بیا لسمي او بیا نورو؛ وروسته ټولو خبري شروع کړې، تر داسي اندازې ږغ و ږوغ سو چې ما هیڅ خبره نه سوای بېلولای.

په هماغه ورځ له انار ځخه د بهې و زړه ته وکوچېدم. چیري چې دانې لږ او خاموشي ډېره ده.

* * *



ليکوال: استاد محمدمعصوم هوتک/کاناډا

# د ادم خېشکي پير، شاه عيسی څوک وو؟

د ۲۰۱۲ع کال په دوبي کي چاپ ته د ادم خېشکي د دېوان تيارولو پر وخت پوه سوم چي ادم خېشکی خپل مرشد "شاه عيسی" بولي. د ده خپله وينا داسي ده:

دې وې غــشی مي په تا کــښي اثــر نه کا
پټ سپاهي مړ نی سور (سپور) د شاه عيساه
مـــا وې نوري دعوې مه کوه خوله راکړه
که مــــريد يې لکـــه زه د شــــاه عيساه

بل ځای وايي:

مخ د هـــر څـــه پکښېويني
د ادم آئينه کړه شاه عيسی روڼه

د دغو بيتو تر لوستلو وروسته مي هغه حکم د تامل وړ وباله چي پکښې ادم د روښاني شاعرانو د ډلي سرې بلل سوی وو. د شاه عيسی په باب مي وليکل چي: "... د دغه شاه عيسی نومي تحقيق زه بل وخت ته پر ږدم".

د يوه روحاني مرشد او زاهد په توګه د شاه عيسی، ميا عيسی، عيسی يادونه موږ د خوشحال خان خټک (۱۶۱۳ ۱۶۸۹ع) او اخوند درويزه ننګرهاري رحمة الله عليه په آثارو کي مومو. خوشحال خان سوات ته د خپل سفر حالات په سواتنامه کي بيان کړي دي او يو ځای وايي:

هغه وخت چي پير روښــان فساد بنياد کړ
پښتـــنو ورسره ټينګ کار د فســــاد کړ
پښـــتانه په هـــــغه دور پير پرست وو
څوک مريد د شاه عيسی، څوک د سرمست وو
د روښان بخره ورکزيه، افـــريدي شول
هغه خــوښ په رهزني په عنيدي شـــول
د قاســـم په بخره واړه غـــوريه خېل وو
ډنګـــر پير وته د بنـــو شيتک اهل وو
خټک واړه بو بکري، پير منـــصوري وو
له بدعتـــه له فســــاده په دوري وو
..............................
..............................
قاسمي، شاه عيسايي سره په جنګ وو
روښاني پير منصـــوري سره دا رنګ وو
درويزه له يوه لـــوري راپيدا شـــو

په لړ علم په دا ملک کي لوی ملا شــو
(الخ)[1]

په پورتنیو بیتو کي راغلي کسان موږ ته لوی استاد علامه حبیبي مرحوم د سواتنامې په لمنلیکونو کي یو څه راښوولي دي.
د شاه عیسی په باب وایي چي: "د سیند د بکهر له ساداتو څخه یو زاهد وو، چي په اټک کي اوسېده او د ده یادونه د اخوند درویزه په کتابو کي شوې ده...". علامه ورپسي زیاتوي چي: "یو بل سید عیسی هم پېژنو چي د عبدالوهاب اخوند پنجو ورور وو، ښایي چي دغه دواړه یو سړی وي". زه (هوتک) به په دې برخه کي خپله څېړنه د علامه مرحوم د لیکني په رڼا کي وروسته وړاندي کړم.

د سرمست په باب لیکي چي: "په دې نامه څوک نه پېژنم. خو یو ملامست زمند د پښتو سلوک الغزات مؤلف .... تر خوشحال خان لږ څه دمخه ژوندی و، ښایي دلته دغه مست مراد وي".

زما (هوتک) د معلوماتو له مخي اخوند درویزه ننگرهاري په تذکرة الابرار والاشرار (۱۷۱ مخ چاپ اداره اشاعت سرحد پشاور، ۱۹۶۰ع) کي د یوه "سرمست" یادونه کوي او وایي چي: "... این مرد تبعیت جن مینموده وآلات مناهی نواختن و شنودن و رقص کردن را حلال می دانسته...". اخونددرویزه تر دې وړاندي کښلي دي چي دغه سرمست نومی د سیداحمد زوی وو. وایي چي دغه سیداحمد نومي ځان د خواجه بهاؤالدین زکریا له اولادې څخه باله او د پیرۍ دعوه ئې کوله. خو اخوند درویزه (رح) لیکي چي دغه سیداحمد د "میرو" نومي شیخ زوی او د "حکو" نومي لمسی وو. "حکو" په اصل کي یو غلام وو چي شیخ حسن تیراهي له هندوستانه د خټکو علاقې ته راوستلی وو. دلته ئې د شیخ حسن په غیاب کي ځان د هغه د زوی په نامه معرفي کړ. خټک د شیخ حسن ماماګنی ول. له امکانه لیري نه ده چي د خوشحال خان خټک مراد به همدغه سرمست وو؟

علامه حبیبي لیکي چي له "قاسم" څخه ښایي مراد "شیخ قاسم بن شیخ قدم متي زی خلیل غوریه خېل وي (۹۵۶ – ۱۰۱۶ق) چي د پېښور په دواوه کي د قادریه طریقې مرشد وو ... یا به مراد اخوند قاسم د عبدالله پاپین خېل شینواري زوی وي، چي د پښتو فوایدالشریعت مؤلف او د اخونددرویزه د ادبي مکتب غړی دی ...".

زما (هوتک) عاجزانه نظر دا دئ چي دلته به مراد شیخ قاسم غوریه خېل وي او دلیل مي دا دئ چي یو خو خوشحال خان په صراحت سره وایي چي د ده "بخره واړه غوریه خېل" ول او بل دا چي خوشحال خان او اخوند درویزه دواړه پر دې خبره متفق دي چي د شیخ قاسم او شاه عیسی د پیروانو تر منځ مخالفت پېښ سوی وو. خوشحال خان وایي:

قاسمي، شاه عیسایي سره په جنگ وو
روښاني پیرمنصـوري سره دا رنگ وو

اخوند درویزه لیکي: "... بعد از مدتی اتباع او (شیخ قاسم) را بااتباع میان عیسی عداوت دنیاوی نه عداوت دینی (افتاد)...". اخونددرویزه د دې عداوت لامل داسي بیانوي چي د شیخ قاسم پیروانو په دوابه کي یو کور جوړ کړی وو او هغه ئې "مکه" باله. د عیسی پیروانو برید پر وکړ. هغوی ئې ووژل. عیسی اکبر پاچا ته شکایت وکړ. هغه شیخ قاسم لاهور ته واستاوه. هورې ئې څه موده تېره کړه. کله چي شاه سلیم پر تخت

[1] سواتنامه، ۶۰-۶۲ مخونه، د کابل چاپ.

کنبښنوست، شیخ قاسم ئې بندي کړ او چنار ته ئې واستاوه چې هورې په بندیخانه کې مړ سو. اخوند درویزه د لاهور هغه علماء چې د شیخ قاسم لاسنیوی ئې کړی وو، "علماء اهل هوا" بولي (وګ: تذکرة الابرار والاشرار، ۱۸۴ مخ) د اخوند درویزه (رح) دا څرګندوني پر دې خبره باندي یو بل دلیل کېدلای سي، چې د خوشحال خان خټک په سواتنامه کي راغلی "قاسم" د فوایدالشریعت مؤلف اخوند قاسم نه دئ. ځکه نه دئ چي دغه اخوند قاسم خو د علامه حبیبي مرحوم په قول د "اخوند درویزه دادبي مکتب پیرو دئ".

د "ډنګر پیر" حالات په تیارو کي دي. علامه مرحوم ئې هم نه پېژني، خو "ابوبکر او پیر منصور" د خټکو پیران ول چې د ژوند زمانه ئې تر خوشحال خان دمخه بلل سوې ده. خوشحال ئې په ښه نامه یادوي. له بدعته او له فساده ئې لیري او له روښانیانو سره ئې په جنګ کي بولي.

خټک واړه بوبکري، پیرمنصوري وو
له بدعـــته له فســـاده په دوري وو
........................
قاسمي، شاه عیسایي سره په جنګ وو
روښاني پیرمنصـوري سره دا رنګ وو
اوس راځو، شاه عیسی ته.

د شاه عیسی په باب مو د همدې لیکني په سر کي د علامه حبیبي مرحوم نظر ولووست چي وایي د بکهر له ساداتو څخه یو زاهد وو او په اټک کي اوسېدی.... علامه زیاتوي چي ښایي د اخوند پنجو ورور سید عیسی همدا شاه عیسی وي.

زما د څېړني له مخي دا دواړي خبري سهي دي. بکهر د اوسني پاکستان د سند ایالت په سکهر (Sukkur) کي واقع دئ. د سکهر ایالت په بکهر (Bukkur) او روړی (Rori) کي سادات اوسېدل.

وایي چي په بکهر کي د ساداتو کورنۍ د ارغونیانو (له ۱۴۷۹ ع څخه تر ۱۵۲۲ع پوري) په زمانه کي مېشته سوې ده. میر معصوم بهکري قندهاري (۱۵۳۷ - ۱۶۱۰ع) چي "نامي" تخلص ئې کاوه او د ده په لاس کښلي کتیبې د کندهار په زاړه ښار کي اوس هم سته، د همدغو ساداتو له کورنۍ څخه دئ. په بکهر کي یوه کوڅه سته چي د "رضوي ساداتو" په نامه یادېږي. انګرېز انجنیر (Edward Thornton) چي په ۱۸۴۶ ع کي بکهر ته تللی وو، لیکي چي هلته ئې څلوېښت ودان مسجدونه او اتیا وران سوي مسجدونه لیدلي ول. دغه مسجدونه د همدغو ساداتو په همت ودان سوي ول[۲]. د اټک پراخي حوزې ته د دغو ساداتو ورتګ تاریخي ملاتړ لري. اخوند درویزه (رح) وایي چي د بابر پادشاه په زمانه کي په بیلوت کي د عبدالوهاب، عبدالرحمن او عیسی په نومو درو مشهورو پیرانو ژوند کاوه[۳]. بیلوت د دیره اسماعیل خان په شمال کي د یوې لرغوني کلا نوم دئ. په دغه نامه یو کلی هم نژدې ورته پروت دئ. د دیره اسماعیل خان له اوسني ښار څخه د بیلوت فاصله ۵۵ کیلومتره ده. په دغه ځای کي یو زیارت سته چي " بیلوت شریف " نومېږي. اخوند درویزه د بیلوت له نامه سره (حضرت) کلمه هم راوړي چي د دغه ځای د

---

[۲] ټارنټن هماغه څوک دئ چي د امیر عبدالرحمان خان په پاچهي کي افغانستان ته راغوښتل سوی وو او ما (هوتک) ئې پخپل کتاب "شین سترګي مستخدمین په افغانستان کي"، ۴۵ مخ کي یادونه کړې ده.

[۳] تذکرة الابراروالاشرار: ۱۸۶مخ.

قدسیت ښکارندويي کوي. اخوند د بیلوت په ګاوند کي د یو بل ځای نوم اخلي چي "اچه" نومېږي او ما ته ئې اوس موقعیت نه رامعلومېږي. د اخوند درویزه له بیانه داسي ښکاري چي دغو درو تنو یو په بل پسې د خلافت دوران تېر کړی دئ. دوی ټول ئې د سنت او جماعت پیروان بللي دي. د عیسی په باب ئې کښلي دي چي ده د خلافت په وخت کي د علم او علماوو قدر کاوه. اخوند (رح) د شیخ نتوي رنګریز له خولې لیکي چي وایي: "ششماه درخدمت افتابه عیسی شب و روز ګذرانیدم ازو هیچ الفاظ رفض نه شنیدم .... الغرض از زبان عبدالوهاب و عبدالرحمن و عیسی هیچ احدی از عد دل نقل کلمه رفض نمیکند..."[۴]. خو اخوند درویزه د دوی له اولادې او پیروانو څخه سر ټکوي او لیکي چي عیسی "اولاد را و اتباع را از رفض و الحاد منع نفرموده. خصوصاً فرزند کبیر او سید جلال ریش تراشیده و سب خلفاء ثلثه می نموده اما منع نه کرده ...".

اخوند زیاتوي چي یو وخت یو متقي او پرهېزګار عالِم عیسی ته د نصیحت په توګه وویل چي د قیامت په ورځ به د خپل اولاد او خپلو پیروانو د رفض او الحاد له شامته ماخوذ سې. عیسی د ده پر خبره غوږ و نه نیو او پیروانو ئې دغه متقي عالم په شهادت ورساوه. عیسی ئې بازخواست و نه کړ، ځکه ئې پر بدن باندي دردناکي دانې راوختلې او د هغو له درده مړ سو. (هماغه اثر ۱۹۰ مخ).

له دې بیانه څخه زما مقصد د شاه عیسی د افکارو په باب قضاوت نه دئ، بلکي مراد مي دا دئ چي د ادم خېشکي پیر شاه عیسی همدغه عیسی نامی دئ چي اخوند درویزه او خوشحال خان خټک ئې یادونه کوي. دغه عیسی د عبدالوهاب ورور دئ او عبدالوهاب بن غازي هماغه اخوند پنجو (۱۵۳۷ ۱۶۳۴ع) دئ چي کنزالدقایق ئې په پښتو نظم رااړولی دئ.

اخوند درویزه لیکي چي عیسی یو کتاب هم تالیف کړی دئ او په هغه کي ئې د ساداتو او اهل بیت پر فضیلت باندي بیانونه کړي او له مروجو تفسیرو څخه ئې روایتونه رااخیستي دي، خو وایي چي په اهل بیت کي ئې د بي بي عایشه صدیق رضی الله عنها په باب شک کړی دئ. اخوند وایي چي همدغه خبره ئې په رفض کي ګڼل کېدلای سي؟ خو اخوند درویزه څو کرښې وروسته لیکي چي ښایي دا کتاب دي د ملا موسی افغان رافضي لیکنه وي. ملا موسی افغان د سیمي یو عالم او د عیسی د اولادو استاد وو (هماغه اثر: ۱۹۰ مخ).

د شاه عیسی په باب خوشحال خان خپل نظر موږ ته بیان کړی نه دئ. دونده (دومره) قدر ئې ویلي دي چي پښتانه په دغه دور کي "پیرپرست" ول، څوک د شاه عیسی او څوک د سرمست "مریدان" ول. خوشحال خان د پټي سړی نه وو. زه فکر کوم چي که ئې پر شاه عیسی باندي څه لرلای، هرومرو ئې بیانول. د خان سکوت موږ ته د "ضمني تائید" حکم لري.

ما (هوتک) د ادم خېشکي په دېوان کي داسي څه و نه موندل چي د ده پر رِفض دي دلالت وکړي. د اخوند درویزه د دغه حکم سپینېدل چي د شاه عیسی پیروان په روافضو کي شمېري، تر حکم څه دپاسه څلورسوه کاله وروسته ډېر سخت کار دئ.

[۴] هماغه اثر ۱۸۹مخ. رِفض په لغت کي پرېښولو او ترک وهلو ته وایي او اهل تسنن و شیعه وو ته روافض وایي. دهخدا.

محمدهارون خپل شعشعي/لندن

## په معياري پښتو کي

# د «اکثریت» او «اقلیت» بابولاله

پوهاند ډاکټر مجاور احمد زيار صاب چي د پښتو ليکدود، گرامر، نيولوجيزم او داسي نورو ژبنيو مسألو په اړه د خپلو فتواوو په توضيح او توجيه کي و څلورو دېوالو ته ودرېږي، بيا نو له ناچارۍ څخه د «اکثريت» او «اقليت» و بابولالي ته پناه وړي؛ مثلاً دی «بخښل»، «کښېښنستل»، «ښکښځل»، «کښېښووول»، «نخښه»، «ږغ» او داسي نور تول له خپلي مورنۍ يا سيمه ييزي لهجې سره سم، د «ښښل»، «کښنستل»، «کنځل»، «کېښوول»، «نښه» او «غږ» په ښه کاري؛ حال دا چي دا او داسي نور تکي نه يوازي د پښتو په تولو لرغونو اثارو کي د «بخښل»، «کښېښنستل»، «ښکښځل»، «کښېښووول»، «نخښه» او «ږغ» په بڼه راغلي دي، بلکي تر اوسه پوري هم د پښتو د جنوب - لوېديځي لهجې د ميلونو (ميليونو) ويوونکو په ورځنيو خبرو او مرکو کي، په دغه بڼه ويل او ليکل کېږي. کله چي له ډاکټر زيار څخه پوښتنه وسي، چي ولي د پښتو ټکو د املا يا ليکدود اصالت او قدامت په پام کي نه نيسي، نو دی يې په جواب کي وايي، چي «ډېرکي» پښتانه يې د «ښښل»، «کښنستل»، «کنځل»، «کېښوول»، «نښه» او داسي نورو په ډول وايي.

جناب زيار صاب د «اکثريت» زړې او اشنا کليمې ته «ډېرکی» او اقليت ته «لږکی» وايي. «ډېر» خو له هندي ژبي سره زموږ پخوانی مشترک ټکی دئ، چي تول يې په تمامه مانا پېژنو؛ او هره ورځ سوونه واره زموږ په خبرو او ليکنو کي کارېږي، خو په دې «حکمت» بيا د سرې سد نه رسېږي، چي له دې اشنا، لنډې، رسا او خوږې کليمې سره يې «کی» شاوندی يا پسوند ولي موښلولئ دئ؟! «ک» او «کی» مو په پښتو او پارسي کي د تکريم او تصغير په مانا اروېدلي دي، مگر له «ډېر» سره يې د بو ځای کولو راز په څه کي کېدای سي؟! ايا «ډېر» يا «ډېری» په يوازيتوب سره د اکثريت مانا نه سي افاده کولای؟ کې کولای سي، بيا نو د «کی» شاوندي ته څه اړتيا وه، چي د خلگو اشنا، ساده او اسانه ټکی يې په لوی لاس اوړد کړئ او بې خونده کړئ دئ؟!

خیر، د زیار صاب د «ډېر کي» په اړه خبري او دلایل د دې لیکني موضوع نه ده؛ ځکه یې پر همدې ځای پرېږدو؛ او خپل اصلي بحث ته را گرزو، چې موضوع یې په معیاري پښتو کي د «اکثریت» او «اقلیت» بابولالي شننه او څېړنه ده.

ښاغلی زیار د «اکثریت» او «اقلیت» په حواله «شه»، «شو» او «شي» هم تر «سه»، «سو» او «سي» معیاري گڼي.که څه هم په «سین» سره د دغو ټکو لیکل د ژبپوهانو د څېړنو او موندنو له مخي تر «شین» اصالت او قدامت لري. جناب زیار او ملگرو یې له لږ و ډېر څلوېښتو کالو راهیسي د همدې فتوا له مخي د افغانستان په رادیو تلوېزون کي د جنوب – لوېدیځي لهجې و هغو نطاقانو (ویندویانو) ته د کار کولو اجازه نه ور کوله، چي «شه»، «شو» او «شي» یې نه سوای ویلای.

راسئ تر هر څه مخکي و دې پوښتني ته د جواب موندولو هڅه وکو، چي په پښتو لهجو کي د «اکثریت» او «اقلیت» بابولاله چا سپینه کړې ده؟

ښاغلی زیار په ډېر ویاړ او غرور ادعا کیي، چي ما گرده افغانستان ښار په ښار، کلی په کلی، کوڅه په کوڅه او کور په کور گز و پل کړئ دئ؛ او په دې حقیقت اوړو او اوبو غوندي پوهېږم، چي په پښتنو کي «ډېر کی» څوک دئ او «لږ کی» څوک. زه د ډاکټر زیار د دې ادعا د سموالي او کږوالي په باب قضاوت د نظر و خاوندانو ته پرېږدم؛ خو خپله یې د ځینو دلایلو پر اساس له سموالي

او دقت سره د تأیید سر نه سم ښورولای. دا خبره له هیڅا پټه نه ده، چي زیار صاب همېشه د سوپرمېنی ادعاوي کیي، خو سره له دې هم، د یوه بسته هیواد د میلونو وگړو د ژبو او لهجو احصاییه راټولول، قطعاً د یوه، دوو، لسو، شلو یا سلو سوپرمېنانو کار نه دئ. په زړه پوري خو لا دا ده، چي پښتو نه یوازي د افغانستان په شمال، جنوب، شرق او غرب کي د خوروورو پښتنو، بلکي د میلونو پښتني قبایلو، پاکستان او هندوستان مېشتو پښتنو ژبه هم ده. ایا تر اوسه په دې حقیقت پوهېږو، چي د هندوستان په اوترپردېش، بیهار، راجستان، جمو و کشمیر او ځینو نورو کلیوالو سیمو کي څونه پښتانه مېشت؛ او په کمو (کومو) لهجو خبري کیي؟ ایا و اسټرالیا ته د پښتنو په تاریخي مهاجرتو خبر یو؟ د نفوسو، ژبې او لهجو په باره کې څه مالومات لرو که څنگه؟ هندوستان او اسټرالیا به پر خپل ځای پرېږدو، ایا تر اوسه مو په دې حقیقت هم سر خلاصېږي، چي د ډیورنډ د کرغېړني کرښې و آخوا ته دقیقاً څو میلونه پښتانه ژوند کیي؛ او په هغو کي د هري لهجې وندہ څونه (څومره) ده؟ ایا کله مو په دې خبرو پسي هم سر گرزولئ دئ که یا، چي پښتون اولس په مجموعي ډول او د هغو په بېلابېلو لهجو پوري تړلو قبیلو په خاص ډول، په تېرو دېرشو – څلوېښتو کالو کي څونه وده کړې ده؟ ایا چیري مو د نفوسو د ډېرښت او کمښت د بېلابېلو عواملو په باره کي هم څه اروېدلي دي که څنگه؟!

لکه څنګه چې مې په یو و نیم نورو لیکنو کې هم یادونه کړې ده، د پښتنو د مجموعي شمېر، په تېره بیا د هغو د بېلابېلو لهجو د ویوونکو د دقیق شمېر مالومول، نه یوازې د یوه پوهنځي یا یوه پوهنتون، بلکې یوه دولت تر واک او امکاناتو هم لوړ کار دئ؛ ځکه پښتانه دا ګړی پر افغانستان، پاکستان، هندوستان او استرالیا سربېره، په شمالي امریکا او اوروپا کې هم شاوخوا پاشلي دي.

تر هغه مهاله چې د پراخو بشري، فرهنګي او مالي امکاناتو په شریکولو سره د دغو هیوادو؛ په تېره بیا افغانستان، پاکستان او هندوستان د حکومتو په هر اړخیزه مرسته، د پښتنو دقیقه احصاییه وانخیستله سي، په پښتو کې د دې یا هغې لهجې د اکثریت او اقلیت فتواوې هغه تشې او پوچې خبرې دي، چې هیڅ علمي ملاتړ او تاداو نه لري.

په پخوا زمانو کې به د دې تاریخي مبني بېلابېلو دوښمنانو د خپلو ظالمانه واکمنیو د اوږدولو دپاره په پښتنو کې د غلجي او ابدالي (وروسته دُراني) شیطاني توخمونه پاشل. نن ګورو چې همغه کرغېړني استعماري بازۍ په نورو نومو او پلمو جاري او ساري دي. د یو موټي او پیاوړي افغان ملت پر ځای د دې او هغه قوم د هویت نارې پورته کېږي.

په داسي حال کې چې ټول افغانان، په تېره بیا کړېدلي پښتانه له څه د پاسه څلور دېرشو کالو راهیسي د نړۍ د استعمارګرو دولتو له ظالمانه یرغلو او انساني ضد جګړو سره مخامخ دي، ایا د قومي او قبیله یي نفاق او د دې یا هغې لهجې د «اکثریت» او «اقلیت» پر بابولالي شخوند وهل، د پښتنو د تاریخي دوښمنانو و استعماري نخشو ته خدمت کول؛ او له دې باغروره او خپلواکې مین قام سره نه بخښوونکې جفا نه ده؟ د ډېرې خواشینۍ ځای دئ، چې د پښتنو د غملړلي او ویرجن حالت په دفاع کې همېشه د خیر پر غونډۍ ناست یو؛ د بېلابېلو مصلحتو په وجه تر خولې آه نه باسو، خو وېشلو او پاشلو تې شپه وورځ نغارې وهو!

راسئ د لیکنې په دې برخه کې ټولې خبرې یوې خوا ته کېښېږدو؛ او د ښاغلي زیار صاب له اِدعا سره سم دا خبره و منو، چې «شه»، «شو»، «شي»، «ښښل»، «کېناستل»، «کېښوول»، «کنځل»، «غږ» او داسي نور د «اکثریت» پښتنو تلفظونه دي، سره له هغه هم ایا څوک ځان ته دا حق ور کولای سي، چې د «اکثریت» تحریف سوئ او مسخ سوئ لیکدود، ناسم ګرامري جوړښتونه او نور نیمګړې ژبني خصوصیتونه پر خپل لرغوني ادب او هغو په اصطلاح «اقلیت» پښتنو مقدم او مرجح وګڼي، چې پښت پر پښت یې د خپلو مندو او پلرو سپېڅلې ژبه او نور فرهنګي ارزښتونه خوندي ساتلي دي؟ نور عالَم خو شپه و ورځ کوښښونه کیي. چې خپله ژبه. تاریخ او فرهنګ په اصلي او لرغوني بڼه و ساتي: موږ ښبختو او کورورانو یې ولې په خپلو لاسو و نستولو او ښخولو ته ملاوې تړلي دي؟

سر بېره پر دې. ایا له غلط نظر او ناسم درېځ سره، ولو ټول جهان يې تر شا و درېږي، توافق او ملګرى کولای سو؟ مګر علمي مسألې له هغو څخه د ژبې سم او ناسم، سره او ناسره، د «اکثريت» او «اقليت» په هندسي فارمولو حلېدای سي؟

که د «اکثريت» او «اقليت» هندسي فارمول د معيار په توګه و منل سي، بيا خو د معياري ژبې و پېژندل سوو او منلو اصولو لکه اصالت، اساني، سادګي، پخوالي او داسي نورو ته هيڅ ځای نه پاتېږي. هر ښه و بد چي د «اکثريت» لهجې ويوونکو ويل او ليکل د «اقليت» لهجې / لهجو ويوونکي يې هم بايد په پټو سترګو ومني. ايا عقل او منطق دا منلای سي. چي د ژبې په يوه مسأله کي د «اکثريت» او «اقليت» د فارمول له مخي قضاوت و سي. خو په پاته نورو کي دي و اصالت، اساني، سادګي او داسي نورو اصولو ته د لومړيتوب حق ور کړل سي؟ که «شه»، «شو»، «شي»، «ښېنل»، «کېناستل»، «کېښوول»، «کنځل»، «غړ» او داسي نور د «اکثريت» او «اقليت» د فارمول پر اساس معياري ګڼل کيږي، بيا خو د «اکثريت والاوو» نور ښه و بد هم بايد ټول د معيار په توګه و منل سي.

ايا ستاسي هوښيارو او سترګه ورو لوستونکو په نظر دا متضاد «معيارونه او فارمولونه» له لويه سره و پوهي او منطق ته سپکاوی نه ښکاري؟!

دا عاجز خو د «اکثريت» او «اقليت» پر بنسټ، د ژبنيو او نورو علمي مسألو په حلولو او غوڅولو کي، هيڅ تعقل او منطق نه ګوري. تصور وکئ، په يوه لوی علمي سمينار کي به يو متبحر عالِم او محقق د سلو بې خبرو او تش په نامه محققانو په وړاندي استدلال کيي: سل به يوې خوا خو دی به بلي خوا ته يي. سره له دې هم، ايا څوک دا فتوا ور کولای سي، چي سل پر حقه، يو پر ناحقه دی؟

په دې تاريخي واقعيتو ټول خبر يو، کله چي د اسلام پېغمبر- حضرت محمد(ص) په مکه کي د توحيد بيرغ پورته کئ، خپله قبيله يې (قريش) څه چي زياتره خواره واره عرب هم د بتانو په عبادت او د ډول ډول خرافاتو په لمانځنه بوخت وه؛ ځکه يې نو په پيل کي بې څو ګوتو په شمار کسانو، چا و پيغام او بلني ته غاړه کښېښووله: خو د زمانې په تېرېدو سره يې مليونو عربو او عجمو (ځينو په زور ځينو په رضا) دعوت ومانه؛ او په دې ترتيب يې په يوازي سر د نړۍ د عالمونو فکر او ژوند پر بل مخ واړاوه. د اوروپا له تاريخ څخه هم يوه ښېښه د مثال په توګه را اخلو. څلور سلۍ (سدۍ) يا څلور سوه کاله دمخه د کاتوليکي کليسا مذهبي مشرانو د مځکي ګرزېدو په اړه نه يوازي د نامتو ايټالوي رياضيپوه، فزيکپوه او ستوري پېژندونکي- ګاليلې (۱۵۶۴ - ۱۶۴۲ع) علمي نظريه نه منله، بلکي له کړولو او ځورولو څخه يې هم لاس نه اخيستئ. وروسته وروسته د پوهي او معرفت په غوړېدو سره ټوله نړۍ د دې متفکر او مبتکر انسان د نظريې په سموالي او

ریشتیاوالي قانع سول.

دا خبره سهي ده، چي د بشري حقوقو له نظره و ټولو انسانانو (پوه او ناپوه) ته په یوه سترګه کتل کیږي. په دې خاطر یې رایي هم یوه اندازه ارزښت لري. هر چا چي ډېري رایي تر لاسه کړې. هغه ګټوونکی بلل کیږي. د انګرېزي ژبي (Majority is authority) متل هم په حقیقت کي د دغه راز اکثریت مفهوم بیانیي؛ خو په علمي او منطقي مباحثو کي د «اکثریت» او «اقلیت» فارمول، هیڅ اساس او بنیاد نه لري؛ ځکه په علمي مسألو کي همېشه خلګو د افکارو او نظریو د پخوالي او پیاوړتیا پر اساس فیصله کیږي.

ټام مک آرتر، په خپل مشهور اثر "The English Languages, ۱۹۸۷" کي د انګرېزي ژبي(۵۹) بېلي لهجې په ګوته کړي دي، چي له هغو څخه برتانوي او امریکایي لهجې تر ټولو مشهوري دي، (Jackson and Amvela ۱۴۱) امریکایي لهجه د څه دپاسه درو سوو میلونو وګړو ژبه ده: حال دا چي د برتانوي انګرېزي د ویوونکو شمېر تر اوویا میلونو نه زیاتیږي، سره له دې هم د دغو دوو لهجو تر مینځ په ګړدود، لیکدود، لغوي زېرمه او ګرامري جوړښتو کي لوی او مهم توپیرونه سته، چي له سوو کلو څخه تر اوسه په خپل ټول قوت پاته دي. هیڅ امریکایي پر خپل عددي ډېرښت سربېره، دا نه سي ویلای چي (labour), (defence), (centre) او داسي نور ټکي دي ارمرو د دوی په املا (labor), (defense), ( center) و کښل سي. د لغوي زېرمي په برخه کي هم هره لهجه خپل خاص ټکي، ترکیبونه او عبارتونه کاریي؛ مثلاً امریکایان په خپله لهجه کي (airplane), (yard), (bill) وایي. خو انګرېزان یې پر ځای له (aeroplane), (back garden), (banknote) څخه کار اخلي. د نورو مالوماتو دپاره وګورئ:

Mairi Robinson, Chambers ۲۱st Century Dictionary ۴۳۶.

امریکایي او برتانوي انګرېزي پر وینګ، کښنګ، لغوي زېرمي سربېره، په ګرامر کي هم پراخ توپیرونه لري. دلته یې د «مشت نمونهٔ خروار» په بڼه څو بولګې وړاندي کوو:

که پوښتنه وسي:

Are you coming with us?

په امریکایي انګرېزي(AmE) کې د جواب دپاره وایي: I might.

په برتانوي انګرېزي (BrE) کې د جواب دپاره وایي: I might do.

په امریکایي او برتانوي انګرېزي کي د ظرفي اداتو توپیر په دغو جوملو کي وګورئ:

AmE: She will be coming home **on** weekends.
BrE: She will be coming home **at** the weekends.
AmE: She studied French **in** high school.
BrE: She studied French **at** high school.

په امریکایي انګرېزي کي تر (write) وروسته (to) ادات نه لیکل کیږي؛ په داسي

حال کې چې د داسې اداتو ویل او لیکل په برتانوي انګرېزي کې همېشه ضروري ګڼل کیږي؛ لکه په دې مثال کې:

AmE: I promised to **write her** every day.

BrE: I promised to **write to her** every day.

د دغه راز توپیرو هراړخیزه شننه او څېړنه لو او اوږده کیسه ده. په دې لنډه مقاله کې د پراخوالي او ژوروالي حق نه سي ادا کېدلای. په دې لنډیز کې د مشهور آیرلنډي لیکوال او شاعر - اوسکار وایلډ (۱۸۵۴ - ۱۹۰۰ع) او نامتو آیرلنډي لیکوال، نقاد او ډرامه لیکوونکي- جورج برنارډ شا (۱۸۵۶- ۱۹۵۰ع) د عالمانه ویناوو په یادونه بسنه کوو، چې د بې شمېره ټکو په وینګ، کښنګ، ماناوو، ګرامري سکښتو او جوړښتو کې د انګرېزانو او امریکایانو تر مینځ ژور توپیرونه او اختلافونه په خورا په زړه پوري او ظریفانه بڼه بیان کړي دي. اوسکار وایلډ لیکي: «بې له ژبې، انګرېزان او امریکایان له هره اړخه یو شی دي». برنارډ شا وایي: «انګلیستان او امریکا دوه داسې هیوادونه دي، چې د یوې ژبې (انګرېزي) په وسیله سره بېل سوي دي». د نورو تفصیلاتو دپاره دا ویبپاڼه وګورئ:

http://resources.woodlands-junior.kent.sch.uk/customs/questions/langdiffer.htm

د دې دوو نومیالیو پوهانو او لیکوالو په ویناوو کې له ورایه ګورو، چې انګرېزي ژبه د انګرېزانو او امریکایانو تر مینځ د یووالي او پیوستون نه، بلکې د هغوی د جلاوالي او اختلاف یوازنۍ وسیله ګڼل کیږي.

که د «اکثریت» او «اقلیت» معیار ریښتیا هم په ژبه کې څه مصداق لرلای. نو انګرېزانو به وخت لا د امریکایانو ګړدود، لیکدود، ګرامري جوړښتونه او نوي ټکي (نیولوجیزمونه) خپل کړي وای؛ ځکه انګرېزي ژبپوهان تر هر چا په دې خبره ښه پوهیږي، چې څنګه د انګرېزي ژبې د پاشلتیا او څو رنګۍ پر ځای د یوې لنډې، ساده او اسانه معیاري انګرېزۍ پیروي وکې؛ خو سره له هغه هم د سر په سترګو ګورو، چې انګرېزان پر خپلو اصیلو او لرغونو تلفظو، املاوو او ګرامري قواعدو ټینګ ولاړ دي. که څه هم په زیاترو اختلافي مواردو کې امریکایي لهجه تر برتانوۍ لهجې لنډه، ساده او اسانه ده.

که د «اکثریت» او «اقلیت» معیار ریښتیا هم د ژبپوهنې د اساساتو او اړتیاوو له مخې څه علمي وزن او ارزښت لرلای، انګرېزي ژبپوهانو به هیڅکله له امریکایانو څخه خپله لار نه بېلولای؛ ارومرو یې باید د امریکایي لهجې و «اکثریت» ته غاړه ایښې وای؛ حال دا چې پر خپله اصیله او لرغونې لهجه یې ټینګار او درېدل له ورایه دا زباتیي، چې هیڅکله خپل سره زر د چا پر پیتلو نه ور کیي. امریکا پر خپل ټول سیاسي، عسکري او اقتصادي ځواک سربېره هم تر اوسه د برتانوۍ انګرېزۍ علمي ارزښت نه دئ لږ کړئ. په تعلیمي، تحصیلي، اطلاعاتي، علمي او تحقیقي مؤسسو کې که تر امریکایۍ انګرېزۍ لوړ ارزښت و نه لري، کښته خو

هیڅکله نه ده. تاسي د میډیا ځینو بین المللي شبکو لکه «بي. بي. سي»، «سي. این. این.»، «الجزیره» او داسي نورو ته وګورئ له افغان، پاکستاني او هندي څخه نیولې بیا تر افریقایي، چیني، جاپاني، سینګاپوري، استرالیایي اورو پایي، امریکایي، کاناډایي او داسي نورو پوري، ډول ډول توکمونه او ټبرونه څنګ پر څنګ کار پکښې کیږي. هیچا ته نه ویل کیږي، چي ایشو (issue) مه وایه ایسو و وایه یا آفټن (often) مه وایه، آفن و وایه. هر خبریال او ویاند د انګریزي ژبي د څو منلو لهجو (برتانوي، امریکایي، استرالیایي او داسي نورو) په انتخاب کي پوره ازادي لري. موږ غوندي نه دي چي و وایي: «سه»، «سو»، «سي» مه وایه، پر ځای یې ارومرو «شه»، «شو» او «شي» و وایه، که نه نو د هیواد په رادیو او تلویزون کي له کاره شړل کیږې! دې خلګو څکه پرمختګونه کړي دي، چي ټولو علمي مسألو ته د عقل او منطق له عینکو ګوري. دوی پوهیږي چي د یو قام معیاري ژبه په زور او جبر مینځ ته نه راځي، بلکي د مختلفو لهجو نیږدېوالی او یوځایوالی په پای کي د یوې منلي معیاري ژبي و جوړولو ته شرایط او امکانات برابریږي؛ خو زموږ بېبختو تر اوسه په دې واقعیت سد نه رسیږي، چي د یوه ټبر د دې یا هغې لهجې ایسته کول یا پیکه کول نه یوازي د هغه ټبر د معیاري ژبي له را مینځ ته کېدو او غوړېدو سره مرسته نه کیي، بلکي د معیاري کېدو په لار کې ډېر لوی خنډونه او ځنډونه پېښیږي.

د لیکني په دې برخه کي د د «اکثریت» او «اقلیت» بابولالي پر عملي نتیجو څو خبري کوو؛ او درنو لوستونکو ته په مستند ډول ښیوو، چي د ډېري او لږي په بابولالو سره زموږ خواره او نتلې پښتو له لا نورو ستونزو او جنجالو سره مخامخ کیږي.

- که د زیار صاب د «اکثریت» او «اقلیت» بابولاله د اصل او معیار په توګه و منو، بیا خو هر ځای باید (ښ) او (ږ) فونیمونه په (خ) او (ګ) واړوو. یاني «پښتون»، «کښېناستل»، «نخښه»، «ښکنځل»، «ږغ»، «ژلی» او داسي نور ټکي هر ځای د «پختون»، «کیناستل»، «نخه»، «کنځل»، «غګ»، «ګلی» او داسي نورو په بڼه و وایو؛ څکه د زیار صاب په فتوا د دغه راز تلفظ ویوونکي ډېر دي؛ په داسي حال کي چي دا ټکي د پښتو ادب په ټولو لرغونو اثارو کي په خپله اصلي بڼه یاني د «پښتون»، «کښېناستل»، «نخښه»، «ږغ»، «ژلی» او داسي نورو په ډول راغلي دي. دلته یې له ځینو چاپي متنو (په داسي متنو کي کله کله د مصححانو له خورا اریانوونکو تېروتنو او لاسوهنو سره مخامخ کیږو، چي پلټنه او څېړنه یې د دې لیکني موضوع نه ده) څخه څو نمونې وړاندي کوو:

کاشکي ځوان د پښتانه په ننګ کي مړ وای
نه چي ګـــور لـــره روان شـــه له تلتکه
(د خوشال خان خټک کلیات ۵۹۹)

*** *** ***

اسماعیل غوندي به دی را ته تسـلیم و
که په خلق مې د نظام کښېښوه ګزلکه
(د خوشال خان خټک کلیات ۵۹۹)

***   ***   ***

پهدولت کې په حشمت کې که سنجر شي یا طغرل شي
یوه نخښه را ښکاره کړه له سنجره له طغرله
(د خوشال خان خټک کلیات ۶۰۱ )

***   ***   ***

د خوب په ځای چې سوال وکړای و تاته
زه خســـته دې په ښکنځلو سرفراز وای
(د خوشال خان خټک کلیات ۷۳۱)

***   ***   ***

چې په ږغ د زلزله راشي بابنه ستا ده
چې په ږغ دې شیدا نه وي د هوا ده
(د خوشال خان خټک کلیات ۹۴۶)

***   ***   ***

کله سول . کله ژوندون . بخښل و ماته
د عشق اوره په ما چارې د ققنس کړه
(د خوشال خان خټک کلیات . لومړی ټوک ۲۶۸)

که «کیناستل» او «کنځل» د اکثریت لهجه ده. «نخه». «پختون». «غگ» او داسې نور ولې نه دي؟ زیار صاب او ملګري یې ولې دا او داسې نور ټکي هم د «اکثریت» په لهجه نه کاږي؟! ایا د ژبپوهنې علمي فتوا دې ته وایي؟!

- که د «اکثریت» او «اقلیت» بابولالي ته غاړه کښېږدو. بیا خو هیڅ. هیڅکله. هینداره. حیوان. حیران (موږ یې د اریان په مفغنه بڼه وایو او لیکو). خیرات. خیرخانه. امپریالیزم. ژورنالیزم. سیستم/سیستم او سوونه نور هم ګرده باید د معروفې یا څرګندې یاء پر ځای په مجهوله یا اوږده یاء وکاږو: ځکه د ښاغلي زیار په نېږ خو د «اکثریت» پښتنو تلفظ دغسې دئ: هېڅ. هېڅکله. هېنداره. حېوان. حېران. خېرات. خېرخانه. امپرېالېزم. ژورنالېزم. سېستم/سېستم او داسې نور: حال دا چې دا ډول تلفظونه له دغو معصومو کلیمو. په تېره بیا پردو ټکو لکه امپریالیزم. ژورنالیزم. سیستم/ سیستم او داسې نورو سره لوی ظلم دئ.

- زیار صاب «استدلال» کیي. چې «اکثریت» پښتانه «اوربل». «اولس». «اوسپنه». «اوړه». «اوریشي». «اوریځ». «اینه» او داسې نور ټول بې واوه یائي د «وربل». «ولس». «وسپنه». «وړه». «وربشي». «وریځ». «ینه» او داسې نورو په بڼه وایي: ځکه نو باید هر ځای د معیار په توګه و منل سي: حال دا چې زموږ لرغونی ادب هر ځای دا ټکي په الف کاږي: او جنوب - لوېدیځې تر اوسه دا دود ساتلئ دئ. دلته یې ځینې مثالونه وړاندې کوو:

اوربل دې پر ښووی واته کړې!
پرمــــا د بل اور کــــړوون راغی
(شیخ تیمن . د پټې خزانې فرهنګ . لومړی برخه ۴۳)

***   ***   ***

درست اولس . قبیله واړه
ګرفتار په ډېر غضب شول
(خوشحال خان خټک . له کندهاره تر اټکه ۱۰۲)

***   ***   ***

که د اوسپنو کلا وي چې بخت یار شي
خاوند خدای به یې اسانه لکه شېول کا
(د خوشال خان خټک کلیات ۸۳۹)

***   ***   ***

ستا نه خوږه نه مې خوږینه ده بله
ځــکه هسې زهــره کېږي په سینه
(خوشحال خان خټک . له کندهاره تر اټکه ۱۰۴)




د زيار صاب «اکثريت پښتانه» نه يوازي «اينه» بې الفه کاږي. بلکي د قافيې د نورو ټکو پر خلاف يې د لومړي څپې په فشار وايي: حال دا چي د خوشال خان خټک په مخکني بيت او پښتو لرغوني ادب کي هر ځای د دوهمي څپې په فشار راغلې ده: لکه آرَه، تېشَه، تَغمَه، سينَه او داسي نور. برعکس، د جنوب - لوېديځي لهجې ويوونکو يا د زيار صاب په باور «اقليت پښتنو» د خپل لرغوني ادب دا اصالت تر اوسه ژوندی ساتلی دی:

لا که مخ له خال و خطه آب و تاب ډېر
ولې تاب وي د اوريځي. د آفتاب ډېر
(حميد مومند، له کندهاره تر اټکه ۹۷)

*** *** ***

چې اوربشي کري کله غنم ربې
پته نه ده څه کرې هغه آخلې
(خوشحال خان خټک. له کندهاره تر اټکه ۹۲)

- که د جناب زيار صاب په فرمان په پښتو کي د «اکثريت» او «اقليت» فارمول په نظر کي و نيسو، بيا خو د پښتو ځيني ټکي لکه «ورونه»، «انګړ»، غين (د دې او مقابل ټکي د يادوني له بابته يې بخښنه غواړم)، «بارخو» او داسي نور بايد د «ورونه»،« انګړ» «غين»، «بارخو» او داسي نورو په بڼه وليکو: په داسي حال کي چي دا ټکي زموږ په لرغوني ادب کي هر ځای په «ن» او «ړ» راغلي: او د جنوب - لوېديځي لهجې ويوونکو هم تر اوسه په خپله اصيله او لرغونې بڼه ژوندي ساتلي دي. دلته يې څو مثالونه وګورئ:

چې په ورونو کې نفاق کا نالايق دی

يا يې ښــــه کــړه يا يې مه ګرځوه نور
(د خوشال خان خټک کليات ۴۱)

*** *** ***

زه د غين لــه لاســـه چـــا و ته فرياد کړم
لمونځ زما له لاسه وو ځي چې کوس ياد کړم
(د خوشال خان خټک کليات ۶۴۵)

*** *** ***

بارخو ئې نه دئ ګلِ ګلاب دی
زلفي ئې طعن د مشکِ ناب دی
(خوشحال خان خټک. له کندهاره تر اټکه ۲۲۱)

*** *** ***

خوسي. ورغومي په کې کوتې
خـــاوري ســـرې درست انګڼ
(د خوشال خان خټک کليات ۷۱۹)

«آنګڼ ăngan» سوچه او خالصه سنسکريت کليمه ده. چي د «انګنه ağgana» او «انګنم ağganam» په بڼو هم راغلي ده. په هندي ژبه کي هم تر اوسه د «آنګڼ» په بڼه باب ده. وروستي نون يې په پراکريت او ځينو نورو هندي الاصله ژبو کي غونه (غُنه) پيدا کړې ده. پښتو لرغوني ادب او جنوب - لوېديځي لهجې هم د «آنګڼ» په ډول خوندي ساتلی دی. د ايتيمولوژۍ او مقايسه يې څېړني دپاره يې وګورئ:

John T. Platts ۹۷; Sir Turner R. Lilley ٦; Veman S. Apte ۲٦.

عجبه خبره ده. زيار صاب او د هغه ملګري د څه دپاسه ديرلسو سوو کالو زړې عربي او پارسي کليمې له پښتو څخه باسي او پر ځای يې کله هندي. کله د ايرانيانو يا خپل خودساخته ټکي رواجيي. خو دلته بيا ګورو. چي د څو زره کلني زړې سنسکريت

کلیمې پر ځای له خپل مورنې یا لهجه یې تلفظ سره سم «انګړ» بڼه تر «انګڼ» معیاري ګڼي؛ او نور مقلدان یې هم په پټو سترګو پېښې کیږي. نه پوهېږم، چې دلیل یې بې خبري ده،که د «اکثریت» او «اقلیت» په نامه لېونی تعصب یا دواړه؟!

- هغه پښتانه چې زیار صاب یې «اکثریت» بولي، ځیني ټکي لکه «پړکېدل»، «ټوکه»، «کم عقل»، «چکړ»، «کاغذ» او داسي نور د «پړقېدل»، «ټوقه»، «قم عقل»، «چقړ»، «قاغذ» او داسي نورو په ډول وايي، چي د درست جهان په عربو او عجمو کې ساری نه ښکاري. له جناب زیار او ملګرو څخه زما پوښتنه دا ده: که «ښنبل»، «کنځل»، «کېښوول»، «غږ»، «ورونه»، «انګړ» «غین»، «بارخو» او داسي نور د «اکثریت پښتنو» لهجه یي، بیا خو «پړقېدل»، «ټوقه»، «قم عقل»، «چقړ»، «قاغذ» او داسي نور ولي د «اکثریت » لهجه نه سي بلل کېدلای؟! مګر دا ټکي د «اکثریت والاوو» په خبرو او محاورو کي شپه او ورځ نه کارېږي؟!

- که «ښنبل»، «کنځل»، «کېښوول»، «غږ»، «ورونه»، «انګړ»، «غین»، «بارخو» او داسي نور د اکثریت لهجه یي، «جوند»، «ګلۍ»، «جبه»، «جوبل»، «جَوَر»، «جرنده» او داسي نور ولي د «اکثریت پښتنو» په لهجه کي نه راځي او معیاري نه ګڼل کیږي؟! ځکه «ژوند»، «ژوبل»، «ژلۍ»، «ژبه»، «ژور»، «ژرنده» او داسي نور خو د ښاغلي زیار صاب په فتوا ټول د «اقلیت پښتنو» تلفظونه دي. ایا دا ټول باید د «اکثریت» او «اقلیت» د «قاعدې» له مخي له استعماله و نه لوېږي؟!

- نېخه چي زیار صاب ولي ځیني مغیره فاعلي جمعي لکه «سړو»، «ارتینو»، «زلمو»، «پسرلو» او داسي نور د «اکثریت» په ټل کي نه راولي؛ او له ځانه اضافي یاء په ګډیي؟ په بله وینا د «سړو»، «زلمو»، «پسرلو» او داسي نورو پر ځای «سړیو»، «زلمیو»، «پسرلیو» کاړي. که څه هم د پښتو پر لرغوني ادب سربېره یې د «اکثریت پښتنو» په شفاهي او لیکلي ادب کي هم پراخ استعمال ګورو. دلته یې د پښتو له لرغوني ادب څخه څو نمونې وړاندي کوو:

هومره ښه دي خال و خط را سره وکړه
چي راوي ایستم لـه اوره په اغـــزو
(د حمید دیوان لاهور چاپ ۱۰۳، د پټې خزانې فرهنګ، لومړۍ برخه ۸۰)

*** *** ***

کوم اختر دی نوی شوی په هوسو نن
چي کوي مبارکي سره هــر ســـو نن
(نیرنګ عشق دهلی چاپ ۵۶، د پټې خزانې فرهنګ، لومړۍ برخه ۸۱)

*** *** ***

ارتینو وې ســـندري
فرشتې شولې حاضري
(د صدر خان نبوي معجزات، د پټې خزانې فرهنګ، لومړۍ برخه ۲۰)

*** *** ***

لېونتوب له لـــېونو نه تلونی نه دی
که ئې راج په ځونه ور شي که تاراج
(رحمان بابا، له کندهاره تر اټکه ۶۳)

*** *** ***

وې ئې څه له ګذشته وو شر و شور کړئ
دژوندو ترانه واورئ مــــړه در ګــور کړئ
(حمید بابا، له کندهاره تر اټکه ۶۳)

– که د «اکثریت» او «اقلیت» بابولاله معیار و ګڼو، بیا خو ټول (oxytone) ټکي (هغه ټکي چي په ویلو کې فشار پر وروستۍ څپه دئ) باید د (paroxytone) ټکو په بڼه و وایو، چي فشار یې په ویلو کي پر لومړۍ څپه دئ؛ لکه: دندَه (جمع یې دندې)، جګړَه (جمع یې جګړې)، اغېزَه (جمع یې اغېزې)، وړانګه (جمع یې وړانګې)، بولګه/ بېلګه (بولګې/ بېلګې) او داسي نور، چي ټول اصلاً اکسیټون ټکي دي؛ او د دوهمې یا وروستۍ څپې په فشار ویل کېږي، خو د زیار صاب «اکثریت پښتانه» یې په تېروتني سره د لومړۍ څپې په فشار وایي؛ لکه: دَنده (جمع یې دندي)، جَګړه (جمع یې جګړي)، اَغېزه (جمع یې اغېزي)، وړَانګه (جمع یې وړانګي)، بَېلګه (جمع یې بېلګي) او داسي نور. و جناب زیار صاب ته دا مهمه نه ده، چي د دغو ټکو سهي او اصلي تلفظ څه ډول دئ؛ په پښتو ادب کي څه شکل لري؛ او بالاخره په نورو پښتو لهجو کي څرنګه ویل کېږي. په دې چي زیار صاب او د هغه ملګري دا او داسي نور ټکي د اصل او قاعدې پر خلاف د لومړي سپوڼ په فشار وایي؛ څکه نو باید د «اکثریت» نوم ورکړل سي؛ او د هر چا له خوا په معیاري توګه و منل سي.

– که د زیار صاب د «اکثریت» او «اقلیت» فارمول په پام کي ونیول سي، بیا خو ظرفي کښې/ کي هم باید هر چیري د «اکثریت» په ناسمه بڼه یاني په مجهوله یا اوږده یاء و لیکل سي؛ حال دا چي زموږ په لرغوني ادب کي هر چیري ظرفي یاء په معروفه یا لنډه یاء راغلې ده؛ او جنوب – لوېدیځي لهجې هم دا دود او دستور په همغه اصلي او لرغوني بڼه خوندي ساتلئ دئ؛ لکه: «په کور کښې/ کي»، «په باغ کښې/ کي»، «په میاشت کښې/ کي»، «په کال کښې/ کي» او داسي نور. زموږ مدققو او اندېښمندو متنپوهانو ته څرګنده ده، چي د پښتو په زړو خطي نوخسو (نسخو) کي هر ځای «کښې» کلیمه د «کښې یې» په مفهوم کار سوې ده، نه د ظرفي یاء په مانا. پر «کښې» سربېره، تې د (ته یې)، بې د (به یې)، چې د (چي یې)، څې د (څه یې)، کې د (که یې) او مې د (مه یې) په مخففه بڼه کار سوي دي؛ لکه د بیاض په دغو بیتو کي، چي د دېوان فاضل مصحح او محشي یې هم په حاشیو کي یادونه کړې ده:

چې منتر د محبت را بانـــدي پو کـــه
خبردار په حال د زمکې د آسمان شوم
(د بیاض دیوان ۸۷)

د دې بیت په اوله میسره کي «چې» د «چي یې» مخففه بڼه ده.

چه جادو د خپل ښایست را باندي پو که
و دیـدن تې ارزومـــــند د یوه نـــوک یم
(د بیاض دیوان ۷۲)

د دې بیت په دوهمه میسره کي «تې» د «ته یې» مخففه بڼه ده.

تر خپل یار پورې بې مخ په خـــپله روڼ شي
چه په عشق کښې بې حرمت شي له هر بابه
(د بیاض دیوان ۸)

د مخکني بیت په اوله میسره کي «بې» د «به یې» مخففه بڼه ده.

دغه ډول مخففات تر اوسه پوري د پښتو د جنوب –لوېدیځي لهجې په ورځنیو

محاورو کې پراخ استعمال لري.

د زیار صاب په « اکثریت » لهجه کې مو د مجهولي یا اوږدې یاء د ناسم استعمال په اړه خبره کوله، چې د کلیمو په ماناوو کې و پراخ التباس ته لار هواره کړې ده. دلته یې د «مشت نمونهٔ خروار» په دود څو مثالونه وګورئ:

مستي (خوښي، ښحالي، ښهوښي، د نشې حالت)

مستې (له شیدو څخه جوړ سوي خواړه)

پېښي (حوادث، واقعات)

پېښې (تقلیدونه، د چا نقلونه کول)

کډي (کوچونه، بارونه او بسترې)

کډې (په لار کې غوچ ځایونه یا ډبونه)

چاري (د چار جمع. کارونه، امور)

چارې (د چاره جمع. علاجونه، د مخنیوي لارې، د حل لارې، سرریښتې)

لري (۱لیري، د نیږدې/ نږدې/نږدې ضد. ۲په ساده حال زمانه کې د غایب شخص دپاره د لرلو صیغه؛ مثلاً: احمد ښه موټر لري)

لرې (د لرلو ندايیه (vocative) صیغه: مثلاً : احمده ښه موټر لرې !)

ولي(۱د «وله (په پارسي کې ښد)» جمع. ۲د پوښتني یا استفهام ټکی، پر څه؟ په څه دلیل؟ چرا؟)

ولي (د «وله - اوړه » اضافي (genitive) حالت؛ لکه د ولي په مینځ کې یې دانه راختلې ده).

ولې (د «والې» لنډه بڼه، د ویالې/ بیالې/ یالې مغیره حالت).

کوټي (د «کوټه» جمع. خرې. خرمنونه، کوټنۍ، دلۍ)

کوټې (د «کوټه» جمع. خونې)

دا ټولې کلیمې په هغه لهجه کې، چې ښاغلی زیار صاب یې «اکثریت» بولي، په اوږده یاء لیکلې کیږي؛ او په دې ترتیب لوستونکو ته د هغو په مانا پېژندنه کې لوی کړاو او سرخوږی پېښیږي. ژبپوهان په تېره بیا د سمېزیالوژۍ یا سیمانتیکس (ماناپوهني) استادان ترګرده سپارښتنه کیږي، چې په ویلو او لیکلو کې باید همېشه د امکان تر حده د داسې ګډوډییو او التباسو مخه و نیول سي، خو زیار صاب د خپل جعلي او خودساخته فارمول د تحقق په خاطر هیڅکله هغو ته د ګډوډییو او التباسو په سترګه نه ګوري. د پښتنو دا متل د ښاغلي زیار د ژبپوهني له متضادو اصولو سره ښه سر خوري، چې وایي: «خپل عیب د ولي مینځ، د بل عیب د کلي مینځ».

- که د «اکثریت» او «اقلیت» بابولاله معیار وګڼو، بیا خو د زیار صاب د فتوا له مخي باید د «اقلیت والاوو» ځیني جمعي لکه «غواوي»، «لوښي»، «نجوني» او داسي نور په «غواګاني»، «لورګاني/لوراني»، «جنکۍ/ جنکیاني» واوړي. د «لمر»، «لمانځل»، «لمونځ»، «لمسی» او داسي نورو پر ځای باید «نمر»، «نمانځل»، «نمونځ»، «نمسی/ مسی» وکښل سي. «لاړ»، «مړانه»، «مړنی» او داسي نور هم

په «لاره/ ليار»، «مېرانه»، «مېړنی» او داسي نورو اليش سي. «وچلی». «شړومبې/ تروې»، «پتون»، «برستن». «شمله»، «شين»، «گني»، «گلپي». «لېږو». «ورزش/بدني روزنه». «دوزخ» او سوونه نوري کليمې بايد د «تندي». «شلومبې». «ادوم، ورون». «تلتک». «جوغې». «زرغون». «گوندي». «گوبي». «بيندۍ». «کسرت». «دوږخ» او داسي نورو ځای ونيسي: حال دا چي نه يوازي د پښتو لرغوني ادب په دې تکو ډک دئ. بلکي ميلونونه پښتانه يې شپه وورځ په خبرو او مرکو کي کاريي. دلته يې د پښتو له پخواني ادب څخه څو مثالونه وگورئ:

څو چې لونې وي په کور کې
په کــــور وي هـــــومره بلا
(د خوشال خان خټک کليات ۷۲۵)
*** *** ***

سردار ته بويه دا يو څو کاره
چې مړنی وي زمـــا عـــزيزه
(د خوشال خان خټک کليات ۴۱۹)
*** *** ***

ترکو ډېر په خپلو زلفو دي نيولي
زاهـدان دي لافي نه کاد مـــړاني
(د عبدالحميد مومند ديوان ۳۸۶)
*** *** ***

گوندې وي چې دوصال په خوښۍ خوښ شي
چې خـــوشحال په جــداييه کې ډېر نول کا
(خوشحال خان خټک، له کندهاره تر اټکه ۳۰۸)
*** *** ***

ته به هر يوه ته حال وايې خوشحاله
د لېمو په حـــــال خبر کله ادوم دئ
(خوشحال خان خټک، له کندهاره تر اټکه ۲۰۵)

کسرت، بېندۍ او گوبی درې سره له هندي سره زموږ پخواني مشترک ټکي دي، چي «گلپي»، «لېږو» او «ورزش/بدني روزنه» يې د بېلابېلو دلايلو له مخي ځای نه سي نيولای. وتلی او منلی ژبپوه – ج. مورگنستيرنه (۱۸۹۲– ۱۹۷۸ع) د پښتو په ايتيمولوژيک قاموس کي «دوږخ» د پښتو لرغونی ټکی بولي، خو زيار صاب يې د «اقليت» په گونا له چلنده غورځيي: او پر ځای يې د پارسي ژبي «دوزخ» درېي. د تفصيل دپاره وگورئ:

Georg Morgenstierne ۲۳.

زموږ سترگه ور ژبپوهان او گرامرپوهان گوري، چي د «اکثريت پښتنو» ځيني ټکي د گرامر او مانا له اړخه کمزوري او حتا ناسم دي: مثلاً په پښتو کي د «غوا» جمع «غواوي»، د «لور» جمع «لوڼي» او د «نجلۍ» جمع «نجوني/ اينجوني/انجوني» راغلي دي، په داسي حال کي چي په «اکثريت» لهجه کي دا جمعي د «غواگاني»، «لورگاني/ لوراني» او «جنکۍ/ جنکياني» په بڼه ويل کيږي. په «اکثريت» لهجه کي د جوغې او شملې تر منځ هم توپير نه کيږي. په بله وينا، شمله د جوغې پر ځای کاريي: او شملې ته له لويه سره بېله کليمه نه لري. په جنوب – لوېديځه لهجه کي، چي زيار صاب يې د «اقليت» پښتنو «بې قاعده» لهجه بولي، د جوغې او شملې تر منځ روښانه توپير ليدل کيږي. جوغه د بگړۍ/ پگړۍ يا دستار په پورتني برخه کي کوچنۍ جگې ولاړې

برخي ته ويله کيږي: په داسي حال کي چي شمله د لنګوټې و هغي برخي ته ويله کيږي، چي له سر څخه د زنګنو و خوا ته شَوَه / شېوه سوې يي. د پښتو په لرغوني ادب کي هم کټ مټ په همدې مفهوم راغلې ده. د خوشال خان خټک او اشرف خان هجري په کلام کي بولګې وګورئ:

يو ځل بيا سر توره مسـته را ښـکاره شـه!
چې ګيسو دې پر سپين مخ شملې شملې
وي (خوشحال خان خټک، له کندهاره تراټکه ۲۷۸)

*** *** ***

توري زلفي دي دائم شملې شملې دي
له ښه مخه دي هر ګز مه شه جـدا نور
(اشرف هجري، له کندهاره تراټکه ۲۷۹)

د خوشال خان خټک او اشرف خان هجري په تېرو دوو بيتو کي له ورايه ګورو، چي شمله هم د سر د ويښتانو غوندي پر مخ را شوَه سوې يي، نه جوګې غوندي چي په هوا کي شکه ولاړه يي. پر دغو دلايلو سربېره، زيار صاب د «اکثريت» او «اقليت» بابولالي په پلمه ټول پښتانه اړ باسي، چي دا ټکي هر ځای په غلط مفهوم استعمال کي.

– د جناب زيار صاب په «اکثريت» لهجه کي عام خلګ، تازه کاره ژورناليستان او ليکوال څه چي د لوی نامه او نښان ليکوال او څېړونکي هم د «په» او «پر» په استعمال کي له تېروتنو او مشکلاتو خلاص نه دي. ښايي ځيني ګوتو په شمېر کسان به، په تيوري کي، په دې ظريفو او حساسو فرقو پوهېږي، خو په عمل کي د مورنۍ يا سيمه ييزې لهجې د ژور نفوذ په وجه له تېروتنو څخه ځان نه سي ژغورلای. کله «په» د «پر» پر ځای کارېږي او کله هم برعکس. عجبه خو دا چي پوهاند ډاکټر زيار صاب په خپله هم له دې مشکله خلاص نه دئ. په خپل ژوندليک کې ليکلي دي، چي «پټه خزانه» يې پر الماني ژباړلې ده. نېخه چي «پټه خزانه» څنګه پر الماني ژباړل کيږي؟

http://kitabtoon.com/zhwandlikona/akademik/item/۵۵۹-pohan-zyar

که څه هم په نورو ليکنو کي مو هم د «په» او «پر» په باره کي ځيني توضيحات وړاندي کړي دي، دلته يې بيا هم لنډه يادونه بېځايه او بې ګټې نه بولو:

«په» آلي (instrumental) او ظرفي (locative) ادات (preposition) دئ، چي په ځينو حالاتو کي د انګرېزي ژبې د (by) او په ځينو نورو حالاتو کي د دې ژبې د (in) وظيفه سرته رسيي؛ لکه: «په قلم ليکل»، «په توره وهل»، « په ګولۍ ويشتل» او داسي نور. په دغو مثالو کي «قلم»، «توره» او «ګولۍ» آلې يا آلات (instruments) دي، چي «په» يې د آلي (instrumental) ادات په توګه مخ ته راغلئ دئ. په ظرفي بڼه د دې ادات ځيني مثالونه داسي دي: «په کور کښېي/ کي»، «په باغ کښېي/ کي»، «په مياشت کښېي/ کي»، «په دقيقه يا ساعت کښېي/ کي» او داسي نور، چي لومړي دوه يې د مکان ظرفونه او وروستي دوه يې د زمان ظرفونه دي.

«پر» هغه ادات دئ، چي زياتره د شيانو د ځايځايګي يا موقعيت ښوولو دپاره کارېږي: څکه يې نو د ځای يا موقعيت

ښيوونکي (positional/ locational) ادات په نامه هم يادولای سو؛ لکه: «کتاب پر مېز پروت دئ»؛ «قلم پر کتاب پروت دئ»؛ «د احمد پر مخ دانه راختلې ده»؛ «سرپوښ پر دېگ پروت دئ» او داسي نور. په دې ترتيب، د پښتو «پر» د انګرېزي له (on) ادات سره پوره ورته والی لري. البته، «پر» د ځای يا موقعيت ښوولو تر څنګ، په هغو موارد و کي هم کارېږي، چي د يو شي يا يوې موضوع په باره کي خبري کوو؛ لکه: «د ادبي نقد استاد پر موډرنيزم خبري وکړې»؛ «احمد د هوسۍ پر خبرو وخندل» او داسي نور. په دې مفهوم هم، پښتو «پر» له انګرېزي (on) سره بشپړه يورنګي لري. البته، مخکنۍ جوملې په دې ډول سهي نه دي: «د ادبي نقد استاد په موډرنيزم خبري وکړې». يا «احمد د هوسۍ په خبرو وخندل».

د «په» او «پر» التباس کله کله د جوملو په مانا کي خورا لويي پېچومي او جنجالونه پېښيي، چي بايد همېشه يې په ټينګه مخ و نيول سي؛ مثلاً که څوک و وايي: «احمد يې په موټر و واهه» د دې مانا دا ده، چي احمد د موټر په وسيله وهل سوئ دئ يانې موټر يې د وهلو يا ټپي کولو وسيله وه. که و ويل سي: «احمد يې پر موټر و واهه» مانا يې دا ده، چي پر موټر شخړه او لانجه پېښه سوه؛ او په نتيجه کي احمد و وهل سو. يو په دوه يانې دوه چنده (مضاعف). يو پر دوه يانې نيم. په غاړه کول يانې په غاړه اغوستل؛ لکه هار يا امېل په غاړه کول. پر غاړه کول يا پر غاړه ورکول يانې مسووليت ور سپارل؛ مثلاً د کور کار مي د دې پر غاړه کښېښاوه.

شک نسته چي په ځينو حالاتو کي د «په» او «پر» اداتو مفاهيم تر وړاندي سوو پولو او حدودو تېرې کيي؛ مثلاً د ورځو او ساعتو په برخه کې داسي کاروو: د دوشنبې په ورځ پر شپږو بجو. «په» د ورځي دپاره او «پر» د بجو دپاره.

د دغو لنډو توضيحاتو په رڼا کي، که څوک و وايي چي په جرمنۍ ژبه يې ليکنه کړې ده، مانا يې دا ده چي د ليکنې ژبه يې الماني ده يا ليکنه يې په الماني ژبه ده. که و وايي چي پر الماني يا جرمني يې ليکنه کړې ده، مانا يې دا ده چي د الماني يا جرمني ژبې په باره کې څه کښلي دي. جناب زيار صاب هم بايد ليکلي وای، چي «پټه خزانه» يې په الماني، نه پر الماني ژباړلې ده. هيڅکله نسو ويلای: «کيلي پر جعبه کښبي/ کي ده»؛ ځکه هر وخت چي ظرفي (کښبي/ کي) کاروو، اورمرو يې بايد په سر کي «په» ادات راوړو، نه «پر»؛ لکه: «په کور کښبي/ کي»؛ «په کال کښبي/کي»؛ او داسي نور. «پر کور کښبي/ کي»، هيڅ مانا نه لري. (دمګړی دا لنډ توضيحات کافي ګڼو. نوري خبري او د بېلابېلو ليکوالو له تېروتنو څخه مستند مثالونه و راټلونکو وختو ته پرېږدو. که ژوند ياري وکړه له زياتو مثالو سره به يې وړاندي کو).

که د «اکثريت» او «اقليت» په بابولالو پسي و ګرزو، بيا خو د «په» او «پر» ګډوډي هم بايد د پاخه کاني په توګه و منو؛ ځکه د «اکثريت» لهجې ټول حضرات له دې

ځنجال او تېروتنې سره لاس او ګرېوان دي.

- که د «اکثریت» او «اقلیت» په باب د جناب زیار صاب فتوا ریښتیا هم څه وزن او ارزښت ولري، بیا خو «دوه ورځې»، «دوه کتابچې»، «دوه نارې» او داسې نور عبارتونه هم باید د مسلماتو په حیث ومنو: ځکه د ښاغلي زیار صاب «اکثریت» پښتانه «دوې ورځې»، «دوې کتابچې»، «دوې نارې» او داسې نور د «دوه ورځې»، «دوه کتابچې» او «دوه نارې» په ډول وايي.

- پښتو ژبپوهان او ګرامر پوهان په دې خبره ښه پوهېږي، چې په پښتو جوملو کې د نرې، د یو و نیم نورو ژبو غوندې د فاعل له جنسیت یا جینډر (مذکر، مؤنث او مخنث) سره د فعل ښه هم اوړي: مثلاً مونږ وایو: «احمد ډاکټر دئ»؛ «جمیله ډاکټره ده» او داسې نور. د «اکثریت» پښتنو دا جوملې سهي نه دي چې وايي: «احمد ډاکټر ده»؛ «محمود خاین ده»؛ «کامران قاتل ده» او داسې نور: ځکه احمد، محمود او کامران (د جوملو فاعلان) درې سره مذکر دي: او «ده» په درو سرو جوملو کې (فعل) دئ، چې هیڅکله له مذکر فاعل سره نه سي راتلای. په «اکثریت» لهجه کې د مذکر او مؤنث ضمیرو په استعمال کې هم ګډوډي لیدل کیږي: مثلاً دوی د نارینه دپاره وایي: «دا راغلئ ۇ»؛ «دا مي ولیده»؛ «دا مي په خبره پوه کئ» او داسې نور: حال دا چې د نارینه مفعول دپاره باید جوملهٔ تل په دې ښه و ویله سي: «دی راغلئ ۇ»؛ «دی مي ولیدئ»؛ «دی مي په خبره پوه کئ» او داسي نور: ځکه په دې درو سرو جوملو کې د مذکر مفعول په باره کې خبري کیږي. په دې خاطر يې باید همېشه په مذکرو ضمایرو یادونه وکو.

لکه څنګه چې «ښنل»، «کنځل»، «غړ» او داسې نور د «ډېروالي» په حُکم مجاز دي، دا غلط او نامعقول ګرامري جوړښتونه ولي د «ډېروالي» په حُکم جواز نه سي لرلای؟ که د ښاغلي زیار صاب د «اکثریت» معیار په پام کې و نیسو، بیا خو دا ټول ناسم او نامعقول ګرامري جوړښتونه هم د سر پر سترګو باید ومنو: حال دا چې د داسې ښکاره تېروتنو منل په ژبپوهنه، عقل او منطق ملنډې وهل نه دي؟!

- د زیار صاب «اکثریت» د ښندل (بخښل، عطا کول، بخششول) او خندل (مسېدل، خندېدل)، شیندل (بولي یا متیازي) او شیندل (پاشل، خپرول) او داسې نورو تکو تر منځ هم فرق نه کیي. ایا دې تېروتنو او ګډوډییو ته هم باید د «اکثریت» په پاس غاړه کښېنږدو؟!

- د «اکثریت» او «اقلیت» فارمول خو دا حُکم هم کیي، چې د پښتو د لرغوني ادب او جنوب - لوېدیځې لهجې د بېشماره مثالو پر خلاف باید په زیاترو افعالو کې مصدري لام د کلیمو له ترکیبه و باسو: ځکه «اکثریت» پښتانه يې نه وايي: لکه په دغو مثالو کې:

ښه چې راغللې په غېږ کې
بیا مې لرې د زړه زنګ دی
(خوشحال خان خټک، له کندهاره تر اټکه ۷۳)

*** *** ***

په در تللو ئې شـــــــړې، په تلـوئې بـولې
چې ئې نه پرېږدې په هيڅ کې خوشحال څه کا
(خوشحال خان خټک، له کندهاره تر اټکه ۷۲)
که له دغو ټکو څخه مصدري «لام»
ايسته ايسي، د ميسرو د تول او ترازو مسأله
به څنګه حلېږي؟!

د جناب زيار صاب په نېز «اکثريت
والا» وايي: «کور ته تلئ وم». د پښتو
لرغونی ادب او د زيار صاب په نېز «اقليت»
پښتانه وايي: «کور ته تللئ وم»، زه و زيار
صاب او د هغه پېښه ګرو مريدانو ته وايم:
شاباس غازيانو! نن مو «کښېښوول»،
«بخښل»، «ږغ»، «تللئ» او داسي نور په
«کېښوول»، «ښبل»، «غږ»، «تلی» او
داسي نورو واړول، سبا او بل سبا يې ارومرو
په «کېخوول»، «بخل»، «غګ» او داسي
نورو اړوئ (ځينو پېښوريانو خو پخوا لا
«پښتون» او « پښتونخوا » په «پختون» او
«پختونخواه» اړولي دي) او په دې ترتيب د
پښتو د لرغوني ادب او سپېڅلي ژبي جنازه
ګور ته سپارئ! زموږ مدقق ليکوال او
څېړونکي پوهېږي، لکه څنګه چي د
پارسي مجهوله ياء (لکه مېغ، تېغ، شېر،
تېر، تېز او داسي نور) اوس د پارسي په
تحريري يا ليکنۍ ژبه کي هيڅ ځای نه
لري، همداسي به زموږ «ښ»، «ږ» او
«ڼ» توري هم کرار کرار د «خ»، «ګ»
او «ړ» په وسيله تعويض او بالاخره
کورټ ورک سي. دا ځکه چي په هر ملت
او هره ټولنه کي، شفاهي ژبه د تحريري
ژبي ټاکوونکې ده. دا ليکنه يې نخښه،
که نن د دې فرهنګي غوبلو مخ و نه نيول
سي، زموږ راتلونکي نسلونه به شل -
دېرش کاله وروسته د دې اټکل
ريشتياوالی د سر په سترګو وګوري.

البته، که څوک د لهجه يې توپيرو پر
اساس د «کېښوول»، «ښبل»، «کنځل»،
«غږ»، «تلی» او داسي نورو و چلښت ته
جواز ور کيي، هيڅوک يې مخالفت نه کيي؛
او نه يې څوک د مخالفت حق لري؛ ځکه
چي د هري ژبي په بدلېدو کي د بېلابېلو
طبيعي او غيرطبيعي عواملو لاس پروت
دئ. په دې خاطر نو دا ډول ليکدود که سم
دئ که ناسم، اوس د پښتو او پښتنو د ژبي او
فرهنګ نه بېلېدونکې برخه ده: پر سر و
سترګو بايد و منل سي؛ خو که زيار صاب او د
هغه ملګري په دې يا هغه پلمه د پښتو پر
اصيل، لرغوني او دقيق وينګ - کښنګ
چليپا کاږي: او پر ځای يې خپل کوږ او مسخ
سوی وينګ - کښنګ د معيار په توګه
وړاندي کيي. دا نو نه يوازي د پښتو ژبي له
اصيلو او ارزښتناکو ميراثو، بلکي د
ژبپوهني، عقل او منطق له اساساتو سره هم
ښکاره دوښمني ده، چي په کلکه يې بايد
مخه و نيوله سي.

- د پښتو په زاړه ادب او جنوب -
لوېديځه لهجه کي د ځينو افعالو و مخ ته
(واو) استعماليږي: لکه ولاړ/ولاړئ، ولاړه،
ولاړل. کله کله بيا (واو) د ځينو ټکو و مخ ته
د لوري يا استقامت (dative) د ادات په بڼه
کاريږي: لکه «و آسمان ته»، «و زړه ته»، «و
کندهار ته» او داسي نور. دلته يې د پښتو له

زاړه ادب څخه څو نمونې وګورئ:

د دنیا په څــبزو مینه مه کړه قطعي
عاقبت به ځني ولاړ شې دست شسته
(د علي محمد مُخلص د دیوان خطي نوخسه)

*** *** ***

که د نفس په نغوته ولاړ شې!
په حیات د زړه مــاتم کــړه!
(د علي محمد مُخلص د دیوان خطي نوخسه)

*** *** ***

ستا د مخ په یاد ئې دواړه لـه زړه ولاړل
د خوشحال د زړه ارام، د ستر ګو خوب
(خوشحال خان خټک، له کندهاره تر اټکه ۸۰)

*** *** ***

و آسمان ته به د شعر زینې کښېږدي
که حمید د غم له سره ز نګون و کیښ
(د عبدالحمید مومند دیوان ۱۳۸)

*** *** ***

جــامِ جــم و زړه تــه وائــي
دی د کُــل عــالَــم مظهر دئ
(د علي محمد مُخلص د دیوان خطي نوخسه)

که د جناب زیار صاب د «اکثریت» او «اقلیت» و بابولالي ته د معیار په سترګه و ګورو، بیا خو هر ځای باید د دغه راز کلیماتو له ترکیبه (واو) و باسو: څکه «اکثریت والا» د «ولاړ»، «ولاړه»، «ولاړل» او داسي نورو پر ځای «لاړ»، «لاړه»، «لاړل» او داسي نور وایي. د لوري یا استقامت «واو» هم ګرسره له قلمه غورځیي. یاني «و آسمان ته»، «و زړه ته» ته نه وایي، بلکي پر ځای یې «آسمان ته/ آسمان له»، «زړه ته/ زړه له» وایي.

کله چي موږ د پښتو د لرغوني ادب په دود بې (به یې)، چې (چي یې)، څې (څه یې)، کې (که یې)، مې (مه یې) او داسي نور مخففات کاروو، جناب زیار صاب د «بې قاعد ګییو» نوم پر ایږدي. خو کله چي خپله «و آسمان ته»، «و زړه ته»، «و کندهار ته» او داسي نور عبارتونه د «آسمان ته/ آسمان له»، «زړه ته/ زړه له»، «کندهار ته/ کندهار له» په بڼه وایي، پر هغو بیا د لنډون، بچت او اسانۍ نوم ایږدي. البته، په دې حقیقت هم سر نه خلاصیي، چي زموږ مخففات خو په پښتو ادب کي پراخ او پیاوړی ملاتړ لري؛ حال دا چي د زیار صاب د «اکثریت» لهجې له «لنډون» او «اسانۍ» څخه د پښتو ادب د لویو او نامتو شاعرانو په اشعارو کي د کلیمو د وزن له اړخه لویي پېچومي را ولاړیږي؛ مثلاً «مراد» کلیمه په لرغوني ادب کي زیاتره، بلکي همېشه په یوه څپه (مراد = mrād) راغلې ده؛ حال دا چي «اکثریت والا» ئې په دوو څپو (مُ–راد = mu-rād) وایي. د میرزا خان انصاري په دې بیتو کې د یو سېلاب دوې نمونې وګورئ:

د صورت په صفت ولي غلطېږې!
له اوله مراد آواز دی له جــــرسه
(میرزا خان انصاري، له کندهاره تر اټکه ۱۵۶)

*** *** ***

لا مي نه و مراد د وصــل پیــدا کړئ
د هجران د لمبو دود مي تر سر ووت
(میرزا خان انصاري، له کندهاره تر اټکه ۱۵۶)

«حرص» د پښتو په لرغوني ادب کي تقریباً هر ځای په دوو هجاوو (حِ – رَص =

hi-ras) راغلئ دئ؛ په داسي حال کي چي «اکثریت والا» ئې د عربي او پارسي په پیروی، هر ځای او هر چیري په یوه هجا ( حِرص = hirs) وایي. د علي محمد مُخلص او حمید بابا په دغو بیتو کې دوه سپلابي شکلونه وگوریٔ:

د حرَص پــــه چـــوکات کښـــهووت
سر گـــــردان لـــکـــه گـــــردون شو
(د علي محمد مُخلص د دیوان خطي نوخسه)

*** *** ***

شوخ بې شرمه کړې حِرَص تر هسي حده
چې نه شـــرم کـــړې له خـــدایه، نه پروا
(حمید مومند، له کندهاره تراټکه ۱۴۶)

که په مخکنییو بیتو کي راغلئ «حرص» په یوه سپوڼ و وایو، د میسرې وزن د یوه سپلاب په اندازه کمېږي. «توان» په پخواني ادب کي هر ځای په یوه ځپه راغلئ دئ؛ خو «اکثریت والا» ئې د پارسي په پیروی، په دوو ځپو وایي. «زما» په لرغوني ادب کي زیاتره په یوه (زما - zmā)، خو کله کله په دوو ځپو (زُ– ما - zu-mā) هم راغلئ دئ؛ مگر «اکثریت» لهجه یې همېشه د (زَ– ما - za-mā ) په دوه هجایي بڼه وایي. البته، د زُما او زَما لهجه یي ځېلونه یا وریانټونه دواړه یو شان ارزښت لري، خو «اکثریت» لهجه یوه هجایي بڼه گرسره نه لري. د داسي ټکو شمار نو تر انده پاس دئ، چي په را ټولو یې پنډ پنډ کتابونه ډکیږي.

که داسي ټکي د زیار صاب د «اکثریت والاوو» په لهجه تقطیع سي، بیا خو د پښتو د نومیالییو شاعرانو میسرې او بیتونه د بې وزنی او سکتگۍ له پراخي ستونزي سره مخامخ کیږي؛ حال دا چي دا بې وزنی او بې خوندی، په واقعیت کي د شعر او شاعر نه، بلکي د هغه چا دي، چي نه سي کولای د شاعر اصلي او طبیعي لهجه و پېژني؛ او شعر یې په هغه ډول و لولي، چي ده «بېچاره» ویلئ دئ. دا ډول نامي او پیاوړي شاعران ځکه باید «بېچاره» و بلل سي، چي هغوی هم د زیار صاب په فتوا د «اقلیت» په لهجه خبري کولې؛ د کلیمو ویل او لیکل، لغوي زېرمه، گرامري جوړښتونه او عروضي تقطیع یې گرده د «اقلیت والاوو» له لهجې سره بشپړ سمون لري. شک نسته چي د لویو شاعرانو په شعرونو کي کله کله پر سهي تقطیع سربېره هم د سپلابو د تېروبېروالي ستونزه تر سترگو کیږي، چي هغه هم تر ډېره حده په دغه راز لرغونو شعري اثارو کي د کاتبانو او مستنسخانو د جاهلانه او بېرحمانه لاسوهنو یا تېروتنو زېږنده ده. د کلیمو له غلط قرائت څخه را پیدا سوي سکتگۍ او بې وزنی په دې شاعرانو پوري هیڅ اړه نه لري.

– د زیار صاب د «اکثریت والاوو» په لهجه کي ځیني داسي ټکي او عبارتونه هم په پېخر کاریږي، چي ناسموالی او پردیوالی یې تر لمر روښانه دئ؛ مثلاً دوی وایي: «دلته کي اوسیږم»؛ «هلته کي سبق وایم»؛ «زه هم هماغه کلي کي اوسیږم، په کوم کي چي زما خور اوسیږي»؛ «هغه دوکان کي ډېر سامان شته دئ» او داسي نور. زموږ

پوه او باذوقه لوستونکي ټول پوهېږي، چي په دغه راز جوملو کي د «کې»، «په کوم کې» او «دئ» و کارولو ته هيڅ اړتيا نه ليدل کيږي؟ لکه په دې ډول: «دلته اوسېږم»؛ «هلته سبق وايم»؛ «زه هم په هغه کلي کې اوسيږم، چي خور مي اوسي»؛ «په هغه دوکان کي ډېر سامان شته/ هغه دوکان کي ډېر سامان شته». پوښتنه دا ده، چي په دغه راز جوملو کي به له داسي بې خونده اضافي ټکو او عبارتو سره څه مامله (معامله) کيږي؟!

د «اکثريت» او «اقليت» بابولالي پر اساس خو بايد د مخنيوي پر ځاى لا پسي عام او پراخ سي؛ ځکه زموږ د «اکثريت» پښتنو «ښاغلي» عبارتونه دي.

د داسي لغوي، نحوي، عروضي او گرامري مشکلاتو او گډوډييو ليست دونه اوږد دئ، چي حتا يوازي يې پر گردو بولگو او مثالو خبري کول هم د دې لنډي ليکني په جيجوري کي نه ځاييږي. په دې خاطر له وړاندي سوو دلايلو او شواهدو څخه نتيجه اخلو، چي د نړۍ نورو ژبو غوندي په پښتو کي هم د «اکثريت» او «اقليت» بابولاله هيڅ علمي اساس او ارزښت نه لري.

موږ بايد د يوې علماً منلي معياري پښتو د را مينځ ته کولو په مخسد د «اکثريت» او «اقليت» د بابولالو پر ځاى د ټولو پښتنو د پراخ او مزبوت يووالي په لار کي کوښښونه وکو. يوازي د يووالي او گډ کار په کومک کولاى سو، خپل کمزوري او نيمگړي اړخونه غښتلي او غني کو؛ او د ژبي د تحريفولو، مسخولو او محدودولو پر ځاى د هغې د لغوي، ادبي او علمي زيرمو و پراخولو او سمولو ته پام واړوو.

په پښتو کي د يوې منلي معياري ژبي لوړ او ارزښتناک ارمان يوازي هغه مهال د عمل جامې اغوستلاى سي، چي د خپلي ژبي او فرهنگي ارزښتو د پرمختيا او پراختيا په هر کار کي گډ سوچ او مشوره وکو؛ يو و بل ومنو؛ يو له بله مرسته وغواړو؛ او پر دې زرين اصل بشپړ باور و لرو، چي خپلسري او غټبازي پښتو او پښتنو ته بې تباهۍ او شا تگه، هيڅ شى نه سي ورکولاى.

**کتابښود:**


۱. بياض، د بياض ديوان. د سرمحقق عبدالله بختاني خدمتگار نقل، سمون، حاشيې او مقدمه. دوهم چاپ. پېښور: الفت اکاډمي، ۲۰۰۴ع.

۲. خټک، خوشحال خان. د خوشحال خټک کليات. لومړى ټوک (د غزلونو برخه)، د دوست محمد دوست، څېړندوى محمدصديق روهي، څېړندوى محمد اکبر معتمد، څېړنمل محمد اسمعيل سربن، څېړنمل محمد عارف غروال، څېړنيار عبدالواحد واجد، څېړنيار نور الله ولسپال، څېړنيار محمد عمر وزير، څېړونکي عبدالباري جهاني او

سعدالله په زيار. کابل: د افغانستان د علومو اکاډمی د ژبو او ادبیاتو انستیټوټ، ۱۳۵۸.

۳. خټک، خوشال خان. د خوشال خان خټک کلیات. د عبدالقیوم زاهد مشواني اوډنه، پرتلنه، سمون او وییپانګه. کابل: دانش خپرندویه ټولنه، ۱۳۸۴.

۴. رشاد، پوهاند عبدالشکور. د پټې خزانې فرهنګ. دوې برخې. کابل: د کابل پوهنتون د ژبو او ادبیاتو پوهنځی،۱۳۶۲. لومړۍ برخه.

۵. مخلص، علي محمد. د دیوان خطي نوخسه. Or ٦٧٥٦ . بریتیش کتابتون، لندن.

٦. هوتک، محمد معصوم. له کندهاره تر اټکه: د پښتو په کلاسیک ادب کي د لوېدیځي لهجې څرک. کندهار: علامه رشاد خپرندویه ټولنه، ۱۳۸۹.

۷. هیوادمل، زلمی. د عبدالحمید مومند دېوان. کابل: د افغانستان د علومو اکاډیمی د ژبو او ادبیاتو مرکز (پښتو ټولنه). ۱۳۶۳.

۸. Apte, Vaman S. The practical Sanskrit-English dictionary. Revised and enlarged edition of Prin V. S. Apte's. Poona: Prasad Prakashan, ۱۹۵۷–۱۹۵۹.

۹. Jackson, H. & E. Z. Amvela. Words, Meaning and Vocabulary: An Introduction to Modern English Lexicography. ۲nd ed. New York: Continuum, ۲۰۰۷.

۱۰. Morgenstierne, Georg. An Etemological Vocabulary of Pashto. Oslo: I Kommisjon hos Jacob Dybwad, ۱۹۲۷.

۱۱. Platts, John T. A dictionary of Urdu, classical Hindi, and English. London: W. H. Allen & Co., ۱۸۸۴.

۱۲. Robinson, Mairi. Editor in chief. Chambers ۲۱st Century Dictionary. Edinburgh: Chambers, ۱۹۹٦.

۱۳. Turner, Ralph L, Sir, A Comparative Dictionary of the Indo-Aryan Languages. London: Oxford University Press, ۱۹٦۲–۱۹٦٦. Includes all three supplements, published during ۱۹٦۹–۱۹۸۵.

http://resources.woodlands-junior.kent.sch.uk/customs/questions/langdiffer.htm
http://kitabtoon.com/zhwandlikona/akademik/item/۵۵۹-pohan-zyar


پای



استاد عبدالباري جهاني/امریکا

# د پښتو نظم ځیني توکي او اړخونه



پښتو لیکلی نظم زیاتره د فارسي او عربي نظمونو سره توپیر نه لري او د نظم په قوانینو کي ئې شریکه لاره ورسره نیولې ده. باید چي موږ د پښتو نظم پر ځای په عمومي صورت د نظم د توکو په باره کي ږغیدلي وای، خو څرنګه چي د پښتو په نظم کي فوکلوري نظمونه هم شامل دي او هغه له فارسي او عربي سره څرګند توپیر لري او وروسته به وګورو چي پښتو نظم، په تېره بیا د سیلابونو د شمېر په برخه کي، له فارسي نظمونو سره څرګند توپیر لري، نو ځکه په مشخصه توګه د پښتو نظم د جوړښت او ځینو اړخونو په باب لیکنه کوو. کله چي د نظم خبره رامنځته کوو، نو لومړنی شی چي ورسره مخامخ کېږو او په وجود سره ئې نظم له نثر څخه بېلېږي هغه قافیه ده. ځکه نو د قافیې په باب په عمومي صورت یو څه ویل لازم دي.

**قافیه** Rhythm:

قافیه په لغت کي وروسته او د غاړي پای یا ورپسي تلونکي ته وایي او د نظم په اصطلاح هغه توري دي چي د یوه بیت په پای کي راوړل کېږي او د هر یوه بیت د پای توری یا توري د مخکني او وروستني بیت یا بیتونو سره د آواز او تورو له مخي یو شان وي. لکه نګار، قرار، بیمار، آبشار، خدمتګار او یا زرین، غمګین، ماپښین، لونګین او دغه راز نور کلمات چي هم ئې وروستی توری سره مشترک او هم د آهنګ rhyme او آواز له مخي سره یو شان دي. د آهنګ او اواز خبره ځکه کوو چي د نګار، مقرر، غفور او سپور ټول کلمات د (ر) په توري ختمېږي مګر په نظم کي ئې ځکه نه سو قافیه کولای چي دا ټول توري جلا جلا آهنګونه rhymes لري.

په منظومو شعرونو کي قافیه تر هر څه مهمه

ده. د قافیې غلطي او یا د قافیې نسته والی تر هرڅه لومړی د لوستونکي او اوریدونکي توجه جلبوي. د قافیې غلطي پر غوږونو باندي ډېره بده پرېوزي. اورېدونکی دې ته نه ګوري چي شاعر په خپل نظم کي څه ویل غواړي بلکي سمدستي په دې عقیده کېږي چي شاعر د نظم په جوړولو نه پوهېږي، او چي څه غواړي هغه په نظم، یا قانوني او دقیق نظم نه سي افاده کولای. بهتره به دا وای چي خپل مطلب ئې په نثر افاده کړی وای. په دې توګه موږ ګورو چي یوازي د کلماتو د وروستي توري سره زموږ د قافیې د ترتیب کار پای ته نه رسېږي بلکي د قافیې د وروستي توري، چي رَوي ورته ویل کېږي، څخه مخکي تورو ته باید توجه وسي.

پښتانه شاعران کله کله، په غزل کي د یوې قافیې پر ځای له دوو قافیو څخه کار اخلي، چي ذوقافیتین ئې بولي. په کلاسیکو غزلونو کي، ذوقافیتین، زما چنداني په سترګه سوی نه دئ او په نوي غزل کي هم دغه راز قافیې جوړول د ګوتو په شمېر دي. دوې قافیې د غزل له شرنګ سره چنداني مرسته نه کوي او داسي ښکاري لکه شاعرانو چي یوازي د خپلي طبع د آزمویلو په مقصد لیکلي او پر ځان باندي ئې د یوې بلي قافیې بار تحمیل کړی او ځانته ئې په زور مشکل ایجاد کړی وي.

د سرې لمبې لـه ژبي یـې رازونـه رسـوا نـه دي
د شـمعي لـه مـذهب سره ګلونـه آشـنا نـه دي
چـي ګرځـي لـه کچکول سره پر ښار د ګناهکارو
زاهـده پـه خلـوت کـي دي سـوالونه رشتیا نـه دي
چـي هـره شـپه د نـوي صـنم لـور تـه قبلـه اوړي
یـارانو پـه دې ښـار کـي مـو لمونځونـه روا نـه دي
تـر څـو بـه دي پـه کـاڼو لـه ناکامـه ماتومـه
تندیـه پـه اورغـوي کـي فالونـه پخـلا نـه دي
راڅه جهاني مات کو د غزل په خُم کي غشي
پـر زړو د غمازانـو دي وارونـه رسـا نـه دي

په دې غزل کي موږ ګورو چي لومړی خو له دوو قافیو، رازونه رسوا، ګلونه آشنا، سوالونه رشتیا او نورو څخه کار اخیستل سوی او له بلي خوا د غزل لومړی قافیه ټوله په دریو سیلابونو او دوهمه قافیه په دوو سیلابونو کي راغلې ده چي، د مناسبو کلماتو په پیدا کولو کي ئې د شاعر تکلیف نور هم زیات کړی دئ. په دوو قافیو کي د غزل لیکل د غزل پر شرنګ باندي تقریباً د هیڅ په اندازه اغېزه لري. ښایي دغه علت وي چي د پښتو ژبي پخوانیو شاعرانو، چي د غزل لیکلو ته ئې تر هر څه زیاته توجه کړې ده، د ذوقافیتین د لیکلو تکلیف نه دئ ګاللی. ما ته یوه ځوان شاعر وویل چي په دریو قافیو کي ئې غزل لیکلې ده. ښایي ما ته ئې خپله غزل لوستې هم وي. خو زه یقین لرم چي په دې غزل به ئې د څلورو پنځو غزلو د لیکلو په اندازه زحمت ایستلی او د ګوتو په شمېر کسانو توجه به وراوښتې او د ده کمال ته به ئې شاباسی ویلی وي. ګواکي د غزل په لیکلو کي تر دوو او دریو قافیو، د یوې بهتري او شرنګولي قافیې ټاکل او رعایتول تر هر څه مهم او بهتر دي.

لـه جهانـه هـسي زنـګ دي یـاران تلـلي
تـه بـه وایـې چـه هرګـز نـه وو راغـلي
نښانې یې په جهان کښې مونـدی نـه شي
هـسي ورک شـول د هجـران سـپرو نـتلي
د برېښنا غونـدي ښکاره شـول بیا فنا شـول
پـه څیـر څیـر مـو ورتـه هـیڅ نـه وو کـتلي
نـه مـو سـترګي پـه لیـدو سره مـړې کـړې
نـه مـو وو پـه ډکـه خولـه وبلـه خنـدلي
نـه مـو زړونـه څبلـه تـش کـړل پـه خبرو
نـه مـو پـټ رازونـه وو څبلـه ښـیلي
چـه ناګاهـه بیلتـون ورتـه مـخ ښکاره کـړ
لـه مـوږ بیـل شـول پـه ارمـان ټټـر داغـلي
عبدالقادر خان خټک

**څه مزري کړل زمانې د تماشو**
**ننوزي يې په غار ګيدړ پشو**
**بې انصافه زمانې د ګل په پانو**
**ځرنګ و اورول کاڼي په رشو**
**چې پخپلي ناترسيه فلک راشي**
**ولي کاڼي په پجه کي د شيشو**
**هغه سر کا زمانې د سپو د لوبو**
**چي يې نه واهه مزري پل په ورشو**

حميدماشوخيل

**چې په خندا ورته د خوږ زړه پرهارونه نه شي**
**چري دي هم ستا د ښايست غوټۍ ګلونه نه شي**
**راشه مظلوم زړه مې په يو نظر يوه لمبه کړه**
**چې په ظالم زړګي دي پاته ارمانونه نه شي**
**بيا د جنون څواني مستي غواړي د مستي ميني**

رحمت شاه سايل

## روي:

د قافيې وروستي توري ته روي ويل کېږي. روي له روا څخه راغلی او په لغت کي هغه رسۍ يا تناو دئ چي د اوښ بار په ترل کېږي. د نظم د قافيې په برخه کي دا مفهوم څکه غوره سوی دئ چي په دغه توري سره د نظم بيت پای ته رسېږي. لکه په زيار، وقار، شمار کي د (ر) توری روي دئ. د روي د توري د ټاکلو په وخت کي بايد زايد توري له روي څخه ليري کړو لکه (ونه) په غرونه، کتابونه، کساتونه او نور کي. (ان) لکه په نوکران، پاچاهان، مالداران او نور کي. او کله چي د قافيې خبره منځته راځي نو بيا د روي څخه مخکي توري ته رجوع کېږي او د هغه په واسطه قافيه ټاکله کېږي. مثلاً موږ وليدل چي د بيمار او قرار سره ولي د غفور او سپور توري په يوه قافيه کي نه سي راوړل کېدلای. دا څکه چي د بيمار په توري کي د روي څخه مخکي الف او د غفور په توري کي معروف واو او د سپور په توري کي د روي څخه مخکي مجهول واو راغلی دئ.

**هيڅ مې نه کړه په دا عمر کي حاصل**
**هسي پاتې شوم مردود و نا قابل**
**د دنيا په پليتۍ مي ځان پليت کړ**
**حيف دی دا چې نه عالم شوم نه عامل**
**توره ږيره مي شوه سپينه زه حيران يم**
**چې رحمان لا نه بالغ شوم نه عاقل**

په دې بيتونو کي (ل) د روي توری دئ او په هغه سره قافيه ترله سوې ده. له روي څخه مخکي ټول توري له زېر سره راغلي دي. څکه نو که د دې تورو پر ځای او يا د نظم په يوه بيت کي بلبل، ويل او کاکل راسي د نظم قافيې ته تاوان رسېږي.

د رحمن بابا او د پښتو ژبې د ډېرو شاعرانو په غزلو کي موږ ګورو چي په ځينو ځايونو کي روي نه وي رعايت سوی، او يوازي قافيې ته توجه سوې وي. چي دا کار د فارسي ژبې په شعرونو کي چنداني نه په ستر ګه کېږي. البته د دې خبري معنی دا نه ده چي د رحمن بابا او خوشال خان يا ځينو نورو پخوانيو او اوسنيو شاعرانو غزلونه او شعرونه د روي يا قافيې له مخي ناقص دي، بلکي د پښتو ژبې په غزلونو او نظمونو کي دغه راز قافيو جوړولو ته جواز ورکړه سوی دئ، چي دغه جواز په فارسي کي چنداني وجود نه لري، او د ژبې د جوړښت له امله څکه مثل کېدلای نه سي چي امکان ئې موجود نه دئ.

چيرته د يار شوندې چيرته غم د دل و جان
(ن) روي
چيرته کټې لال او چيرته لعل د بدخشان
(ن) روي
لږ تفاوت نه دئ د رندی د زاهدی
چيرته خلمې جونه چيرته کونډې يتيمان
(م) روي، او (ان) زايد يا زايد توري دي
زار شه د هوا و حرص خيال تر قناعته
چيرته ملک د مصر چيرته ده د غلامان

(م) روي دئ، او (ان) بيا هم زايد توري دي
دغه راز د رحمن بابا په يوه بل غزل کي:

**خان سلطان د دې جهان**
**آخر درومي خوار حيران**
**د قضا په څپل تړلي**
**په مثال د بندېوان**
**درمانده ورته ولاړ وي**
**وزيران او وکيلان**
**هيڅ دارو ئې کړلای نه شي**
**کوز کوز گوري حکيمان**
**چي ئې روح له تنه بېل شي**
**نور پرې ژاړي فرزندان**
**په مينه ئې دعوې کاندي**
**هم دوستان هم دښمنان**

بندېوان، چي د روي توری ئې (ي)، او (وان) ئې زايد دئ. وکيلان، چي د روي توری ئې (ل) او (ان) ئې زايد دئ، حکيمان، چي د روي توری ئې (م) او (ان) ئې زايد يا الحاقيه دئ، فرزندان، چي د روي توری ئې (د) او (ان) ئې الحاقيه دئ، دښمنان، چي د روي توری ئې (ن) او (ان) ئې الحاقيه دئ او دغه راز نور کلمات راغلي او جايز بلل سوي دي.

خوشال خان خټک د پښتو په کلاسيک ادب کي تر ټولو شاعرانو زياته او ښايسته شاعري کړې ده او د خپلې ټولې شاعرۍ په جريان کي د قافيې او روي موضوع ته ښه ځير او په ښه توگه ئې رعايت کړې ده:

**ليوني شول پښتانه په منصبونو**
**خدايه ما ژغورې له هسي غضبونو**
**پښتانه لره لوی عيب دی که ئې گوري**
**چي نازېږي د مغول په لقبونو**

د خوشال خټک په دې ټوله غزل کي (ب) د روي توری دئ. مکتب، مشرب، ذهب، سبب، قصب او نور کلمات ئې په خورا احتياط کارولي دي او د قافيې له جايزې اسانتيا څخه ئې گټه نه ده اخيستې.

**يا په زړه کښي مهر ځای وی د بتانو**
**يا ئې ورکړی صبوري و عاشقانو**
**يا حيران عاشق په مرگ ومرای چي خلاص شوای**
**يا ئې هومره جور مه وای د چشمانو**
**چي ظاهر باطن ئې دواړه سره جوړ وي**
**څه عجب خاصه مشرب دئ د رندانو**
**د خپل يار په بدو خاندم هوسېږم**
**چيرته زړه نه شي راښه د رقيبانو**

په دې غزل کي د بتانو د روي توری (ت) او د عاشقانو د روي توری (ق)، د چشمانو د روي توری (م)، رندانو د روي توری (د)، رقيبانو د روي توری (ب) او دغه راز نور کلمات راغلي دي، او د پښتو په پخواني او اوسني نظم کي ئې استعمال جايز گڼل سوی دئ، خو د خوشال خان په دېوان کي دغه راز قافيې ډېرې د گوتو په شمېر دي. البته د دې معنی بيا هم دا نه ده چي موږ د خوشال خان پورتنۍ قافيې ته د انتقاد گوته نيسو، بلکي په پښتو نظم کي د دغه راز قافيو انتخاب هم پخوا او هم اوس جايز دئ. البته خوشحال خان خټک له دې جواز څخه، چي پر غوړونو په هيڅ توگه بد نه لگېږي، ډېره نادره استفاده کړې ده.

موږ کولای سو چي د پښتو په نظم کي غرونه، کتابونه، قلمونه او رنگونه، چي د روي توري يې، په ترتيب سره (ر، ب، م، او گ) دي، په يوه غزل يا يوه قصيده کي سره قافيه کړو. خو په فارسي کي کوه ها، کتاب ها، قلم ها او رنگ ها له سره قافيه کېدلای نه سي ځکه چي د روي توري ئې (هـ، ب، م، او گ) په قافيه کي نه سي راوړل کېدلای.

که څه هم چي د پښتو ژبي پخوانيو شاعرانو، په تېره بيا خوشال خان خټک، د روي د توري د استعمال په برخه کي له بشپړ احتياط څخه کار

اخيستى دئ. خو کله کله ئې د روي د توري پروا ځکه نه ده ساتلې چې قافيې ته تاوان نه دئ رسېدلى. د پښتو ژبې په زاړه او نوي غزل کې، د روي د توري له دې جواز څخه تقريباً ټولو شاعرانو کار اخيستى دئ.

**ستا لـه غمـه شـورش هـسي را پيـښېږي**
**چي په خپله مي دستار پر سر خلاصېږي**
**کـې نظـر د شـاپېرۍ وسي و مـخ تـه**
**تـر ښيـښې ئـې د فلـک نـاره تېرېـږي**
**بې لـه تـا هـسي ضـعيف يـم گلرخـساره**
**پر حباب بانـدي که پښه ږدم نه ماتېږي**

حنان بارکزى

په دې غزل کې د روي توري (ښ، ص، ر، ت، ن، ړ) او نور راغلي دي او «ېږي» د روي سره زايد توري دي. په پښتو کې دغه ډول قافيه او روي راتللاى سي او بشپړ جواز لري خو په فارسي نظمونو کې ئې نه جواز او نه امکان سته. د دې علت دا دئ چې په فارسي کې د استمرار حالت له اسم سره نه يو ځاى کېږي بلکې د ميشود، ميکند او ميشوند په ډول د رديف ځاى نيسي. طبيعي خبره ده چې بايد په اسمونو او فعلونو کې. چې د قافيې له پاره کارول کېږي، د روي توري په نظر کې ونيول سي.

**زمـا سـترگي ئـې د خيـال مهمانخانـه ده**
**که ئې خيال پکښې مهمان شي عجب نه دى**
**چـي پـه نېـک حـسن مطبـوع شي لـه ازلـه**
**کـه تـابع ئـې دلـبران شي عجـب نـه دى**
**د عاشـق و حيرانـې تـه چـي وگـورې**
**کـه ژړون پـر مرغـان شي عجـب نـه دى**
**يـار چـه دا رنگـه الطـاف کانـدي پـوهېږم**
**کـه سـيه رويـه رقيبـان شي عجـب نـه دى**

يونس

موږ گورو چې په مهمان کې د روي توری (ن)، په دلبران کې د روي توری (ر)، په مرغان کې (غ) او په رقيبان کې د (ب) توری دئ. خو کله چې مرغه، رقيب او دلبر د جمع حالت غوره کړی دئ، نظم قافيې ته برابر سوی دئ. په فارسي کې د جمع حالت په قافيه کې نه داخلېږي بلکې رديف ته ځي. رقيب، مرغ او دلبر په هيڅ توگه په يوه قافيه کې نه سي راوړل کېدلاى.

## رديف:

رديف هغه توری يا توري او کلمات دي چې تر قافيې وروسته راځي، او د غزل او قصيدې تر پايه پوري تکرارېږي. د تورو او سيلابونو اندازه ئې چنداني محدوده نه وي. کېدلاى سي له يوه سېلابه تر شپږو او زياتو سيلابونو پوري ورسېږي:

**تـل د اوښـو پـه اوبـو کـې لـره تـر مـخ**
**پـه دغـو اوبـو کـي ليـد شي د دلـبر مـخ**
**د يوسـف د مـخ ډېـوه شـوه هالـه بلـه**
**چـي ئـې سـور کـړ پـه څپـرو بـرادر مـخ**
**د حميـد بوالهـوسي ناکـسي نـه ده**
**لټـوي پـه خپلـه ورکـه پـسي هـر مـخ**

له قافيې څخه وروسته په ټول غزل کې د «مخ» توری رديف دئ.

**پوښتني تـه مـي خپلـه سـوې سـاه تلـه او راتلـه**
**هغـه هـم لکـه وېـره پـه اکـراه تلـه او راتلـه**
**د خـوب پـه لار ئـې هـم حـسن بنـديز اوس لگـولى**
**پخـوا بـه مـي خوبونـو تـه گـاه گـاه تلـه او راتلـه**
**هـر خـاپې ئـې د پلونـو يـوه غـزل شـوه «پـسرليه»**
**د شـعر ملکـه مـي څـه دل خـواه تلـه او راتلـه**

تله او راتله په غزل کې د قافيې له تورو ساه، اکراه، گاه گاه، دلخواه څخه وروسته راغلي او د رديف کار ور کوي.

د اوږدو رديفونو کارول زياتره په نويو غزلونو کې رواج سوي دي. شاعران کوښښ کوي چې د اوږدو رديفونو په کارولو سره د غزلو شرنگ زيات

کړي، او هره شيبه د خپلو لوستونکو او اوريدونکو پام د خپل غزل موضوع ته را وګرځوي.

**راځه چي نن دي پر هجران باندي غزل وليکم**

**يو څه پر تا يو څه پر ځان باندي غزل وليکم**

**د خپلـو هيلـو لـه لحـد سره مـي ونجـېـږم**

**د خپـل جنـون پـر نيـستان بانـدي غـزل وليکم**

**د خيـال پـه کـور کـي مـي تـېـشه د آذر ورنګـوم**

**په خپل تندي کي پر جانان باندي غزل وليکم**

**جهـاني ځمـه لـه قلـم څخـه کـسات اخلمـه**

**په زړه ظالم پر شنه اسمان باندي غزل وليکم**

موږ وينو چي په دې غزل کي له قافيې څخه وروسته رديف په اووه سېلابه کي راغلی دئ، او د قافيې له توري څخه وروسته د «باندي غزل وليکم» رديف د دې له پاره تکرار سوی دئ چي شاعر غواړي د خپلو اورېدونکو او لوستونکو توجه د خپل غزل موضوع ته واړوي.

**چـي غونچـه وي غوړېـدلې هـومره ښـه ده**

**يـار تـر خولـه خبر يـستلې هـومره ښـه ده**

**معاملـه د عـشق سـړی لـه پـردې بـاسي**

**چي په زړه کي وي ساتلې هومره ښه ده**

**د مخ حسن دي د خط په راتلو زيات سو**

**صـحيفه چـي وي ليکلـې هـومره ښـه ده**

**تـــوري زلفـــي سراسر مـــضمون د کفـــر**

**دا نامـه چـي وي ببڅلـې هـومره ښـه ده**

حنان بارکرزی

**يـار وي ليرې سه له ما ما وي پر سترګو**

**مـه راځـه زمـا پـر خـوا مـا وي پـر سـترګو**

**ما وې تا ته به قريب په کوم سبب سم**

**ده وي ترک کړه ماسوی ما وي پر سترګو**

**مـا وې سـتا وصـل پـه څـه ميـسر کېـږي**

**ده وي وښـنده دنيـا مـا وې پـر سـترګو**

**مـا وي نـه لـرم دنيـا فقيـر مفلـس يـم**

**ده وي سر پـه عـوض را مـا وي پـر سـترګو**

**مـا وي سر بـه زه زر ځلـه تـر تـا جـار کـړم**

**ده وي خـوښ پـه دا سـودا مـا وي پـر سـترګو**

شمس الدين کاکړ

د کندهار يو مشهور شاعر عبدالسلام، چي په کندهار کي د ډېر شهرت او محبوبيت له امله عبدالسلام بابا بلل کېږي، دومره د خپل يوه غزل د رديف د شرنګ تر اغېزې لاندي راغلی دئ چي د غزل په څينو بيتونو کي قافيه ورڅخه ورکه سوې ده او ياتې رې نه دئ پکښې وهلی. د دې غزل د رديف شرنګ په رشتيا هم دومره زيات دئ چي په کندهار کي څه باندي پنځوس کاله هنرمندانو له سازونو سره ويلې او تقريباً هيڅوک ئې دې نقيصې ته متوجه سوي نه دي:

**دا امکان نسته چي پر دې بازار به بيا راځم**

**که دي په سپينه خولګی موږ کړم سبا بيا راځم**

**په قمار خانه کي د عشق زړه مي بايللی پر تا**

**عقل مي ولاړی چي پر هوښ به کله بيا راځم**

**خپـل و پـردی مـي نـه پرېږدي ولي سهار و ماښام**

**لکـه يتـيم سـهار شـړلی ماښـام بيـا راځـم**

موږ ګورو چي د غزل رديف بيا راځم دئ. او د رديف څخه مخکي به، سبا، کله او ماښام د قافيې د تورو پر ځای راغلي دي، چي سړی ئې د دونه يوه لوی شاعر څخه هيڅ انتظار نه سي لرلای. البته، کله چي دا غزل د موسيقۍ غېږي ته ورغلي ده نو د بيا راځم رديف دونه په مستي ويل سوی دئ او د رباب او طبلې له آواز او شرنګ سره ئې دونه ښکلی اړخ لګولی دئ چي تقريباً هيڅوک ئې د قافيې نقص ته متوجه سوي نه دي. دا غزل په اوو بيتونو کي ليکل سوې ده او په باقي پاته څلورو بيتونو کي ئې، په بشپړه توګه، قافيه رعايت سوې ده. د دې خبري څخه مو مطلب دا دئ چي په غزل او قصيده کي يوازي په رديف ګوزاره نه کېږي بلکي اصلي توجه بايد د قافيې تورو ته واړوله سي. وروسته نو دا د شاعر اختيار دئ چي څه ډول او

په څه اندازه ردیف ورته ټاکي.

## سیلاب Syllable هجا:

هغه توری یا توري دي چې په ادا کولو سره ئې خوله یو ځل خوځېږي. کېدلای سي چې سېلاب یو توری وي. کېدلای سي دوه توري وي لکه تا، ما، دی، او درې توري وي لکه مور، خور، شور، پور، واټ، شین او کېدلای سي څلور توري وي لکه پلار، پراخ، سرینښ، شلنډ او نور. له یوه او دوو تورو څخه جوړ سوي سېلابونه لنډ او له دریو او څلورو تورو څخه جوړ سوي سېلابونه زیاتره اوږده وي. خو که سېلاب اوږد هم وي په نظم کي بیا هم د یوه واحد په سترګه ورته کتل کېږي او د نظم په تول کي چنداني توپیر نه راولي. تول نظمونه له بیتونو څخه جوړ دي او هجاوي د بیتونو دواړو خواوو ته، چي موږ ئې نیم بیتی یا مصرع بولو، په مساوي توګه ورلوېږي او د نظم انډول برابرېږي.

**له هغه چي پوهېدلی په ښه بد یم**

**رسېدلی د پنځه پنځوس تر حد یم**

ماشوخېل

له – هـ – غه – چي – پو – هې – د – لی – په – ښه – بد – یم (۱۲سېلابه)

ر – سې – د – لی – د – پنـ – ځه – پنـ – ځوس – تر – حد – یم (۱۲ سېلابه)

**زه له خپله بخته چا و ته فــریاد کـړم**

**چي پرون ئې راته مخ وو نن ئې شا کړه**

خوشحال

زه – له – خپـ – له – بخـ – ته – چا – و – ته – فر – یاد – کړم (۱۲ سېلابه)

چي – پـ – رون – ئې – را – ته – مخ – وو – نن – ئې – شا – کړه (۱۲ سېلابه)

سېلاب د نظم کانې بلل سوی دئ. ګواکي نظمونه د سېلابونو په واسطه تلل کېږي او د نظم، په تېره بیا پښتو نظم، منتقدینو داسي انګېرلي ده چي که چیري په یوه نظم یا نظمونو کي د سېلابونو شمېر کم او زیات وي نو په نظم کي سکته ګي او بېخوندي راځي. خو په پښتو نظم کي د هغو بیتونو شمېر زرهاوو ته رسېږي چي د یوه سېلاب توپیر ئې منلی دئ او په نظم کي هیڅ ډول سکته نه احساسېږي. اوس نو دلته سوال پیدا کېږي، چي که خبره داسي وي نو بیا د سېلاب اهمیت په څه کي دئ او څرنګه ئې موږ د نظم کانې بللای سو. خو توجه باید دې خبري ته وسي چي د سېلاب دغه کمبود د نظم په کوم ځای کي راغلی دئ. کله کله د یوه سېلاب یا حتی نیمي هجا توپیر په یوه نظم کي ډېره لویه بېخوندي راوستلای سي، خو کله کله د یوه بشپړ نظم په هر بیت کي د یوه سېلاب زیاتوالي او کموالي ته د چا توجه قدر هم نه اوړي. په پښتو نظمونو کي د سېلاب دغه راز کموالی معمولاً د غزلونو او نظمونو په مطلع او وروسته د نظم تر پایه پوري په دوهمه مصرع کي راځي. که د سیلاب دغه زیاتوالي او کموالي د مصرع یا نیم بیتي د وروستي توري پر ځای د نظم په منځ کي راسي ښایی نظم بېخونده کړي.

البته پښتو نظم یوازي د یوه سېلاب د زیاتوالي او کموالي په برخه کي خاص قواعد لري.

لومړی: پښتو نظم، په تېره بیا غزل او قصیده یوازي د یوه سېلاب زیاتوالی او کموالی مني. که ئې شمېر له یوه سېلاب څخه زیات سي په نظم کي بېخوندي او سکته ګي را ځي. په فارسي نظمونو کي دغه قاعده نسته او کله کله حتی تر څلورو سیلابونو پوري کموالی او زیاتوالی مني؛ خو په نظم کي سکته ګي او بېخوندي نه احساسېږي. موږ به ئې وروسته مثالونه ورکړو.

دوهم: د پښتو غزل او قصیدو په مطلع کي هیڅ وخت په سېلاب کي کموالی او زیاتوالی نسته بلکي دواړه نیم بیتي مساوي سېلابونه لري. په داسي حال کي چي د فارسي نظم په ځینو غزلونو کي په مطلع کي،

حتی، دوه سېلابونه کموالی او زیاتوالی وینو، چې وروسته به په مثالونو کې اشاره ورته وکړو.

د ریم: د یوه سېلاب زیاتوالی هر وخت د مطلع څخه وروسته په لومړیو مصرعو، یا د ښی خوا په مصرعو کې، راځي. دا سې هیڅ وخت نه پېښېږي چې د نظم د کیڼې خوا په مصرع کې د یوه سېلاب زیاتوالی راسي. فارسي نظم دغه قاعده نه ده منلې او کېدلای سي چې د نظم په دواړو خواوو کې د یوه یا زیاتو سېلابونو کموالی او زیاتوالی ووینو، چې مثالونه به ئې وروسته ورکړو.

اوس به د پښتو ژبې د هغو نظمونو مثالونه راوړو چې د یوه سیلاب کموالی او زیاتوالی پکښې راغلی دئ:

**چې مي وکی ستا د عشق په کار آغاز**

**(۱۱ سېلابه)**

**چې - مي - و - کی - ستا - د - عشق - په - کار - آ - غاز**

**سختي چاري سوې را پېښې راز په راز**

**(۱۱ سېلابه)**

**سخ - تي - چا - ري - سوې - را - پې - ښې - راز - په - راز**

**هیڅ خبر نه وم د هجر له ماتمه**

**(۱۲ سېلابه)**

**هیڅ - خ - بر - نه - وم - د - هـ - جر - له - ما - ت - مه**

**چې غمونه زیات و کم لري دراز**

**(۱۱ سیلابه)**

**چې - غـ - مو - نه - زیات - و - کم - لـ - ري - د - راز**

ملا عبدالسلام

**صـــبوري کاندي ســـری آتش نفس (۱۱ سېلابه)**

**بدخواهان ئې شي د اور په لمبه خس (۱۱ سېلابه)**

**د مظلــوم د آزار غشی رســـا لګي (۱۲ سېلابه)**

**هیڅ ګوزار ئې خطا نه درومي عبس (۱۱ سېلابه)**

ماشوخېل

**که دي تخت په هوا درومي چې مین یې (۱۲ سېلابه)**

**بندېوان یې کم قـــوته نه یې خـــــلاص (۱۱ سېلابه)**

**لا دي زړه په ښکلـــیو نښتی دی حمـــیده (۱۲ سېلابه)**

**چې د خلـــقو له تهـمته نه یې خــــــلاص (۱۱ سېلابه)**

ماشوخېل

**هیڅ مي زړه له ساده رویو نه شو تور که مي سل ځله (۱٦ سېلابه)**

**په سینه پوري په ځله د مـــــکې اطلس ومېښ (۱۵ سېلابه)**

**هـر څو غشي چې نګار دي په سـینه زما ویشـتلي (۱٦ سېلابه)**

**دا پرهـار مي په خوله هر یو د ګني په څـېر و زیبېښ (۱۵ سېلابه)**

ماشوخېل

**آب و تاب زمــــا د داغ (۷ سـېلابه)**

**کوز کړ نمر څخه دمــاغ (۷ سېلابه)**

**ستا د مخ له خــــجالته (۸ سـېلابه)**

**مـخ دېوال ته ونیو باغ (۷ ســــېلابه)**

**وچ کوګل لانده لیمه دي (۸ سېلابه)**

**د غـــــمونو باغ و راغ (۷ ســـــېلابه)**

ماشوخېل

**که درلــــودی دلـــــبرانو څــــه انصاف (۱۱ سېلابه)**

**نشته ما غوندي په مینه کي څـــوک صاف (۱۱ سېلابه)**

**که شانه غوندي مي زړه شګاف شګاف شه (۱۲ سېلابه)**

**څـــای ئې نه مــــومم د زلفو په شـــګاف (۱۱ سېلابه)**

**هسي بد ایسي خــــوبان په رقیـــــبانو (۱۲ سېلابه)**

**لکه واخــــلي سګ بازي په لاس اشـراف (۱۱ سېلابه)**

ماشوخېل

د حمید ماشوخېل په دواړو لاندنیو شعرونو کې د قاف توری د ردیف په پای کې ساکن راغلی دئ خو په یوه شعر کې سېلاب کمبود او په بل کې بشپړ دئ. یعني د دې له پاره کومه خاصه قاعده نه وضع سوې او نه ئې موږ وضع کولای سو چې کوم نظمونه په کومو تورو پای ته ورسېږي نو د سېلابونو کموالی او زیاتوالی به نه پکښې راځي. البته یوازې هغه نظمونه چې د واو، او یا په تورو پای ته رسېږي د غزل

او قصیدې تر پایه پورې ئې سېلابونه مساوي راځي. په دغه برخه کې استثنی نسته.

**چې شهره شو ستا په مخ باندې زما عشق (۱۲ سېلابه)**
**مسـخره شه د مجـــنون و د لیلی عشق (۱۲ سېلابه)**
**چې په هره سا ئې ســر ځي لــکه شــمع (۱۲ سېلابه)**
**خان دي هیڅوک معذور نه ګڼي په دا عشق (۱۲ سېلابه)**

د دوهم شعر نمونه:

**که شاهان و تخت و تاج ته لــرې شوق (۱۱ سېلابه)**
**عاشقان تاخت و تاراج ته لري شـــوق (۱۱ سېلابه)**
**د یوسف په دود به پرېوځي و کوهي ته (۱۲ سېلابه)**
**چې د عیش و ښه مــعراج ته لري شوق (۱۱ سېلابه)**

دغه راز په هغو دوو نورو شعرونو کې چې د یوه د ردیف وروستی توری ساکن کاف او د بل د قافیې وروستی توری یا روي ساکن کاف دئ. په لومړي شعر کې سېلابونه بشپړ او په دوهم کې یو سېلاب کمبود دئ:

**څــو ایرې نه شي په مینه د حبیب څوک (۱۲ سېلابه)**
**تور به نه کا په بل شان مخ د رقیب څوک (۱۲ سېلابه)**
**کله شي له لـــــېونیو روغي چــــاري (۱۲ سېلابه)**
**عاشقان څــوک، ادبونه د ادیب څــوک (۱۲ سېلابه)**

ماشوخېل

د دوهم شعر مثال:

**چې له غمه دي د ورځو خبنوم په سینه نوک (۱۵ سېلابه)**
**هر پرهر د نوک هلال شي په سینه زما ملوک (۱۵ سېلابه)**
**هر چه خوب لکه غنچه کا په طلب د ګلندامو (۱۶ سېلابه)**
**په پیغور د هغو سترګي شبنم وکاږي په نوک (۱۵ سېلابه)**

ماشوخېل

**هره چار د پښتانه تر مغول ښه ده (۱۲ سېلابه)**
**اتفاق ورڅخه نشـــــته ډېر ارمان (۱۱ سېلابه)**
**که توفیق د اتفاق پښــتانه مومي (۱۲ سېلابه)**
**زوړ خوشحال به دوباره شي په دا ځوان (۱۱ سېلابه)**

موږ له دغه شعر څخه وروسته د خوشحال خان په دېوان کې د ساکن نون په قافیه درې نور غزلونه لرو چې د ټولو مقطع او د غزلونو دوهمه مصرع یوولس سېلابه او له مطلع څخه وروسته لومړۍ مصرع یا نیم بیتي ئې دوولس سېلابونه لري. دغه راز د ساکن نون په قافیه یو بل غزل:

**چي ترس ئې د زړه نه وي نه عـمل لري د نېکو (۱۵ سېلابه)**
**په دا ئې نظر مـــه کړه چې په یاد لـولي قرآن (۱۴ سېلابه)**
**چه خدای ئې په لار نه کا په ویل به په لار نه شي (۱۵ سېلابه)**
**که پاڅـــــــوي له ګوره و هــغه و ته لقمان (۱۴ سېلابه)**

خوشحال خان

**و ګفـــــتار و ته ئې مه غــــروه ســـترګي (۱۲ سېلابه)**
**په کـــرده په عمل ګـــوره کــــس ناکس (۱۱ سېلابه)**
**دوه سرې په باغ کې ګډ شي یو، ګل ګوري (۱۲ سېلابه)**
**دویم ګــــــرځي په طلب د خــار و خــس (۱۱ سېلابه)**

خوشحال خان

**دانشمند په خواری خوار جاهل کامران دی (۱۲ سېلابه)**
**د ســـــرې طالـــــع په کار دی نه هـــنر (۱۱ سېلابه)**
**چه د زرکو ښــکار په غره کښي پیدا کېږي (۱۲ سېلابه)**
**باز په دا سبب نیولی دی لـــــوی غـــــــر (۱۱ سېلابه)**

خوشحال خان

**خـــبر د هغــو تللیو بیا په بیارته چا را نه وړو (۱۵ سـېلابه)**
**له حاله له احواله ئې هر څو که څــوک پوښــتم (۱۴ سېلابه)**
**دلې چې څوک لیده شي نن ئې شپه په دا بانده کښي (۱۵ سېلابه)**
**آخـــــــر ئې له دې ځــایه وار په وار واته ګــنم (۱۴ سېلابه)**

خوشحال خان

**چې غاښونه دي همېش په خندا سپین وي (۱۲ سېلابه)**
**زمــــانه به دي خــوله مـــاته که په سوک (۱۱ سېلابه)**
**ته به څـــرنګ د روڼي په چــا خیر وکـړې (۱۲ سېلابه)**
**چې محــکم دي زړه تـــړلی دی په ټـوک (۱۱ سېلابه)**

معزالله خان

**په صبا به توري خـــاوري پرې انبار شي (۱۲ سېلابه)**
**نن چې خان ځنډي له خـــاورو په رومال (۱۱ سېلابه)**
**عاقبت به یې خوله چپه لکه ګونګ شي (۱۲ سېلابه)**

که څوک ډېر په ژوندانه که قیل و قال (۱۱ سېلابه)
معزالله خان

غم د دلبرانو وي ژوندون د عاشقانو (۱۴ سېلابه)
زړه مي سمندر شه سره لمبه وطن زما (۱۳ سېلابه)
زه چي کله څیر شم د خوبانو و رخسار ته (۱۴ سېلابه)
پاتو شي تصویر غوندي بې روحه تن زما (۱۳ سېلابه)
سر زما لحد ته معزالله که دلبر کوز کا (۱۴ سېلابه)
سور به وي د زړه په وینو سپین کفن زما (۱۳ سېلابه)
معزالله خان

د معزالله خان مومند په یوه بل غزل کي چي د پورتني غزل په څیر د زما په ردیف پای ته رسېږي او د «ز» توری ئې د پورتني غزل په شکل پېښ لري، مگر سېلابونه ئې په ټولو نیم بیتیو کي یو شان او بشپړ دي. په داسي حال کي چي له دې څخه مخکي د هغه په اتو نورو هغو غزلونو کي چي د زما په ردیف پای ته رسېږي او د (ز) توری ئې پېښ لري، او په عین شکل حرکت کوي، د ټولو په مطلع او دوهمه مصرع کي تر پایه پوري یو سیلاب کم دئ. گواکي د سیلاب د دغه راز کمبود د علت د تشخیصولو له پاره د خاصي قاعدې ایښودل هم گران کار دئ:

رنگ شه زېړ تر زر زما اوښي دُر گوهر زما (۱۴ سېلابه)
کبر کا دلبر زما ناخلي مال و سر زما (۱۴ سېلابه)
صبر مي له زړه نه ځي نور مي له لیمه نه ځي (۱۴ سېلابه)
ولي بیا له څه نه ځي دا ښکلي دلبر زما (۱۴ سېلابه)
ښکلي پر آشوبه دي سترگي مي بیخوبه دي (۱۴ سېلابه)
دا له مین توبه دي کسي دي تل تر زما (۱۴ سېلابه)

یا د معزالله خان مومند په هغو دوو غزلونو کي چي د دواړو قافیه د (ج) د توري په سکون پای ته رسېږي، د یوه په مطلع او دوهمو مصرعو کي یو سیلاب کم او په بل غزل کي ئې له سره تر پایه ټول سیلابونه پوره دي:

د زړه ملک وته رخنه بده پیدا شي (۱۲ سېلابه)
هر چي وازه کاندي خوله په احتیاج (۱۱ سېلابه)
چي په وصل کي ئې هم قراري نه وي (۱۲ سېلابه)
د دې هسي زړه په چا وکړم علاج (۱۱ سېلابه)

بل غزل:

په خپل حسن مغرور شوی دی پوهېږم (۱۲ سېلابه)
له دماغه کا و هر چا ته گفتار کج (۱۲ سېلابه)
که دي قد په سترگو ویني یو ځله (۱۲ سېلابه)
له غیرته به قامت شي د چنار کج (۱۲ سېلابه)

د خوشحال خان خټک په هغو دوو غزلونو کي چي د دواړو قافیه د (ل) د توري په سکون پای ته رسېږي، په یوه کي په مطلع او دوهمو مصرعو کي یو سیلاب کم او په دوهم غزل کي ټول سېلابونه پوره دي:

د ښه یار دیدن وي تل (۷ سېلابه)
سره ځای چمن وي تل (۷ سېلابه)
رقیبان ولاړ له ورایه (۸ سېلابه)
له ما هم سخن وي تل (۷ سېلابه)
د خپل یار د کوڅې خاوري (۸ سېلابه)
د خوشحال وطن وي تل (۷ سېلابه)

په بل غزل کي:

خپل پردي چي د شمشېر شول (۸ سېلابه)
کشتني تر شماره ډېر شول (۸ سېلابه)
توره ونغاړه خوشحاله (۸ سېلابه)
اوس به څو وژنې چي ډېر شول (۸ سېلابه)
دا پیري ده که طالع ده (۸ سېلابه)
چي گیدړ وو راته شېر شول (۸ سېلابه)

د عبدالقادر خان خټک په هغو دوو غزلونو کي چي قافیه ئې په الف پای ته رسېږي، د یوه په مطلع او دوهمو مصرعو کي یو سېلاب کم او په بل کي ټول سېلابونه پوره دي. او بیا هم سړی د سېلاب د کمبود د علت په تشخیصولو کي له ستونزي سره مخامخ کېږي. البته دواړه غزلونه دومره روان دي چي زه گومان کوم په خپله عبدالقادر خان به هم د یوه سېلاب کموالي ته متوجه سوی نه وي:

څو قطرې خمور په یاد په مځکه توی کړه (۱۲ سپلابه)
چې په بزم د عشرت اخــــــلې صهبا (۱۱ سپلابه)
ستا د زلفو بوی نسیم په چـــــمن راوور (۱۲ سپلابه)
له مستی شـــــو د غنچې قمیص قبا (۱۱ سپلابه)
چې ئې یار له غېږې ځي د مرګ ساعت وي (۱۲ سپلابه)
دریغه مه وای د وصال د شـــپې ســبا (۱۱ سپلابه)

په بل غزل کې:

ســـــرو لبانو ئې قیمت د لعــلو کــم کړ (۱۲ سپلابه)
سپینو غاښو ئې بې آب کړ گــوهر هــم لا (۱۲ سپلابه)
نه یواځې په صورت جدایي خـــوار کـــړم (۱۲ سپلابه)
په دا اور دننه ســــوځي ځـگر هـم لا (۱۲ سپلابه)
په لمانځه کښې د یار ورځې را په یاد شوې (۱۲ سپلابه)
د زړه آه مې محـــراب وسو منبر هــم لا (۱۲ سپلابه)

## سپلاب د فارسي په نظمونو کې:

ما د پښتو په منظوم ادب کې داسې نظم نه دئ لوستی چې د نظم په مطلع کې ئې د سپلابونو توپیر موجود وي او نه مې داسې نظم په سترګه سوی دئ چې د یوه او بل نیم بیتي تر منځ دوه سپلابه زیات و کم وي او که چیرې په کوم نظم کې د نیم بیتیو تر منځ د دوو سپلابونو توپیر راغلی وي نو حتماً به په نظم کې هم یوه ببخونده سکته ورسره ملګرې وي. البته د دریو سپلابونو خبره خو بیخي مطرح نه ده. خو د فارسي ژبې د ډېرو لویو شاعرانو په شعرونو کې دا درې واړه حالتونه لیدل کېدلای سي او موږ ګورو چې بیا هم په نظم کې هیڅ ډول سکته نه احساسېږي. د حافظ شېرازي د دېوان لومړی غزل، چې د یزید بن معاویه د هغه غزل چې وایي:

ان المسموم ما عندي بترياق ولا راقي (۱۶ سپلابه)
ادر کاساً و ناولها الا یا ایهالســاقي (۱۶ سپلابه)

په مطلع پیل کېږي، شپاړس او پنځه لس سپلابونه لري. د دوهم بیت دواړه مصرع ئې شپاړس سپلابونه لري او د دریم بیت لومړی مصرع پنځه لس او دوهمه ئې څوارلس سپلابه ده، چې د مخکني بیت څخه دوه سپلابونه کم لري.:

الا یا ایهاالســــــاقي ادر کاســاً و ناولـها
که عشق اسان نمود اوّل ولی افتاد مشکلها

ا – لا – یا – ای – یُ – هس – سا – قی – ا – در – کا – سأ – و – نا – ول – ها (۱۶ سپلابه)
که – عشق – آ – سان – ن – مود – او – وّل – و – لې – اُف – تاد – مش – کل – ها (۱۵ سپلابه)

ببوی نافهٔ کآخـــر صبا زان طــره بکشـــاید (۱۶ سپلابه)
زتاب جعد مشکینش چه خون افتاد در دلها (۱۶ سپلابه)
مرا در منزل جانان چه امن عیش چون هر دم (۱۵ سپلابه)
جـــرس فریاد میدارد که بربندید محمــلها (۱۴ سپلابه)

د حافظ شېرازي د لاندي غزل د مطلع لومړی مصرع دوولس او دوهمه ئې څوارلس سپلابونه لري، چې د پښتو په نظم کې ئې هیڅ مثال نه لیده کېږي:

خوشست خلوت اگر یار یار من باشد
نه من بسوزم و او شمع انجــمن باشد

خو – شست – خل – وت – ا – گر – یار – یا – ر – من – با – شد (۱۲ سپلابه)
نه – من – ب – سو – زم – و – او – شم – ع – ان – ج – من – با – شد (۱۴ سپلابه)

من آن نگین سلـیمان به هیچ نســـتانم (۱۳ سپلابه)
که گاه گاه برودست اهـــرمن باشـــد (۱۲ سپلابه)
بیان شوق چه حاجت که ســوز آتش دل (۱۴ سپلابه)
توان شناخت ز سوزی که در سخن باشد (۱۳ سپلابه)

د حافظ شېرازي، چې د فارسي په ادب کې، د پښتو ژبې د رحمن بابا په څېر، په رواني او سلاست کې ډېر زیات شهرت لري، د یوه بل غزل په مطلع کې هم د دوو سپلابونو توپیر لیده کېږي. او په وروسته بیتونو او مقطع کې د دوو سپلابونو توپیر وینو:

سحر ز هاتف غیبم رسید مژده بگوش (۱۴ سپلابه)
که دور شاه شجاعست می دلیر بنوش (۱۲ سپلابه)

بصوت چــــنگ بگوییم آن حــــکایتها (۱۲ سپلابه)
که از نهفتن آن دیگ سینه میزد جـوش (۱۴ سپلابه)
رموز مصلــحت ملک خســروان دانند (۱۳ سپلابه)
گدای گوشه نشیني تو حافظا مخروش (۱۵ سپلابه)

موږ ګورو چي د مقطع وروستۍ مصرع یا نیم بیتی د مطلع له دوهمي مصرع سره درې سپلابه توپیر لري. د حافظ شیرازي هغه غزل د سپلاب د اصولو او مطالعې له مخي ډېره په زړه پوري ده چي په مقطع کي د دریو سپلابونو توپیر لري او په وروسته کي ئې، حتى، دوه بیتونه د مطلع له لومړۍ مصرع سره څلور سپلابه توپیر لري:

دوش با من گفت پیر کاردان تیز هوش (۱۱ سپلابه)
دوش – با – من – گفت – پیـ – ر – کار – دا – ن – تیز – هوش

کزشما پنهان نشاید داشت راز می فروش (۱۴ سپلابه)
کز – شـ – ما – پنـ – هان – نـ – شا – ید – داشت – را – ز – می – فـ – روش

گفت آسان گیر بر خود کارها کز روی طبع (۱۲ سپلابه)
سخت میگیرد جهان بر مردمان سخت کوش (۱۳ سپلابه)
با دل خونین لب خندان بیاور همچـو جام (۱۵ سپلابه)
نې گرت زخمې رسد آیی چو چنگ اندر خروش (۱۵ سپلابه)
تا نگردی آشـــنا زین پرده رمــزی نشنوی (۱۵ سپلابه)
گوش نامحرم نباشد جای پیــغام سروش (۱۵ سپلابه)

د حافظ شیرازي په یوه بل غزل کي هم په مطلع کي د سپلاب توپیر وینو او هم په وروسته کي د مطلع له دوهمي مصرع سره درې سیلابه توپیر وینو. خو د سیلابونو دغه راز لوی توپیر د غزل روانۍ ته چنداني تاوان نه دی رسولی:

دیدار شــد میسر و بوس و کـنار هــم (۱۲ سپلابه)
از بخت شـــــکر دارم و از روزگار هــم (۱۱ سپلابه)
زاهــد برو که طــالع اگـر طالع منست (۱۴ سپلابه)
جامــم بدست باشــد و زلف نگار هــم (۱۲ سپلابه)
مـا عیب کس بمستی و رندی نمیـکنیم (۱۴ سپلابه)
لعل بتان خوشست و می خوشگوار هم (۱۳ سپلابه)

د عصمت بخارایی د یوه ډېر مشهور غزل په مطلع کي د دوو سپلابونو توپیر وینو او کله چي غزل دوام کوي نو د مطلع له دوهمي مصرع سره د سپلابونو د توپیر خبره، بیا هم، دریو ته رسېږي:

سرخوش از کوی خرابات گذر کردم دوش (۱۳ سپلابه)
به طلبگاری ترســـــا بچه باده فروش (۱۵ سپلابه)
سر – خوش – از – کو – ی – خـ – را – بات – گـ – ذر – کر – دم – دوش (۱۳)
به – ط – لب – گا – ری – ی – تر – سا – بـ – چه – ی – با – ده – ف – روش (۱۵)

پیشم آمــــــد به ســر کوچه پری رخساری (۱۴ سپلابه)
کافری عشــوه گـــری زلف چـو زنار بدوش (۱۳ سپلابه)
گفتم این کوی چه کوی است و ترا خانه کجاست (۱۴ سپلابه)
ای مـــه نو خـــم ابروی ترا حلــقه بگوش (۱۵ سپلابه)
این نه کعبه است که بی پاو سر آیی به طواف (۱۴ سپلابه)
وین نه مسجد که در او بی ادب آیی به خروش (۱۵ سپلابه)
این خــــرابات مغــان است در او رندانند (۱۳ سپلابه)
از دم روز ازل تا به قیامت مـــدهـــــوش (۱۴ سپلابه)
گفت تسبیح به خـاک افـــگن و زنار ببند (۱۲ سپلابه)
سنگ بر شیشه تقـــوا زن و پیمانه بنـوش (۱۴ سپلابه)
بعد ازآن پیش مـــن آ تا به تو گـــویم رمزی (۱۴ سپلابه)
ره این است اگر بر سخـــــنم داری گــوش (۱۲ سپلابه)

دغه راز د نظامي ګنجوي د یوه مشهور غزل، چي په هغه وخت کي ئې ځینو شاعرانو جوابونه لا هم ورته لیکلي دي، په مطلع کي دوه سیلابونه توپیر وینو او د غزل د یوه بیت د دوهمي مصرع او د مطلع د لومړنۍ مصرع تر منځ درې سیلابه توپیر موجود دئ. وروسته خبره په یوه بیت کي د څلورو سپلابونو توپیر ته رسېږي:

دوش رفتم به خرابات مـــرا راه نبود (۱۲ سپلابه)
دوش – رف – تم – به – خـ – را – بات – مـ – را – راه – نـ – بود (۱۲)

**می زدم ناله و فریاد کس از من نشنود (۱۴ سېلابه)**

می–ز–دم–نا–له–و–فر–یاد–کس–از–من–
نـ–شـ–نود (۱۴)

**پاسی از شب که بشد بیشترک یا کمتر (۱۳ سېلابه)**

پا–سی–از–شب–که–بـ–شد–بیشـ–تـ–رک–
یا–کمـ–تر

**رندی از غرفه برون کرد سر و ورخ بنمود (۱۴ سېلابه)**

رنـ–دی–از–غر–فه–بـ–رون–کرد–سر–و–
رخ–بـ–نـ–مود

**گفت خیر است در این وقت کرا می خواهی (۱۱ سېلابه)**

گفت–خیر–است–در–این–وقت–کـ–را–
می–خوا–هی

**بی محل آمدنت بر در ما بهر چه بود (۱۵ سېلابه)**

بی–محل–آ–مـ–د–نت–بر–د–ر–ما–بـه–ر–
چه–بود

**سرو زر هیچ ندارند در این بقعه محل (۱۳ سېلابه)**

سر–و–زر–هیچ–نـ–دا–رند–در–این–بقـ–
عه–م–حل (۱۳)

**سود شان جمله زیانست و زیانش همه سود (۱۵ سېلابه)**

سو–د–شان–جمـ–له–ز–یا–نست–و–ز–یا–
نش–هـ–مه–سود (۱۵)

**هر چه در جمله آفاق در اینجا حــاضر (۱۳ سېلابه)**

**مومن و ارمني و گبرو نصـــارا و یهود (۱۵ سېلابه)**

**سر کویش عرفاتست و مقامش کعبه (۱۴ سېلابه)**

**دوستان همچو خلیلند و رقیبان نمرود (۱۳ سېلابه)**

د مولنا جلال الدین رومي د یوې غزلې په مطلع کې د یوه سیلاب توپیر موجود دئ، خو په وروسته بیتونو کې له مطلع سره توپیر کله یو او کله دوه سېلابه دئ، البته بیا هم د غزل په شرنګ او رواني کې هیڅ توپیر نه لیده کېږي:

**باده نمی بایدم فارغـــــم از دُرد و صاف (۱۴ سېلابه)**

**تشنهء خون خودم آمد وقت مصـــــاف (۱۲ سېلابه)**

**برکش شمشـــیر تیز خون حســودان بریز (۱۲ سېلابه)**

**تا سر بې تن کند گرد تن خود طـــــواف (۱۴ سېلابه)**

**کوه کن از کلّه ها بحر کن از خــــون ما (۱۲ سېلابه)**

**تا بخورد خاک و ریگ جرعهٔ خون از گزاف (۱۴ سېلابه)**

**در دل آتش روم لقمه اتش شـــــــوم (۱۴ سېلابه)**

**جان چو کبریت را برچــــــه بریدند ناف (۱۲ سېلابه)**

دغه راز د میرزا عبالقادر بیدل، سعدي، جامي، انوري، صایب تبریزي او د فارسي ژبې د نورو شاعرانو په زرهاوو غزلونو کې د سېلابونو کې دونه زیاته بې انډولي لیده کېږي، چې د پښتو ژبې د غزلونو او قصیدو سره ببخي مقایسه کېدلای نه سي. موږ ښایي د فارسي نظم په اړه دغه راز په زرګونو مثالونه ولرو، خو څرنګه چې دا لیکنه، زیاتره، د پښتو ژبې د نظم په باره کې ده نو د فارسي ژبې د نظمونو د زیاتو مثالونو له راوړلو څخه تېرېږو.

د پښتو ژبې په غزلونو او نظمونو کې تر یوه سیلاب زیاته بې انډولي نه سته او نه ئې امکان موجود دئ. که چیرې د پښتو په کوم نظم کې دوه سېلابه یا کم او یا زیات سي حتماً سکته راولي، او دغه علت دئ چې زموږ ټولو شاعرانو ځانونه ور څخه ژغورلي دي. مګر موږ په خپلو پورتنیو مثالونو کې ولیدل چې د فارسي ژبې په نظم کې د دوو یا دریو او حتی څلورو سیلابونو په کمولو او زیاتولو سره هیڅ بې نظمي نه ده راغلې، او د نظم او غزلې رواني ته هیڅ ډول تاوان نه دئ رسېدلی. که څوک حتماً د دې پورتنیو غزلونو او نظمونو د سېلابونو شمېرلو ته ملا و نه تړي نو په تش اورېدلو سره ئې ښایي کموالي او زیاتوالي ته په هیڅ توګه متوجه نه سي، او پر غوږونو ئې بد نه لګېږي.

اوس نو که خبره دا سي وي بیا د سېلاب وظیفه څه شي ده. موږ هر وخت اورېدلي دي چې سېلاب د نظم کانې دئ. موږ د غزلونو او نظمونو دواړې خواوې د سېلابونو په تول تلو او بې انډولۍ ته ئې متوجه کېږو. دا خبره ښایي د پښتو نظمونو په برخه کې صدق وکړي ځکه چې دې ژبې یوازې د یوه سېلاب کموالی او زیاتوالی منلی دئ. مګر د فارسي

ژبي نظمونو تر دريو، او حتی تر څلورو، سپلابونو پوري توپير منلی او روائي ئې ساتلې ده. نو ګواکي په نظم کي، په تېره بيا د فارسي ژبي په نظم کي، د سپلاب شمېر هغومره مهم نه دي لکه د سپلاب يا هجا پر ځای کارول چي اهميت لري. د فارسي ژبي د لويو شاعرانو د نظمونو د ځو پورتنيو مثالونو څخه څرګندېږي چي که د سيلاب او هجا شمېر زيات او کم وي مګر پر ځای کارول سوي وي، د نظم روانی ته تاوان نه رسېږي خو که سپلابونه په شمېر پوره او انډول ئې برابر هم وي او پر ځای کارول سوي نه وي، د شعر روانی ته تاوان رسېږي او پر غوږونو ښه نه لګېږي، او اصلاً د شعر خوند نه کوي.

## لنډۍ او ناري:

په فوکلوري نظمونو کي يوازي لنډۍ دي چي د سپلاب په برخه کي هيڅ ډول کموالی او زياتوالی نه مني. لومړۍ برخه ئې بايد حتماً نهه سپلابه او دوهمه برخه ئې بايد هرو مرو ديارلس سپلابه وي. که داسي نه وي نو په هغي لنډۍ کي د اصيلي لنډۍ خوند نه پاته کېږي. د بلي خوا، که هر څو يو شعر د نهو او ديارلسو سپلابونو څخه جوړ سوی وي چي د «نه» او «مه» په تورو پای ته رسېدلی نه وي هغه ته نه لنډۍ ويل کېږي او نه د لنډۍ خوند کوي.

**تر دا يوړي توپک دي جار سم**
**پر اوږه ستا دئ کره زه له خياله ځمه**
**دا پېغلتوب مي په غم زوړ کې**
**خيالي خوانان راباندي مري خونکاره شومه**
**سپيني سپوږمۍ ته به خوله درکم**
**د قلا سيوري ته مي مه بيايه ډارنه**
**مسافري دي روزي مه سه**
**زه دي ملاله خوله ويده پرې ايښې يمه**
**زيارت و تا ته نه رسېږي**
**تر تا دمخه ما پر ايښې دي لاسونه**
**زما جانان دي دوږي بند کی**
**تر زنګانه سې د اټک روده ظالمه**
**تر دېوال دوې ګوتي سر لوړ که**
**د زني خال به دي دېوال ورژوينه**

لنډۍ ښايي د پښتنو د کلتور او عنعناتو، د هغوی د ټولني او د هغوی د خپلو خصوصياتو تر ټولو ښه او لرغونی ښکارندوی وي. که د پښتو نظم نورو شکلونو لکه غزل، رباعي، قصيدې او مثنوي، په يوه او بل رنګ، د ګاونډيو نظمونو تر اغېزې لاندي وده کړې وي، نو دا په پوره جرئت سره ويلای سو چي لنډۍ تقريباً د هيڅ کلتور تر اغېزې لاندي نه ده راغلې او بشپړه مستقله وده ئې کړې ده. د يوې لنډۍ په همدغو نهو او ديارلسو سپلابونو کي هدف او موضوع، په مستقله توګه، داسي افاده کېږي چي د بلي لنډۍ سره ترلو ته ضرورت نه پاتېږي. لنډۍ د موضوعاتو له پلوه دونه غني ده چي د جنګونو له تودو سنګرونو څخه نيولې، تر مړاني او نامردۍ، د مينې تر راز و نياز، د ښکلا تر ستايلو، د خيالي ګودرونو سره د پيغلو تر پېزوانونو او پايزېبونو، تر بورګلويو او تقريباً ټولو اجتماعي او اخلاقي موضوعاتو پوري پکښي نغښتي دي. زموږ په ګاونډيو کلتورونو کي د سپلابونو په دغه ترکيب او نظم او د موضوعاتو په دغه غنا او ښکلا د فوکلوري نظمونو مثال نه ليده کېږي.

**ټوټې ټوټې په تورو راسې**
**چې پرهارونه دي ګنډم خوله درکومه**
**ستا دي قسم په ذوالجلال وي**
**يو يار دي زه يم نور دي ځو نيولي دينه**
**د ګودر هر بوټی دارو دئ**
**پرې لګېدلي دي د پيغلو پلوونه**
**زيارت کوم نه را رسېږي**
**خدايه که ګډ کې دا د کاڼو زيارتونه**
**سر له کتابه که راپورته**
**په سترګو ړوند سې پر کتاب در وختمه**

دا چي ويل کېږي چي اکثريت لنډۍ د پښتنو ښځو ويلي دي، دا خبره زما په عقيده د تامل وړ ده. زه فکر کوم چي د پښتنو مخ پوټو، له معاشرې څخه

لیري ساتلیو سویو او بیسواده ښځو، په دې ښایست، د نظمونو د لیکلو توان نه درلود. دا لنډۍ، زیاتره، پخپله نارینه وو لیکلي او ښځو ته ئې منسوبې کړي دي. شاعرانو دا غوره بللې ده چي خپل جنګي مېړونه د ښایستو پیغلانو په واسطه جنګ ته وهڅوي، او بیا ئو وعده ورکړي چي که په جنګ کي تېپي سو نو، پر هغه باندي مینه او د هغه په نامه ناسته ښایسته پیغله، به د هر پرهار د ګنډلو سره یو خل خوله ورکوي. او که چیري شهید سو نو دا به خپل سور شال د هغه پر زیارت وغوړوي او که ئې چیري په جنګ کي بې ایماني وکړه او پر شا راغی نو هغه ښایسته پېغله به چي د ده په تمه ناسته ده په همزولو کي څوړي سترګي ګرځي. نارینه شاعرانو د میني په برخه کي خپل د زړه بړاس ایستلی او ښځو ته منسوبول ئې غوره بللي دي. وروسته داسي فکر سوی دئ چي دا لنډۍ په حقیقت کي هم ښځو ویلي دي. البته احتمال لري چي ښځو هم د لنډیو د جوړولو په برخه کي یو څه ونډه اخیستې وي، خو زه فکر نه کوم چي د پښتني ماحول شرمیندوکو، حیاناکو، او له تقریباً ټولو اجتماعي حقوقو څخه محرومو ښځو دي د لنډیو په ژبه د میني د اظهارولو زړه کړی وي. هغه پېغلاني به چي حتی نن ورځ د یوه مشروع مېړه د انتخابولو حق نه ورکول کېږي او که چیري د پلار او مشرانو د اجازې او خوښي پرته ځانته د ژوند ملګری انتخاب کړي د وژل کېدلو له خطر سره مخامخ کېږي، هغوی به څرنګه په دومره ښایستو کلماتو د خپلي سوځنده میني د اظهارولو جرئت وکړي. په هغه اندازه چي د پښتنو په تاریخ کي ښځینه شاعراني د ګوتو په شمېر دي، په هغه اندازه ئې د لنډیو شاعري هم کمه ده او که ئې چیري لنډۍ جوړي کړي وي هم به د ګوتو په شمېر وي.

دغه راز ګودرونه د ښایستو نجونو او زلمیانو تر منځ د پټو دیدنونو او عاشقانه لیدنو ډېر مهم مرکزونه معرفي سوي دي.

**که دیدن کړې ګودر ته راسه**

**زه به منګی په لپو ورو ورو ډکومه**

خو په حقیقت کي په ګودر کي د ښایستو پیغلو سره لیدل او مینه کول له امکانه لیري خبره ده او په واقعیت کي یوازي هغه زلمي د نجونو ګودر ته ورتللای سي چي له ژونده ماړه وي، کنه نو هیڅوک د ګودر نژدې علاقې ته سترګي اړولای نه سي. ګودرونه یوازي په نجونو اړه لري او نارینه شاعرانو د خوبونو او خیالونو په دنیا کي له هغوی سره، په ګودرونو کي، د میني داستانونه پیل کړي او لنډۍ ئې ورته ویلي دي. ګواکي هغسي چي په ګودرونو کي د ښایستو پیغلو او مستو زلمیانو ترمنځ د میني راز و نیاز خیالي دئ هغسي د ښایستو پېغلو له خولو څخه د لنډیو نقلول د نارینه شاعرانو د خیالونو ایجاد دئ.

لنډۍ د پښتنو اصیل فوکلوري میراث دئ، او ښایي ډېرو پخوا زمانو ته منسوبې وي. دا چي سر ئې څومره پخوانیو زمانو ته رسېږي، موږ څکه څه نه سو ویلای چي په لنډیو کي د پخوانیو زمانو کومي ټاکلي پېښي یا پېښو ته مشخصه اشاره نه ده سوې چي موږ د هغې پر اساس د یوې یا څو لنډیو تاریخي قدامت وټاکلای سو. او نه د لنډیو په شکل او کلماتو کي داسي ټاکلي توپیرونه موجود دي چي موږ د هغو توپیرونو پر اساس ځیني خاصي لنډۍ ځینو خاصو زمانو ته منسوبې کړو. البته دا چي موږ په دغه، یا دغه ته په نژدې، وزن د پښتنو پر شاوخوا باندي پرتو کلتوري حوزو کي فوکلوري شعرونه نه لرو، او په دغه وزن فوکلوري شعرونه یوازي د پښتنو مال دئ، نو ویلای سو چي پښتنو به له خپل دغه فوکلوري صنف سره ډېره پخوانۍ اشنایي درلودلې وي. او په دغه قالب کي به ئې له جنګ څخه نیولې، تر میني پوري د هر څه اظهار کړی وي. څکه هغه چاربیتي او فوکلوري سندري چي د تاریخي پېښو یادونه پکښي سوې ده ښایي ایله دوې پېړۍ عمر ولري او تر دغه دمخه موږ د

پښتنو د فوکلوري نظمونو څرک نه لرو. نو د فوکلور په برخه کې بیر ته موږ او لنډۍ سره پاتېږو.

محترم حبیب الله رفیع د ځوان ژور نالیسټ او شاعر محمد هارون حکیمي سره په خپله یوه مرکه کې ویلي دي چې لنډۍ له څلور نیم زرو څخه تر پنځو زرو کالو پوري عمر لري. البته د دونه یوې لویې ادعا د اثبات له پاره موږ یوازې پر تاریخي اټکلونو او قیاسونو باندې تکیه نه سو کولای، بلکې ډېرو اسنادو او شواهدو ته ضرورت لرو. له دومره پخوانیو زمانو څخه تر اوسه پورې د پښتنو د ژوند په هره برخه کې دومره ژور تغیرات راغلي دي چې کتابونه ورباندې لیکل سوي او لا ورباندې لیکل کېدلای سي. په دې پنځه زره کلونو کې پښتنو زر خله داخلي او خارجي جنګونه کړي دي. د هستوګنې ځایونه، ښارونه او سیمې ئې بدلي کړي دي، مذهبونه ئې بدل کړي دي او د ژوند داسې ساحه ئې نسته چې په هغې کې دې ژور او د پام وړ تغیرات راغلي نه وي. دا امکان نه لري چې دومره لویو او ژورو تحولاتو دې د پښتنو په اصیل فوکلور کې انعکاس نه وای کړی. خو که موږ په زرهاوو لنډۍ تر نظر تېرې کړو نو موږ به د شکل له مخې هیڅ تغیر پکښې و نه وینو او د متن له مخې به له ډېر لږ تغیر سره مخامخ سو. د دې خبرې معنی به دا وي چې له دوو دریو سوو کالو څخه مخکې ټولې لنډۍ ټولې هېرې سوي او د وروستیو پېړیو لنډۍ په میراث راپاته دي. د دې خبرې احتمال ډېر کم دئ او که داسې پېښه سوې وي نو بیا موږ په کوم استناد د لنډیو د پنځه زره کلن عمر ادعا کولای سو. زه دا نه وایم چې لنډۍ به زیات عمر نه لري خو کله چې موږ د کلونو، او دومره زیاتو کلونو، خبره کوو نو باید چې لږ تر لږه شل مثالونه خو ولرو.

د مومن خان او شېرینو او ملا عباس او ګل بشرې یا طالب جان په هغو نکلونو کې چې په کندهار کې ترتیب سوي او مشهور فوکلوریسټ محمد ګل نوري د ملي هینداري په کتاب کې قید کړي دي، ټولې نارې د لنډیو پر وزم راغلي دي. دا نکلونه پخپله څومره پخواني دي، سړی ئې په دقیق صورت د زمانې په باره کې څه نه سي ویلای. د مومن خان نکل د مغولو زمانې ته منسوب دئ. په دې حساب باید دا نکل لږ تر لږه څلور پنځه سوه کاله عمر ولري. خو کله چې په دغه نکل کې د ښامار افسانې ته ګورو، چې د پښتنو په ټولو فوکلوري نکلونو کې یوازې د مومن خان په نکل کې تبارز کوي، نو ویلای سو چې دا نکل، تر هغه چې موږ ئې اټکل کوو، ښایي ډېر لرغونی وي. د ښامار افسانه د اروپاي فوکلور څخه راغلې ده. په اروپا کې د دې افسانې په لسهاوو او یا ښایي په سل هاوو شکلونه موجود وي، او په اروپایي فوکلور کې ئې عمر تر زرو کالو زیات دئ. په دې حساب باید د مومن خان نکل هم، لږ تر لږه، شپږ اووه پېړۍ عمر ولري. البته دا نه سو ویلای چې د لنډیو پر وزم نارې به دغه نکل ته کله ور لوېدلي یا ور اچول سوي وي. خو دونه په جرئت سره ویلای سو چې دا دواړه نکلونه به، د نارو له پاره، د لنډۍ د وزن د انتخابولو په دلیل، تر نورو هغو نکلونو ډېر زاړه وي چې د نارو له پاره ئې بېل بېل وزمونه ټاکلي او په وروسته کې نکلچیانو دونه زیات او بېخونده تغیرات پکښې راوستلي دي چې د نظمونو حیثیت ئې له لاسه ور کړی دئ.

د مومن خان نکل ته منسوبې لنډۍ زیاتره خپل فوکلوري رنګ لري. په لره پښتونخوا کې د مومن خان او شېرینۍ په قصه کې، چې جمال شاعر د سنګر منظومه کړې ده، د نکل په بېلو بېلو برخو کې څو لنډۍ راغلي دي، چې پخپله د جمال شاعري معلومېږي. خو د تعجب خبره دا ده چې په دوو کلتوري حوزو کې، چې له یوې بلې څخه ئې ډېره زیاته فاصله درلوده، څرنګه یوه نکل ته د نارو پر ځای لنډۍ انتخاب سوي دي. دا مثال په نورو هغو نکلونو کې چې په دواړو کلتوري حوزو کې رواج لري نسته.

په ملي هینداره کې د طالب جان نکل ته منسوبې لنډۍ، په تېره بیا هغه لنډۍ چې طالب جان او گل بشرې یوه بل ته په لیکونو کې لېږلې دي، د مومن خان د نکل په خلاف، ساختگي او وروسته جوړې سوې ښکاري. خینې خو ئې هیڅ فوکلوري خوند نه لري او یوازې شکل ئې د لنډیو دئ:

**جانان به لیري له ما نه ځي**

**که ئې د زړه ولې زما له باغه وینه**

**زړه مي د تورو وینو ډک دئ**

**که غرغړې کم ملک به ټول په وینو کمه**

**سترگي مي زړه ته ور نژدې که**

**چې پکښې ووینې د سرو وینو ډنډونه**

**مخ دي فقط شکل رابع دئ**

**په نتیجه مي زړگی دړې وړې سونه**

**په تصور کې مي زړه شین دئ**

**څو د تصدیق مقام راځي خاوري به یمه**

البته د دې معنی دا نه ده چې د طالب جان نکل ته ټولې او یا ډېرې زیاتې لنډۍ به د وروستیو نکلچیانو ایجاد وي، بلکي ډېرې زیاتې نارې ئې فوکلوري رنگ لري او په سیمه کې، د دې نکل له شهرت څخه ښکاري چې ډېرو پخوا زمانو ته به منسوب وي او د زمانو په اوږدو کې به ئې هم په نکل او هم په نارو کې تغیرات راغلي وي.

که د طالب جان په نکل کې، په وروسته کې، جوړې سوې لنډۍ ډېرې راغلي دي نو داسې لنډۍ هم پکښې سته چې هغه، د دې نکل څخه په مستقله توگه، په تقریباً ټولو پښتني سیمو کې شهرت لري او نکلچیانو وروسته پر دغه نکل باندي زیاتې کړي دي او یا احتمال لري چې د ډېرې لرغوني زمانې څخه د دې نکل سره ملگرې سوې وي او وروسته ئې د همدغه نکل له لارې په اولس کې رواج موندلی وي:

**گل د گلاب بوی د سنخلي**

**سیوری د ولي خوب د پېغلي پر ورنونه**

**په گل گلاب دي وویشتمه**

**تر لاس دي جار سم دښمنانو ولیدمه**

د طالب جان نکل د پښتنو په فرهنگي سیمه کې یا نه دئ لیکل سوی او یا ما نه دئ لیدلی. او تر هغه ځایه چې زه معلومات لرم دا نکل یوازې د افغانستان د کندهار په کلتوري حوزه کې شهرت او اورېدونکي لري. مشهور مستشرق جیمز ډارمستېټر په خپل مشهور کتاب، د پښتونخوا د شعر هارو بهار کې، چې زیاتره فوکلوري نظمونه ئې د پښتنو په شاوخوا علاقه پوري اړه لري، د مصرعها په نوم، دوې لنډۍ لري، چې د پښتنو په تقریباً ټولو سیمو کې مشهوري دي، او هغه دواړې لنډۍ د طالب جان په نکل کې راغلي دي:

**سلام علیک زه درنه ولاړم**

**بیا به دیدن په آخرت سره کوونه**

**په تور لحد کې به ناري کړم**

**زه له دنیا نه ارماني راغلی یمه**

په دې دواړو، یوه له بله لیري پرتو، کلتوري حوزو کې د دې لنډیو په تقریباً عین شکل موجودیت، د دې لنډیو د لرغونتوب یو لوی دلیل دئ. البته موږ بیا هم یوازې د لنډیو د لرغونتوب حکم کولای سو او په دقیق صورت، حتی، دا هم نه سو ویلای چې دا دوې او هغه مخکې یادي سوي دوې لنډۍ به لرغوني وي او که به د طالب جان نکل. او که به نکل او لنډۍ دواړه په یوه وخت کې منځته راغلي او د نکلچیانو خولو ته ورغلي وي.

موږ، له دغو دوو فوکلوري نکلونو څخه پرته، په نورو نکلونو کې د نارو پر وزم. چندانې د لنډیو مثالونه نه لرو. خو په دونه زړو نکلونو کې د لنډیو پر وزم د نکلونو د نارو وجود، او له یوه بل څخه د لیري پرتو ښارونو ترمنځ د سفر کولو په ترڅ کې د شکل ساتل، پخپله د دې خبرې ثبوت دئ چې لنډیو به د پښتنو په حجرو او ټولنه کې ډېر زیات وخت تېر کړی وي. چې وروسته ئې فوکلوري نکلونو ته لاره کړې ده.

د طالب جان په نکل کې د اټک د رود یادونه

سوې ده. پخپله د اټک د قلا د جوړېدلو څخه څه باندې څلور نیمې پېړۍ تېرې سوې دي. دا چې په وروسته کې ټول اباسیند د اټک د قلا په نوم یاد سوی او هغه سیند ته اټک ویل سوي دي او دا نوم دونه مشهور سوی دئ چې د پښتنو لنډیو او نکلونو ته ئې لاره پیدا کړې ده نو دا نکل به تر درې سوه کلونو زیات عمر نه لري. خو د دې خبرې احتمال ډېر زیات دئ چې دا نکل به ډېر پخوا جوړ سوی او خوله پر خوله سوی وي او وروسته به د اټک رود ورباندې زیات سوی وي. موږ په هرصورت ویلای سو چې دا نکلونه او ورسره ملګري لنډۍ که د ډېر وخت نه وي نو لږ تر لږه پنځه شپږ پېړۍ عمر خو لري.

د پښتني فوکلور ځیني خواخوږي او منقدین د نویو لنډیو د جوړېدلو سره سخت مخالفت کوي او د ګناه کبیره په سترګه ورته ګوري. دوی فکر کوي چې د نویو لنډیو په جوړېدلو سره اصلي لنډیو ته تاوان رسېږي او یو وخت به ئې له خلکو څخه حساب ورک وي چې کومو لنډیو ته اصلي او کومو ته نقلي ووایي. خو زه په دې عقیده یم چې لنډۍ د اولس مال دئ، او اولس ایجاد کړي او غوره کړي دي. اولس نن هم ژوندی دئ، او سبا به هم ژوندی وي. که ئې پرون په لنډیو کي د خپلو زلمیو د مړاني ستاینه کوله. که یې د خپلو ښایستو پېغلوټو ښکلا او پېزوانونه ستایل، او که ئې پرون پر ګودرونو باندې د ښکلیو نجونو سره د خیالي میني اظهار په لنډیو کي کاوه، نن هم هغه مېړونه دي، هغه ښکلي او ساده پېغلي دي او لا اوس هم ګودرونه پاته دي او لا سبا ښايي د ګودرونو ځای د پوهنتونونو انګړونه ونیسي؛ او زلمي په پوهنتونونو او کالیجونو کي د لوڅ مخو، فیشني او تعلیم یافته نجونو د ښکلا ستاینه وکړي؛ او ګودر خپل مفهوم له لاسه ورکړي. پښتنو ښايي په دې څو پېړیو کي په سل هاوو زره لنډۍ ویلي وي خو د هغو لنډیو شمېر چې په رښتیا هم د لنډیو خوند کوي او د لنډیو سوز او ښایست پکښې پروت دئ ښايي تر دوه درې سوه وانه وړي. په داسي حال کي چې یوازي سلما شاهین د روهي سندرو په دوه ټوکه کتاب کي د زیات و کم اته لس زره پنځه سوه لنډیو په شاوخوا کي راغونډي کړي دي. زه یقین لرم چې د دې لنډیو څخه به څه باندې اته لس زره په کتابونو کي قید پاته وي او یوازي درې څلور سوه به ئې فوکلوري ارزښت ولري او اولس به ئې خپل مال وګڼي. او که ټولي هغه لنډۍ چې نورو فوکلوریسټانو به راټولي کړي وي وشمېرو خبره ښايي سلو زرو ته ورسېږي، خو ډېري لږي به ئې د اولس انتخاب وي او ډېري لږي به ئې د فوکلوري ارزښت د پیدا کولو او تر ډېره وخته د ژوندي پاته کېدلو وړتیا ولري.

زما په فکر له دې ناحیې څخه هیڅ اندېښنه په کار نه ده. پرېږده چې نوي زلمي او زاړه شاعران او شاعراني (چې پخوا مو یا نه درلودلې او یا د ګوتو په شمیر وې) د لنډیو د جوړلو او لیکلو په برخه کي خپله طبع و آزمیې. پرېږدئ چې وروستیو غمیزو او پېښو ته په لنډیو کي انعکاس ورکړي او سبا نویو نسلونو ته ئې د تاریخي میراث په توګه ورسوي. هغه پېښې چې په نویو لنډیو کي به راځي او یا به ئې یادونه سوې وي، په پخوا زمانو کي ئې چا تصور نه سو کولای. موږ نه د فوکلور د ځای پر ځای درولو د قوماندې ورکولو صلاحیت او نه ئې توان لرو. دا کار په هیڅ کلتوري حوزه کي سابقه نه لري او په پښتني ټولنه کي هم نه عملي او نه علمي دئ. په نویو لنډیو کي به ټانک او راکټ راسي، کابل به سوځي، د خلقیانو او پرچمیانو پلچرخي او پولي ګون به راسي، د مجاهدینو ناتار او تېری به وژاړو، خانمرګي به حملې کوي، زموږ سرتوري به په بېګانه کمپونو کي کړېږي. دا هغه پېښې دي چې څلوېښت کاله مخکي ئې چا تصور قدر نه سو کولای. که په دې اړه لنډۍ نه لیکلي سي نو موږ به د لنډیو په دې ښایسته فوکلوري قالب کي خپلو راتلونکو نسلونو ته څه پرېږدو. په دې

اړه به په زرهاوو لنډۍ لیکلې سوي وي او نوري به هم ولیکل سي خو بیا هم ښايي یوازي څو سوه لنډۍ اولسي او فوکلوري ارزښت پیدا کړي او له خلکو سره پاته سي. باقي پاته پخپله په ارشیفونو او کتابونو کي ځای نیسي.

## ناري یا غاړي:

ناري، چي کاکړۍ غاړي هم ورته ویل کېږي، د پښتني فوکلوري نظمونو یو بل صنف دئ، چي زیاتره د پاکستان د کاکړستان له سیمي څخه نیولې د افغانستان تر جنوب لوېدیځو سیمو پوري رواج لري. مضمون ئې د لنډیو په څېر غني دئ او هر څه ته ځای پکښې ورکول سوی دئ. ناري زیاتره له شپاړسو سېلابونو څخه جوړي سوي او اکثري محلي پېښې پکښې خوندي سوي وي. د برټانوي هند څخه د پښتنو سیمي ته د اورګاډي له راتګ سره پښتنو، د کاروبار او خوارۍ غریبۍ له پاره، د هند او پنجاب نسبتاً لیري سیمو ته سفرونه پیل کړل. پښتنو مېرمنو، چي تر دغه وخته ئې د خپلو مېړونو او د کورنۍ د نورو نارینه وو اوږدې مسافرۍ نه وې لیدلې، د اورګاډي په مقابل کي عکس العمل وښود، او په سل ګونو نارو کي ئې د اورګاډي او پردېسۍ یادونه کړې ده، چي خاص زماني شرایط پکښې خوندي سوي دي. دکوټې د زلزلې په باره کي، په چمن کي د انګریزي پوځ د یوه پښتانه سپاهي، شېرجان، د یاغي کېدلو په باب، د هزاره ګانو سره د لنډو او مولاداد د جنګونو په باره کي او نورو محلي پېښو په باب په زړه پوري عکس العملونه او احساسات پکښې خوندي سوي دي.

ناري هم د جوړښت له مخي تر لنډیو اسانه او هم د ښایست له مخي لنډیو ته نه سي رسېدلای. کله کله داسي ښکاري لکه د لنډیو په جوړولو کي چي لوستو او نالوستو شاعرانو برخه اخیستې وي، او ناري زیاتره نالوستو نارینه وو او ښځو سمدستي جوړي کړي وي. دغه علت دئ چي کله کله ئې قافیې ته چنداني توجه نه وي سوې، خو څرنګه چي اورېدونکي او تکراروونکي ئې هم د کلیو ساده نارینه او ښځینه وي نو د قافیې دغه راز نیمګړتیاوو ته ئې څوک چنداني متوجه سوي نه وي:

**چي سایکل وهې په دوره**
**مور دي نه سي پر تا بوره**
**د ګاډۍ پیچونه لوړ دي**
**ګله مړه دي زورور دي**
**یوه سره ده یوه بوره**
**پر کاذب راځي اوبو له**
**د خاصې پر توګ در ټول که**
**ستا په غېږ کي ځای را جوړ که**
**ډیره وخورې دا ببره**
**بوره تا وبیروله**

دوره د بوره په مقابل کي، لوړ دي د زورور دي په مقابل کي، بوره د اوبو له په مقابل کي ټول که د جوړ که په مقابل کي، ببره د وبیروله په مقابل کي راغلي دي. خو څرنګه چي د ساده زلمیانو په مجلسونو کي د نارو په شرنګ کي چنداني بیخوندي نه راځي نو څوک ئې د قافیې نقص ته متوجه سوي هم نه دي. له بلي خوا، د زرهاوو او ښايي لس هاوو زرو نارو په منځ کي د هغو نارو شمېر تر لس هاوو وانه وړي چي دغه راز نواقص ولري نو ځکه د تحقیق په وخت کي چنداني په توجه نه ارزي.

ناري هم له شپاړسو سیلابونو څخه جوړي سوي، یعني دوارو خواوو ته اته اته سېلابه لري او هم له پنځه لسو سېلابونو څخه جوړي دي چي یوې خوا ته ئې اووه او بلي خوا ته ئې اته سېلابونه وي.

**ګاډۍ مه لره چیغکی (۷ سېلابه)**
**تر تا پردېس دی زما لالی (۸ سېلابه)**
**سترګي مه راته وهه (۷ سېلابه)**
**مور مي ښکاره ولاړه ده (۸ سېلابه)**

د بوټو تنې تړې (۷ سپلابه)
ګله پر کمه راځه ځې (۸ سپلابه)
د بوټو تنې تړم (۷ سپلابه)
د شالمار میلې ته ځم (۸ سپلابه)
شل ئې مړه کړه شل ټپیان (۷ سپلابه)
جاغور لا ډک راوی شېرجان (۸ سپلابه)
و پانسی تې خېژاوی (۷ سپلابه)
شېرجان سګریټ ولګاوی (۸ سپلابه)
میمه ګوري تر کړکۍ (۷ سپلابه)
شېرجان تېرې ولي ګولۍ (۸ سپلابه)
سپینه خوله لکه د ورۍ (۷ سپلابه)
تر پلو ګوري شین خالی (۸ سپلابه)
کوټې خود به نړېدې (۷ سپلابه)
په تا کي څه نخرې کېدې (۸ سپلابه)
ګله مه کوه دیغت (۷ سپلابه)
پر مړو تل ورځي زحمت (۸ سپلابه)
د ګاډی پر اربو (۷ سپلابه)
کالي دي باد وهي ژړو (۸ سپلابه)

البته دا هغه نارې دي چي زه ئې له خپلې حافظې څخه لیکم. زما سره د نارو په اړه کتاب او مواد نسته. کنه نو ښایي د هغو نارو شمېر هم سل ګونو ته ورسېږي چي له اوو او اتو سیلابونو څخه جوړې سوي وي. داسې ښکاري چي د هغو نارو شمېر به زیات وي چي دواړه خواوو ته اته سپلابونه لري. کنه دواړه ډولونه پر غوږونو باندي یو شان لګېږي او که څوک ئې سیلابونه و نه شمېري نو فکر نه کوي چي په اندول کي به ئې توپیر موجود وي. د لاندنیو نارو، چي دواړو خواوو ته اته اته سپلابه راغلي دي، په لوستلو کي، د پورتنیو نارو په څېر،څوک نه ټکنی کېږي، او په رواني کي ئې، له پورتنیو نارو څخه، هیڅ ډول توپیر نهویني:

سپینه خوله دي غونډه منډه (۸ سپلابه)
بوري رب دي که را کونډه (۸ سپلابه)
سترګي توري کې نو راسې
موږ خواران له کارو باسې
سترګي توري که دا غتې
نن دي یار راځي له کوټې
یوه سره ده یوه بله
زړونه کاږي له کوګله
ډیره وخورې دا بیره
بوره تا وبېروله
د ګیزو په تورو غرو کي
لنډو ناست دئ په خزو کي
د ګیزو ناوه اوږده ده
لنډو مه بیایه غرمه ده
د محبس سپیني هینداري
لنډو ماتي کړې پر لاري
د محبس په دروازو کي
لنډو ناست بېړی په پښو کي
د ګیزو علاقه داره
لنډو پرېږده زما دپاره
د موټر په سر کي سپور دئ
خط وهي هغه زما ورور دئ
د ګاډی پیچونه تا دي
ګله مړه دي بې وفا دي

اسمعیل یون د پښتو شعر هندسي جوړښت په کتاب کي، د سپلابونو د شمېر او توپیر له مخي، څلور ډوله نارې معرفي کوي. دوه ډولونه ئې موږ مخکي معرفي کړل خو دی وایي چي یو ډول نارې اته او بله نهه سپلابه لري. دی یو مثال ورکوي چي ښایي دغه یکي یو مثال به ئې تر غوږ سوی او یا به ئې سم اوریدلی نه وي:

شین خالی نجوني لا ښې دي
په لاره ځي له خندا شنې دي

که د دې نارې سپلابونه وشمېرل سي نو رشتیا چي هم اته او نهه سپلابه جوړوي. خو لومړی د کاکړستان او د افغانستان د جنوب لوېدیځ خلک هیڅ وخت په لاره ځي نه وایي بلکي پر لارځي وایي او بل که چیري په لوی لاس د لار څخه وروسته د ها توری

ورزيات کړو نو په ناره کې په لوی لاس سکته ګي راولو او ناره له کاره غورځوو. اصلي شکل ئې داسې دئ:

**شين خالې نجوني لا ښې دي**
**پر لار ځي له خندا شنې دي**

زه ګومان کوم چې ښاغلي اسماعيل يون به په خپل ټول عمر کې دغه يوه، د ده په اند، نهه سېلابي ناره اوريدلې وي او که ئې بله ناره اورېدلې او مثال ئې ورکړي نو هغه به هم د همدې نارې په څېر غلط او د تامل وړ وي.

اسماعيل يون وايي داسې نارې هم سته چې دواړو خواوو ته ئې اووه اووه سيلابه راغلي وي:

**د بوټو تنی تړم**
**د شاکار مېلې ته ځم**

که ناره لکه څرنګه چې ده هغسې ولولو نو په رشتيا چې دواړو خواوو ته اووه اووه سېلابه راغلي دي. خو که په همدغه شکل ولوستل سي په ناره کې سکته ګي راځي. په داسې حال کې چې ما د سيمې د يوه اوسېدونکي او د نارو اورېدونکي په حيث هيڅ وخت په نارو کې استثنايي سکته ګي نه ده تر غوږ سوې. د بلې خوا په هغه سيمه کې چې دا ناره جوړه سوې يا ويل سوې ده هلته د شاکار په نوم مېله د سره نسته. بلکې هغه د ارغنداو په تاريخي سيمه کې د شالمار په نوم ډېري پخوانۍ پسرلنۍ مېلې دي، چې د ډېرو ليري ليري ځايونو څخه به نارينه ورته ورتلل او کله کله به ئې پوره څلويښت شپې او ورځې د ارغنداو په باغونو او د ارغنداو د سيند په شاوخوا کې تېرولې، او ناره داسې ده:

**د بوټو تنی تړې**
**ګله پر کمه راځه ځې**
**د بوټو تنی تړم**
**د شالمار مېلې ته ځم**

په دې توګه موږ ګورو چې د نارې يوه خوا اووه سېلابه او بله ئې اته سېلابه کيږي. او په نارو کې، د سېلابونو د شمېر له مخې، يوازې دغه دوه ډوله موجودې دي. که موږ چيري غواړو دا خبره ثابته کړو چې په نارو کې اووه اووه سېلابه يا اته او نهه سيلابه نارې هم سته نو د خپلې ادعا د ثبوت له پاره بايد د يوه مثال په راوړلو بسيا نه سو، او لږ تر لږه شپږ اووه مثالونه ورکړو، تر څو لوستونکو ته يو څه وښيو او په نوي تصنيف ئې قانع کړو.

ښاغلی اسماعيل يون په خپل کتاب کې د کاکړي نارو يا غاړو په باب ليکي چې په نارو کې د دواړو برخو وروستي توري سره يو شان وي. موږ پورته پنځه مثالونه ياد کړل چې په هغو کې د دواړو خواوو توري يو شان نه وه بلکې يوازې د آهنګ او آواز له مخې سره مشابه وه. په غاړو کې د داسې قافيوي توپيرونو مثالونه سل هاوو ته رسېږي. داسې ښکاري چې ښاغلي يون زياتو کاکړي غاړو ته پوره دقت نه دئ کړی کنه نو دغه راز توپيرونه به ئې ډېر زيات په ستر ګه سوي وای.

په هرصورت، نارې يا غاړې د پښتني فوکلور ډېر سپېځلی شکل دئ، چې هم د نظم له مخې ډېر اسانه او هم د ښکلا له مخې دونه ساده دي چې جوړول ئې د ډيرو نالوستو نارينه وو او حتی په کورونو کې اوسېدونکو نالوستو ښځو په وس پوره دي. څرنګه چې له يوې خوا ئې نظم ډېر ساده دئ او له بلې خوا ئې تاريخي او محلي پېښې، د ساده او سپېځلي ميني اظهار او له ټولني سره تړلي ښې او بدې په ډيره ساده ژبه بيان کړې دي نو حافظې ته سپارل ئې هم اسانه دي. ما په لومړۍ ځواني کې خپل داسې همزولي پېژندل چې په سل ګونو نارې به ئې په ياد وې؛ او د بوري، شين خالې، لنډو او مولاداد، شېرجان، اورګاډي او شالمار د ميلو په اړه ويل سويو نارو کې به ئې مسابقې کولې.

پای



ليکوال: ډاکټر نثار احمد صمد/کاناډا

# د سومنات فتح

(لومړۍ برخه)

بسم الله الرحمن الرحيم – د سومنات او سلطان محمود غزنوي نومونه داسې اوبدلي، جاروتلي او تړلي دي لکه د پاني پت سره د احمد شاه بابا نوم، يا د ميوند سره د ايوب خان نوم. نو ښه به دا وي چې دغه مبحث لږ مشرح وڅېړو. لومړۍ به د سومنات مندِر او د سومنات بت وپېژنو، بيا به سلطان محمود، د هغه ديانت او طريقت او د ده په هکله د يار او اغيار قضاوت وشنو.

**د سومنات معبد:**

سومنات مندِر د هندوستان د ګجرات ايالت په لوېديځ ساحل کې پروت دئ. سلطان محمود غزنوي پر هندوستان خپله اووه لسمه او وروستۍ حمله پر همدې سومنات باندي وکړه او دا سوبه ئې د تاريخ يوه تلپاته برخه وګرځوله.

دا چي خبره د سومنات د مندر ده، نو طبعاً بايد مجسمه يا بت هلته موجود وي. دا کوم بت وو، منشأ او مبدأ ئې څه ول، طريقه او طبقه ئې څه ول او بالاخره معنی او مفهوم ئې څه ول؟! نو ښه به دا وي چي يو څه شا ته ولاړ سو او رېښه او سلسله ئې مختصراً وڅېړو.

د هندوستان آريايانو هم د نورو مشرکانو غوندې پر خدای عقيده لرله او هغه ئې

(برهما) باله یعنی قایم بالذات، ازلی او ابدي هستي چي د هر شي جوړوونکی دئ. خو خدای ته ئې شریک (یا شریکان) نیول چي هغه بتان او نور شیان ول. دا سلسله ئې تر ننه هم همداسي روانه ده. مهمه دا ده چي هغوی په پیل کي بت او بت خانه (معبد یا مندر) نه لرل او خپل عبادي مراسم ئې په آزاده فضا کي تر سره کول. هغوی پر نرینه او مذکر خدایانو عقیده لرل چی معمولاً به د آسماني اجرامو تمثالونه ول.

خو ډېر وروسته ئې بې شمېره مجسمې او ډول ډول بتخانې جوړي کړې. بیائې پر دغو مجسمو ځیني اوځار بتان وراضافه کړل لکه د مور رب النوع، د مځکي رب النوع ، کبرا مار او ډېر نور.

د زمانې په تېرېدو سره هندوانو درې ډوله غټ او عمده خدایان لرلي دي چي هغه دا دي:

لومړی: برهما، یعني ایجادوونکی او جوړوونکی خدای (چي مخکي ذکر سو).

دوهم: شیوا، یعني فاني کوونکی خدای (چي مجسمه ئې څلور لاسونه لري، د نڅا په حال کي وي، او په دې ډول ګواکي د ایجاد او تباهی رول لوبوي).

دریم: ویشنو، یعني ساتونکی خدای (چي عمدتاً لس ډوله څېرې لری، لکه: ماهي، کِشپ، ګُرز، نیم انسان او نیم زمری، ګردی نوزاد، تبر په لاس راما، رام، کرشنا، بودااو کالکي).

باید وویل سي چی د شیوا او وشنو پله ور (پیروان) خورا ډېر دي. شیوا پرستان د شیوا تناسلي آله (عورت) هم نمانځي چي هغه لینګا (لنګ) بولي. د لینګا مجسمې او معبدونه هم زښت ډېر دي. د ۱۲ هغو خورا مشهورو او مهمو بتخانو څخه چي د لینګا په ویاړ او د هغه د عبادت له پاره جوړي سوي دي، یو هم (سومنات) دئ چي د اوسني هند د ګجرات په کاتهیا واړ کي واقع دئ.

په لغوي توګه (سوم) په سنسکریت ژبه کي (سپوږمۍ) ته ویل کېږي او (نات) رب او بادار ته ویل کېږي. د سوم او نات څخه (سومنات) جوړېږي چي معنی ئې د سپوږمۍ بادار یا سپوږمیز خدای دئ.

د هندوانو د روایت له مخي د سپوږمۍ رب النوع یو جرم کړی وو (یعنی ۲۷ خویندي ئې واده کړي وې خو صرف د یوې سره ئې مینه کوله چي روهیني نومېده او نوري ئې هیڅ په باک نه راوړې. نو ځکه د خپل خسر، دکشه پره جیتي د غضب وړ وګرځېد چي له امله ئې سپوږمۍ خپل نور بایلود). هغه د همدې جرم په کِفاره کی مجبور سو چي د مهادیو د عورت (لینګا) همدا مجسمه جوړه کړي. داسي هم ویل کېږي چي دغه بت د مهادیو (مهادیوا) تمثال وو چي هغه پخپله دغه بت جوړ کړی وو.

په هر حال، څنګه چي د سومنات دغه بت د سمندر د ساحل تر څنګ پر یوه غونډۍ باندي نصب وو، نو هندوانو عقیده لرل چي د سپوږمۍ له امله په سمندر کي د اوبو څپې (مد او جذر) او هم د اوبو لږېدل او ډېرېدل ګواکي د سومنات کرامات دئ. لنډه دا چي هغوی ته د سومنات بت دومره ارزښت او تقدس درلود چي آن ویل ئې سمندر ئې هم عبادت کوي او د هغه څپې ګواکي د همدې عبادت نمونه ده.

همدا کلکه عقیده وه چي هندوانو خورا

ډېر سره زر او جواهرات د سومنات بت له پاره نذرانه کول، آن په زرګونو لوی کلي د همدې بت له پاره وقف ول. د سومنات مندر سوکه سوکه ډېر شهرت وموند او په ټوله سیمه کې د هندو مذهب د تبلیغاتو ستر مرکز وګرځېد چې له امله ئې سلطان محمود غزنوي (۱۵۰۰) کیلومتره لیری مقابلې او مقاتلې ته ولمساوه.

په هر صورت، که یو څه جزئیاتو ته ورکښته سو، نو وبه ګورو چې د سلطان محمود غزنوي د یرغل څخه لږ مخکې هره ورځ یو زر برهمنان د دې مندر د خدمت له پاره مصروف ول، درې سوه سلمانیان د زیارت کوونکو د سرونو او ږیرو په سمولو یا خره یلو بوخت ول، درې سوه پنځوس خورا ښایسته نڅاګرو به شپه او ورځ د سومنات بت مخې ته له جوشه ډک رقص کاوه.

د «آثار البلاد و اخبارالعباد» مؤلف زکریا بن محمود قزویني د سومنات مندر داسې راپېژني: «کله چې سپوږمۍ تندر ونیسی نو خورا زیات هندوان هلته د عبادت له پاره ورځي چې شمېر ئې آن تر سلو زرو هم اوړي. دوی په دې ګروهه دي چې کله یو انسان مړ سي، نو روح ئې همدلته راځي او خدایان دوی ته نوی وجود ورکوي. د سمندر څپې چې کله د دې تر دېوالونو راپورته سي، نو دا د سمندر له خوا دغه مندر ته د عقیدت نخښه وي.

خلک هر هغه شی چې ډېر قیمتي وي دغه معبد ته د نذر په توګه وړي. همدا اوس څه نا څه زر کیلو قیمتی مواد د دې معبد د ساتنی له پاره وقف دي.

د ګنګا سیند له دې ځایه ۲۰۰ فرسنګ لیري دئ [یعني ۸۰۰ میله، یا ۱۲۰۰ کیلو متره – ژباړن]. خو عبادت کوونکي هره ورځ د هغه سیند اوبه دلته راوړي او دا معبد په مینځي. دلته یو زر برهمنان د عبادت او عابدینو د خدمت له پاره بوخت وي او پنځه سوه پېغلي د مذهبی سندرو او نڅا له پاره ساتل سوي دي چې لګښت ئې له وقف څخه ورکول کېږي.

دا ودانۍ د لرګیو پر ۵۶ پایو باندي ولاړه ده. د لوی بت له پاسه ځراغونه ځوړند دي چې ګران بیه ډبري (کریمه احجار) پر لګېدلي دي. د دې تر څنګ د سروزرو یو ځنځیر دئ چې دوه سوه منه وزن لري. د دې ځنځیر سره زنګولې ځړېږي. کله چې شپه شومه دم سي نو دا ځنځیر وښورول سي چې په شرنګا سره ئې تازه دمه برهمنان راپاڅېږي او په مناجاتو او عبادت پیل کوي».

د ځینو تاریخی آثارو په حواله د سومنات اصلي مندر یوه دیارلس منزله مخروطي ودانۍ وه. د معبد په دننه کي د هندوستان د ټولو مهمو حکومتونو د راجاګانو او مها راجاګانو محلونه جوړ سوي ول چي هغوی به دلته د سفر او راتګ پر مهال پکښې اوسېدل. د دغو واکمنانو د محلونو تر څنګ د دې مندر د برهمن پنډتانو محلونه هم موجود ول چي د راجا ګانو تر محلونو کم نه ول. تر دغو وروسته د سومنات د اصلي او لوی بت ودانۍ وه چي تر ټولو ښه او خورا مجلل ځای وو. دغه لوی بت اووه لاسونه لرل چي دوه ئې دننه په مځکه کي او پنځه نور ئې دباندي راوتلي ول. د مندر دېوالونه او پردې په الماسو، ملغرو او ډول

ډول جواهراتو ښکلي سوي ول. پخپله بت په خورا قیمتی الماسو او جواهراتو سره مرصع وو. دغه بت او نور کوچني بتان او ټوله معبد هره ورځ په رنګارنګ معطرو، ښایسته او تازه ګلانو سره لونل کېدل چې د زرګونو کیلومتره لیري کشمیر څخه ورته راوړل کېدل.

ویل کېږي چې د دغه مندر مصارف پر ټول هندوستان باندي یو دروند پېټی وو. د عوامو څخه نیولې تر هر راجا پوري فرد فرد باید دغه مندر ته لږ یا ډېره ونډه ورکړې وای. دا مالیه به د سیمه ییزو مندرونو له لاري تادیه کېدله. که به چا سرغړونه کوله نو د نږدې او محلي مندرونو له خوا به جریمه او ملزم کېدی.

خو د ځینو روایتونو له مخي د سومنات مندر مصارف د هندوستان د لسو زرو کلیو او ښارګوټو څخه او هم د هندي مها راجاګانو د تحفو او هدیو څخه پوره کېدل. د سومنات بت درې متره او د ځینو منابعو له مخي پنځه متره اوږد وو.

خو یوې مهمي باریکۍ ته باید ځیر اوسو: هغه دا چې د سومنات بت د انسان څېره نه لرل او نه ئې هم د انساني بدن غوندي جوړښت درلود. په بل عبارت. د سومنات مجسمه یو انسان وزمه بت نه وو. بلکي هغه یوه لویه ناتراشلې ډبره وه چې پر مځکه درېدای سوه. ځنګه چې دا د سپوږمۍ رب النوع یا الهه وه نو ځکه ئې ظاهري بڼه سپوږمۍ ته ورته وه. د ځینو روایتونو له مخي دا بت پنځه ګزه اوږدوالی درلود چې دوه ګزه تر مځکي لاندي او درې ګزه د مځکی له پاسه وو. هندوانو سومنات یو تلپاته معبد باله او تر ننه په دې عقیده دي چې سوم راج یعني د سپوږمۍ پادار هغه د سرو زرو څخه جوړ کړی وو. بیا راوڼ د سپینو زرو څخه، ورپسې کرشنا د صندل د لرګي څخه جوړ کړی وو. په لسمه میلادي پېړۍ کي واکمن (بهیم دیو سولنکي) هغه د ډبري څخه جوړ کړ څو چي د محمود غزنوي د ګرز ښکار سو.

**د سلطان محمود غزنوي حمله:**

تر کومه ځایه چې معلومه او ثابته ده، سلطان محمود یو کلک سُني مذهبه مسلمان وو. هغه د بدعتي او منحرفو ډلو (لکه اسماعلیانو، قرمطیانو، معتزلیانو) سخت مخالف حتی دښمن وو، هغوی ئې مرتد بلل نو ځکه ئې ځپل او وژل. په عین حال کي د تصوف هم پلوی او لاروی وو. ویل کېږي چي دی د مشهور صوفی (شیخ ابوالحسن خرقانی) مرید وو. د هغه ډېر عزت ئې کاوه او هر جنګ ته تر تګ مخکي ئې د هغه چټۍ اخیستله. ده غوښته چي افغاني او هندي کفار مسلمانان کړي او دا کار ئې خپل ایماني مسئولیت باله.

تاریخي آثار لیکي چي سلطان محمود غزنوي نه غوښته چي یو نیم زر کیلومتره لیري پر سومنات یرغل وکړي، خپل ځان او پوځیان د لوی خطر سره مخامخ کړي. خو پنځه عمده لاملونه ول چي سلطان ئې د سومنات پر مندر او بت باندي حملې ته مجبور کړ.

لومړی: کله چي د غزني سلطان د هندوستان نور مندرونه او بتخانې فتح کولې، نو هندي برهمنانو به ویل چي د سومنات بتان د هند د نورو معبدونو پر بتانو په قهر دي، نو ځکه هغوی د سلطان محمود له خوا

محکوم او معدوم کېږي او په دې عقیده ول چې محمود او د هغه زړه ور پوځیان هیڅکله نه سي کولای چې سومنات فتح کړي. هغوی به ویل چې د سپوږمۍ رب پخپله دومره قوي او پیاوړی دئ چې دغه بت د هر ډول یلغار څخه ساتي، نو محمود به څه وکړای سی؟!

سلطان محمود چې کله د هندي برهمنانو دغه چلنجونه او خارونه اورېدل نو سخت وخښمېد او نیت ئې وکړ چې په هره توګه وي سومنات به هم د نورو معبدونو غوندي دړي وړي کوي.

دوهم: ځیني آثار لیکي چې هندوستان شتمن او سمسور هیواد وو. په سلګونو زره مندرونه او معبدونه ئې لرل. دغه معابد همېشه د سرو زرو او جواهراتو څخه ډک ول چې هندوانو خپلو خدایانو ته د هدیې او نذرانې په ډول راوړل. نو ځکه سلطان محمود غزنوي غوښته چې د کفارو دغه ثروت غصب کړي.

دریم: هندوستان یو کافر هیواد وو. د محمود غزنوي حملې د اسلام د خپرولو او پراخولو له پاره وې او دا مسأله د هماغه عصر یوه مسلطه پدیده وه. په تېره بیا عباسي خلافت په ټینګه دغسي کار غوښت او سپارښتنه ئې کوله.

څلورم: دغو حملو غزنوي لوی پوځ بوخت ساتلی وو، که دا پوځیان بېکاره سوي وای نو د غزنوي حکومت له پاره به ئې مشکلات او تصادمات ایجاد کړي وای. د پخوانیو زمانو لوی پوځونه هیڅکله بېکاره نه کښېناستل بلکي پر له پسې سوقیات به ئې کول.

پنځم: نورو ځواکونو او ګاونډیو ته د قوت نمایش وو تر څو هغوی د غزنوي سلطنت سره د ډغرو وهلو، یا مقاومت او پاڅون جرئت بایللی وای (لکه نږدې صفاریان او لیري عباسیان).

په هر صورت، کله چې سلطان محمود ولیده چې سومنات د هندو مذهب د تبلیغ لوی مرکز ګرځېدلی دئ او برهمنانو ئې مسلسل ویل چې سلطان قطعاً سومنات نه سي نیولای، نو سلطان نور هم وخښمېد او ولمسېد. هغه وو چې د ۱۰۲۴ میلادي کال د اکتوبر پر اووه لسمه د سومنات د نیولو په غرض له غزني څخه روان سو. مخکي له دې خوځښته ئې د غزني په «عروس الفلک» مسجد کي لمونځ وکړ او د الله تعالی څخه ئې وغوښته چې په دې اوږده سفر او سخته مبارزه کي سوبه ورعطا کړي. د الله اکبر نارو ټول غزني پر سر اخیستی وو.

د محمود دېرش زره کسیز لوی او زړه ور پوځ د ملتان او سوځوونکو صحراوو، بېدیاوو او دښتونو څخه د اجمیر لاره ونیوله. په دې خورا ستونزمن یون کي هر عسکر د ځان سره د دېرو ورځو له پاره واښه، خواړه او اوبه اخیستي ول. څه نا څه دېرش زره شاهي اوښان داوبو په ژیانو (مشکونو) بار ول.

د (اتهر) غوندي سوځوونکو ډاګونو څخه تېرېدل څه آسانه کار نه وو، لکه فرخي چې ویل په دې دښت کي حتی دېبان هم ورک کېږي. په دغو بېدیاوو کي داسي ژوري کندي، خطرناک اغزي، وحشي حیوانات او له ببري ډک ځنډونه موجود ول چې انسانان ئې پخپله محوه کول. خو محمود او لښکر ئې په یو اوسپنیز هوډ سره ځني تېر بدل.

سومنات ته پر لاري تولي مستحکمي پوځي کلاوي (لکه انال واړا، کتی واړ، او نوري) فتح سوې. سومنات ته په رسېدو سره د دښمن پوځیانو پر افغاني پوځیانو باندې خندل او ملنډې ئې په وهلې. هغوی د سومنات دېوالونه ښه مستحکم کړي ول.

سلطان او پوځیان ئې په پنجشنبه د ۴۱۶ هجری قمری کال د ذیعقده پر څلرمه سومنات ته ورسېدل. افغاني پوځیان د هغو جګو او کلکو دېوالونو پر شاوخوا راوګرځېدل چي له یوې خوا د سمندر سترو څپو پر ښولل. جنګ د همدې پنجشنبې څخه تر شنبې پوري جاري وو. خو د جمعې په شپه د سومنات مدافعینو ته زیات اکمالات او وسله وال جنګیالي راورسېدل. هغوی افغاني پوځیانو ته ډېر تلفات واړول، آن پخپله سلطان محمود هم څو ځایه ټپي سو.

شیخ فریدالدین عطار لیکي چي سلطان محمود غزنوي د ځان سره د شیخ ابوالحسن خرقانی (رح) یو کمیس یا خرقه لرله. کله چي د سومنات په دې جنګ کي مسلمانان د تلفاتو سره مخامخ سول او نږدې وو چي مات سی، نو سلطان محمود غزنوي نابېره د خپل آس څخه راکښته سو او یوې ګوښې ته ولاړی. هلته ئې دا خرقه په لاس کي ونیوله، پر سجده سو او داسي دعا ئې وکړه: «یا الله ! د دې خرقې د څښتن له رویه (په برکت) موږ ته پر دغو کافرانو فتح او نصرت عطا کړه او څومره مال چي د غنیمت په ډول لاس ته راځي هغه به ټوله مسکینانو ته صدقه کړم».

بس یو دم او نابېره د دښمن د لیکو څخه غالمغال او ناري راپورته سوې او فضا تیاره سوه. په دې سره کفارو خپل تر منځ یو پر بل ګوزارونه کول او پر بېلابېلو خواوو وویشل سول. سخت جنګ و نښت. په زرګونو هندوان ووژل سول، په سوونو نور په کښتیو کي سپاره سول او غوښتل ئې چي د نږدې سراندیپ ټاپو ته وتښتي. خو د محمود د عسکرو په غشو او یا د عجولانه لامبو او وارخطایی له امله په اوبو کي ډوب سول. په دې اړودوړ کي د اسلامي لښکرو پر ېکنده فتح په نصیب سوه.

په هماغه شپه محمود غزنوي په خوب کي حضرت ابوالحسن خرقاني ولیدی چي داسي ئې ورته وویل: «اې محموده! تا په الهي دربار کي زما د خرقې قدر و نه کړ. که تا هماغه شېبه د الله سبحانه و تعالی څخه د ټولو کافرانو له پاره د اسلام قبولیت غوښتی وای، نو ټولو به اسلام قبول کړی وای». په هر صورت، کله چي سلطان بریمن سو، او د سومنات مندر ته ورننووت وئې لیدل چي د هغه په ۵۶ ستونونو کي خورا قیمتي څراغونه ځړېدل چي شاوخوا ئې ډېره روښانه کړې وه. محمود برابر لوی بت ته ورغی چي درې متره جګ وو. خپل ګرز (ګورز) ئې راواخیست او هغه ئې په وواهه او مات ئې کړ. سلطان محمود په دې سخت ګوزار سره هغه لاسي خدای مات او چپه کړ چي څو نسله هندوانو سجدې ورته کولې.

مخکي له دې چي سلطان دغه لوی بت مات کړي هندي برهمنانو د ستر مبلغ او خورا زیات ثروت د ورکولو وړاندیز ورته وکړ تر څو دا بت مات نه کړي. خو محمود غوښته چي په تاریخ کي ئې نوم د «بت پلورونکي» په حیث نه

بلکي د «بت شکن» په توګه یاد سي. نو ځکه ئې داوړاندیز رد کړ او بت ئې ټوټه ټوټه کړ.

کله چي سلطان محمود دغه بت مات کړ نو له دننه ئې دومره ډېر جواهرات پر مځکه توی سول چي د هغه قیمت څخه سل چنده زیات ول چي برهمنانو ورته پېشنهاد کړی وو.

ځیني آثار (مثلاً تاریخ فرشته او نور) لیکي چي سلطان محمود وروسته د دې بت ټوټې له ځان سره غزني ته یوووړې چي څو ټوټې ئې د «عروس الفلک» مسجد په طاقونو او منارو کي تعبیه او ځای پر ځای کړې او دوې ټوټې ئې په جامع مسجد او شاهي مانۍ کي هم نصب کړې. که دا رښتیا وي نو ښایي یوه ورځ کشف سي. په هر صورت، سلطان تر دې ستري فتحي وروسته چي ټولي اسلامي نړۍ هغه تمجید او تکریم کړه، په ۱۰۲۶ کي بیرته غزني ته راورسېد. د بغداد عباسي خلیفه (القادر بالله) سلطان او زامنو ته زیاتي تحفې او هدیې راولېږلې او محمود ئې رسماً د خراسان – هندوستان – سیستان – خوارزم سلطان اعلان کړ.

ځنګه چي د سومنات فتح د سلطان یمین الدوله (محمود غزنوي) د ټولو سوبو شهکار ګڼل کېږي، نو د غزنوي دربار نومورو شاعرانو (لکه فرخي، عسجدي او نورو) په دې ویاړ عالمانه او دقیقانه قصیدې ولیکلې. د بېلګي په توګه به د عسجدي یوه عیني او عالي قصیده رانقل کړم:

**تا شاه خسرو آن سفر سومنات کرد**
**کردار خویش را علم معجزات کرد**
**آثار روشن ملکان گذشته را**
**نزدیک به خردان همه چون مشکلات کرد**
**بزدود نام کفر جهان را ز لوح دی**
**شکر و دعای خویشتن از واجبات کرد**
**شطرنج ملک باخت ملک ملک با هزار شاه**
**هر شاه را به لعب دگر شاه مات کرد**
**محمود شهریار ملک آنکه ملک را**
**بنیاد بر محامد و بر مکرمات کرد**
**شاها تو از سکندر بیشی بدان جهت**
**گوهر سفر که کرد به دیگر جهات کرد**
**عین رضای ایزد جویی تو در سفر**
**لیک او سفر بجستن آب حیات کرد**
**تو کارها به نیزه و تیر و کمان کنی**
**او کارها به حیله و کلک و دوات کرد**
**بردادن صلات کتابی بگرد شاه**
**چو نانکه بوحنیفه کتاب صلوة کرد**

ځینو اسلامي مؤلفینو او مؤرخینو د دې بت په باره کي لیکلي دي چي محمود غزنوي د دې بت څو ټوټې مکې مکرمې او مدینې منورې ته هم ولېږلې او متباقي ئې غزني ته ورسره یووړې. خو دا تر اوسه معلومه او ثابته سوې نه ده. هغوی داسي ادعا هم کوي چي د سومنات بت د کعبې شریفي د درو غټو بتانو څخه وو (یعني لات، منات او سومنات)، چي رسول الله صلی الله علیه وسلم د مکې تر فتحي وروسته دوه ئې مات کړل او دغه دریم ګواکي مشرکینو د سمندر له لاري د هند ګجرات ته راوړ تر څو بچ سي، ځکه چي د سرو زرو او جواهراتو څخه ډک وو. خو دا انګېرنه ځکه مؤثقه او صحیح نه ده چي عربي مشرکینو چي د کومو بتانو عبادت کاوه، هغه ټوله انسان وزمه ول یعني انساني شکلونه ئې لرل. خو د

سومنات مجسمه د سپوږمۍ رب النوع وه، نو ځکه د سپوږمۍ غونډي ډبره او د شیوا لینګا وه (یعني د شیوا عورت وو، نه کومه انساني څېره).

**د سومنات لاس پر لاس کېدل:**

ویل کېږي چې لومړی ځل د ګجرات مترکه راجاګانو په ۶۴۹ میلادي کې د سومنات مندر جوړ کړی وو چې بیا د اسلام تر خپرېدو او دلته رارسېدو وروسته د سند عرب والي (جنید) په ۷۲۵ کې هغه وران کړ. بیا په ۸۱۵ کې هندو راجا (نګهاپت) هغه له سره ودان کړ څو چې په ۱۰۲۴ کې سلطان محمود غزنوي وران کړ (چې پورته وڅېړل سو). بیا د ۱۰۲۶ او ۱۰۴۲ تر منځ موده کې د انهیل واړ راجا (بهیما) او د ملوا راجا (بهوج) هغه له سره ودان کړ. هغوی دا مندر او بت د لرګیو پر ځای د ډبرو څخه جوړ کړ.

بیا په ۱۲۹۷ کي د ډیلي د سلطان علا الدین خلجي پوځیانو د ګجرات تر نیولو وروسته هغه لوټي لوټي کړ. وروسته هندي راجاګانو هغه په ۱۳۰۸ کي بیا جوړ کړ او یو ځل بیا ئې د مهادیو لنګ نصب کړ. بیا په ۱۳۷۵ کي د ګجرات مسلمان واکمن مظفر شاه د سومنات دا مندر وران کړ. خو وروسته هندوانو بیا له سره ودان کړ. په ۱۴۵۱ کي اسلامي پوځونو هغه بیا ونړاوه. خو وروسته څو څو واره ودان او وران سو، څو چې په ۱۷۰۶ کي مغول واکمن اورنګزیب هغه بالکل هوار کړ او پر ځای ئې مسجد جوړ کی.

په ۱۷۸۳ کي چې د انګریزانو واک وو، د ناګپور راجا (بهوسلی)، د کولهاپور راجا، د اندور راني (هولکر)، او د ګوالیار راجا دغه مندر بیا ودان کړ. تر دې وروسته د هند او پاکستان تر ویشلو پوری کومه مهمه پېښه (یا لاس پر لاس کېدنه) رامنځته نه سوه.

د هندوستان تر خپلواکۍ وروسته په ۱۹۵۰ کی د هند د صدراعظم مرستیال او داخله وزیر «والا بهایي پټېل» د ګجرات د جوناګړ څخه د کتني پر مهال د سومنات مندر د بیا جوړولو هدایت ورکړ څو چې په عصري او پاخه ډول جوړ سو چې نن ئې سیلانیان لیدو ته ورځي. د اورنګزیب مسجد ونړول سو او څو کیلومتره لیری جوړ سو، خو د سومنات مندر هم د هغه اصلی مندر څخه لیری جوړ سوی دئ چي سلطان محمود غزنوي نړولی وو. همدا علت دئ چی دغه نوی مندر دومره نوم او شهرت نه لري بلکي په بې وسۍ او نهیلۍ سره خپل پخوانی شهرت لټوی.

**اړونده مأخذونه:**


١. د هند تاریخ؛ مونستیوراټ الفنستن، لندن، ۱۹۰۵.
٢. د تبرک شرعی حیثیت؛ ډاکټر محمد طاهر القادري، لاهور، ۲۰۰۶.
٣. تذکرة الاولیاء؛ شیخ فریدالدین عطار (اردو ترجمه)، لاهور، ۱۹۹۷.
۴. د پاکستان او هند تاریخ؛ پروفیسور عبدالله ملک، اووم چاپ، لاهور، ۱۹۷۸.
٥. افتخاراتِ افغان؛ دکتور عبدالحکیم طبیبی، کابل، ۱۳۵۲ شمسي.
٦. غزنه در دو قرن اخیر؛ عزیزالدین وکیلي، کابل، ۱۳۵۶ ش.
٧. سلطنت غزنویان؛ خلیل الله خلیلي، کابل، ۱۳۳۳ ش.


نور بیا ...



ليکوال : څېړندوی رفيع الله نيازی/کابل

# د روشن لال ملهوتره ژوند او آثار



روشن لال ملهوتره د رامداس ملهوتره زوی او د داتارام لمسی دئ. هندو ټولنه له لرغونو زمانو راهيسي پر څلورو طبقو وېشل شوې، برهمن، چي دوی به پاچاهانو ته د حکومتوالۍ په چارو کي سلامشورې ورکولې، کشتري يا کښتر په هندوانو کي جنګيالۍ طبقه وه دوی به اکثر په حکومتونو کي د پوځ سرلښکري يا پاچاهان ول، ويشيه د هندوانو سوداګره طبقه وه او د شودر په نامه يوه بله طبقه هم لري، چي د ټولني خدمتګاري به ئې کوله. ملهوتره قبيله له کشتري طبقې سره اړه لري او د دې

قبيلې ډېرې وګړي اوس هم په پښتونخوا، پنجاب او راجستهان کي اباد دي. نو ښاغلی روشن لال ملهوتره په هندي قبيلو کي له کشتري قبيلې سره تعلق لري او پلرنی ټاټوبی ئې د پښتونخوا په سوات کي کابل ګرام سيمه ده. د ۱۹۲۵ او دېرشو ميلادي کلونو په شاوخوا کي ئې کورنۍ د سوات د چملۍ سيمې شلبانډي کلي او بيا له دغه ځايه د همدغې سيمې جنګۍ کلي ته راغله او استوګنه ئې پکښې غوره کړه. د ښاغلي ملهوتره د وينا پر بنسټ چي دی په همدغه سيمه يعني جنګۍ کلي کي زېږېدلی دئ. د پيدايښت دقيقه نېټه ورته نه ده څرګنده چي په کوم کال زېږېدلی، خو دی وايي مور ئې ورته ويلي، چي د زيارت يعني پنجشنبې ورځ وه او په دغه ورځ واوره هم اورېده چي ته پيدا شوې.

ملهوتره صاحب د امرداس نومي سړي له خولې، چي د دوی خپل دئ او هغه هم د سوات سيمي له جنګۍ کلي نه په ۱۹۵۲ ز کال ممبيي (Mumbai) ته راغلی وايي، چي: "د هغه د وينا پر بنسټ زه په ۱۹۵۲ز کال زېږېدلی يم، خو زما د سرټيفيکېټ يعني اسنادو له مخي زما د پيدايښت نېټه د ۱۹۵۰ز کال د جنورۍ لومړۍ نېټه ده. د يوه کال يا شپږو مياشتو به وو، چي کورنۍ ئې له جنګۍ څخه مينګوري او بيا بريکوټ ته کډه شوه، چي خپلي لومړنۍ زده کړي ئې هم په همدغه بريکوټ کي پيل کړي دي. د هند د نيمي وچي له وېش نه وروسته د ۱۹۵۸ او شپېټمو ميلادي کلونو په شاوخوا کې د کورنۍ اقتصادي وضعه ښه نه وه، د ژوند ګذران د ښه کېدا او د روزۍ او نفقې پيداکولو په موخه ئې کورنۍ د ۱۹۶۲ ز کال د اپرېل پر شلمه نېټه د سوات له بريکوټ سيمي نه راساً د هندوستان ډيلي ته ولاړه. هغه مهال د دوی د کورنۍ غړي د ده پلار، مور او درې خويندې وې، چي يوه خور ئې بيا وروسته د هند د اتر پردېش ايالت په پالياکالان کي هم پيدا شوه. ډيلي ته په ورتګ ئې کورنۍ له ډېرو ستونزو سره مخامخ شوه، دوی پښتانه ول. په سوات کي ئې په پښتو ژبه خبري کولې، خو په ډيلي کي د هغې سيمي د خلکو په خبرو نه پوهېدل او خلک د دوی په پښتو نه پوهېدل. په ژبه د نه پوهېدو له امله ئې کاروبار ډېر خراب شو، هېڅ کار او خواري ئې و نه موندله، کورنۍ ئې اړه شوه ډيلی ئې پرېښود او د هندوستان يوه بل ولايت اتر پردېش ته کډه شول. اتر پردېش ته په ورتګ ئې د يوه خپل په مرسته د کرکيلې له پاره ځمکه او يو دوکان واخيست، خو په اتر پردېش کي هم د ډيلي په څېر په ژبه نه پوهېدل، د هغې سيمي د خلکو له دود دستور او کولتور سره اشنا نه ول، د همدغو ستونزو له امله ئې کورنۍ د ۱۹۶۳ ز کال په جنورۍ کي له اترپردېش نه بېرته ډيلي ته راستنه شوه، خو روشن لال ملهوتره د ښوونځي د کلنيو ازموينو تر پايه پوري له خپلو خپلوانو سره په اتر پردېش کي پاته شو. په ډيلي کي د دوی ژوند بيا له ستونزو سره مل پيل شو، خو د څه مهال له تېرېدو سره ئې د ژبې د زده کړي مسئله حل شوه او تر ننه پوري په ډيلي کي ژوند کوي، د ملهوتره صاحب پلار ښاغلی رامداس ملهوتره اوس هم ژوندی دئ، څه کم سل کال عمر لري، خو مور ئې چې رام چمېلي ملهوتره نومېده د ۴۷ کالو په عمر پر ۱۹۸۳ ز کال په ډيلي کي وفات شوه او مېرمنه يې پونم ملهوتره چي يوه هندوستانۍ پنجابۍ ده او په هندي ادب کي ئې د ليسانس تر کچې پوري زده کړي کړي، په پښتو ژبه پوهېږي، خو خبري پرې ډېري ښې نه شي کولی، د هما نشو په نوم يو زوی او د سلکي په نامه يوه لور

لري ، چي دواړو خپلي زده کړي بشپړي کړي دي. هما نشو د سمندري سوداګريزو بېړيو (Merchant Navy) په مخصوصي ځانګي کي زده کړې او سلکي په معلوماتي ټېکنالوجۍ (Information Technology) کي، دواړو ودونه کړي او په دندو بوخت دي. اوسمهال روشن لال ملهوتره د ډيلي په شاليمار باغ سيمه کي په خپل کور کي د کورنۍ له نورو غړو سره يو ځای ژوند کوي.

ښاغلی ملهوتره د څلورو څلورنيم کالو په عمر د سوات د بريکوټ په مډل سکول (ښوونځي) کي شامل شو او دغلته ئې تر پنځم ټولګي پورې زده کړه وکړه. په ۱۹۶۲ز کال ئې چي کورنۍ له پښتونخوا ډيلي ته ولاړه او بيا يو کال وروسته له هغه ځايه د اتر پردېش Palia Kalan ته کډه شول، نو دغلته په يوه ښوونځي کي په شپږم ټولګي کي په دې شرط شامل شو، چي په يوه کال کي به هندي ژبه زده کوي او که زده ئې نه کړه نو له ښوونځي به ايستل کېږي.

د همدغه مجبوريت له امله ئې ډېره خواري وکړه، استاذ به چي ورته په ښوونځي کي درس ورکاوه هغه به ئې په پښتو رسم الخط يعني په پښتو ژبه ليکه او زده کوه به ئې، چي بيا ئې ورو ورو هندي ژبه هم زده کړه، په دغه کال ئې د ډېري خوارۍ او زحمت په پايله کي له دې سره سره چي هندي ژبه ئې سمه نه وه زده په ټول ښوونځي کي دويم مقام تر لاسه کړ.

د ښوونځي مسئولينو ورته له دې امله چي هندي ژبه ئې هم سمه نه وه زده د دغه مقام په تر لاسه کولو له ټولو نه لوړه جايزه ورکړه. بيا ئې کورنۍ د ۱۹۶۳ز کال په جنورۍ کي بېرته ډيلي ته راغله او د همدغه کال د مې – جون په مياشت کي د ډيلي په بهارت نګر سيمه کي د بهارت نګر د مډل سکول په اووم ټولګي کي شامل شو. تر اتم ټولګي پوري ئې په دغه ښوونځي کي زده کړي وکړې او بيا د ډيلي د شکتي نګر په "ګورنمنټ هاير سېکنډري سکول" کي شامل شو. ده غوښتل چي اينجينر شي، په همدغه وجه ئې ساينسي مضامين، لکه: فزيک، کيميا او رياضي واخيستل. دا نو داسي مهال وو چي د هندي ژبې د زده کړې، خبرو کولو او ليکلو په برخه کي ئې ستونزي نه درلودې، دغلته ئې درې کاله زده کړه وکړه او په وروستيو ازموينو کي ئې د ۵۹ نومرو په اخيستو دويم مقام تر لاسه کړ. هغه مهال دا ښې نومرې وې، ځکه چي ډېري ښې نومرې هم له شپېتو او اوياوو څخه لوړې نه وې، ده غوښتل د ډيلي په يوه ستر کالج "هندو کالج" کي شامل شي او نورې زده کړي دغلته پر مخ بوځي، خو د فاينل ازموينې په لومړيو دوو لستونو کي د ملهوتره صاحب نوم نه وو او "کروړي مېل کالج" ته د برياليو شوو زده کوونکو په دويم لست کي ئې نوم راغی. ملهوتره صاحب وايي دغه کالج ئې نه خوښېده او نور پر کور کښېناست.

په دغو شپو ورځو کي له دې امله چي پلار ئې يوازي وو او د کورنۍ خرڅ ئې هم په ډېره خوارۍ نه شوای پوره کولای، نو زده کړي ئې پرېښودې او د دندې پيداکولو په لټه کي شو.

په همدغه جريان کي ئې يوه ورځ د مور د ترور يعني خاله دوې لوڼې راغلې او له ملهوتره صاحب نه ئې د خواشينۍ لامل وپوښت. هغه ورته ټوله کيسه وکړه، د ترور لوڼو ئې ورته وويل، چي د دوی يو ماما د آل انډيا راډيو په پښتو څانګه کي کار کوي تا به له هغه سره مخامخ کړو ګوندي هلته درته نوکري پيدا شي ځکه چي ته خو په پښتو ژبه پوهېږې. دا شپې ورځي په اقتصادي لحاظ هم د روشن لال

ملهوتره له پاره ډېرې سختې وې، پلار ئې بې روزګاره وو، د کورنۍ لګښت ئې ډېر وو، نو هماغه وو، چې يوه ورځ ئې له خپلې مور سره لومړی د ترور کور ته ولاړ او له هغه ځايه ورسره دواړي د ترور لوڼې د هغوی د ماما کورته چې د ډيلي په راجندر نګر کې وو ولاړلې.

دغه سړی کشوري لال تلواړ نومېده او له هغه سره ئې ليده کاته وشول. کشوري لال تلواړ چې وپوهېد ملهوتره په پښتو ژبه ښه پوهېږي يعنې ليکل لوستل پرې کولای شي، نو دی ئې ډېر وهڅاوه، تر شپږو مياشتو پورې به په اوونۍ کې لږ تر لږه درې ځلور ځله د هغه کور ته ورته او هغه به ورته په راډيو کې د کار کولو، ژباړې او نورې لارې چارې ورښودې. کشوري لال تلواړ د پښتونخوا پېښور ته نژدې د رشکۍ سيمې چې د رېل ګاډي سټېشن تر څنګ پرته ده د غله ډېر کلي اصلي اوسېدونکی دی او د هند د وېش پر مهال ئې کورنۍ هند ته تللې وه. دی د يوې انقلابي کورنۍ غړی وو، چې کورنۍ ئې د هند په ازادۍ کې ډېر زحمتونه ګاللي دي.

دوې درې مياشتې وروسته کشوري لال تلواړ ښاغلی ملهوتره په هغو شپو ورځو کې د ال انډيا راډيو د پښتو څانګې له مشر ښاغلي منوهر سنګهه بتره سره معرفي کړ. منوهر سنګهه بتره ورنه څو پوښتنې وکړې او ملهوتره صاحب ورته د کوزې پښتونخوا د يوسفزيو په لهجه چې د ده مورنۍ او پلرنۍ لهجه وه د هغه د پوښتنو ځوابونه ورکړل، خو منوهر سنګهه بترا ورته وويل. چې د افغانستان لهجه به کاروې. نږدې اووه مياشتې وروسته ملهوتره پر دې بريالی شو، چې د افغانستان لهجه زده کړي او د ۱۹۶۹ ز کال د می پر ۲۲ نېټه ئې د لومړي ځل له پاره د يوه انانوسمېنټ په لوستلو د ال انډيا راډيو له څپو څخه غږ خپور شو.

هغه مهال په پښتو څانګه کې پر منوهرسنګهه بتره سربېره کشوري لال تلواړ، ولي محمد بابر، غلام غوث خيبری، هربګوان ملهوتره، تري بيني لال کپور، چکرورتي کپور او رګوناتهه پوري کار کاوه، خو روشن لال ملهوتره تر دوی ټولو په عمر کشر وو. په رسمي ډول ښاغلي روشن لال ملهوتره د ال انډيا راډيو په پښتو څانګه کې د پښتو شعبې د مرستيال په توګه د ۱۹۷۱ز کال په فبرورۍ کې کار پيل کړ.

د ۱۹۷۲ز کال د دسمبر له لومړۍ نېټې څخه ئې د دايمي ژباړونکي او وياند په توګه کار پيل کړ. په ۱۹۸۰ز کال چې کله د پښتو څانګې د هغه مهال مشر پرمانند تقاعد شو، نو د يوې ازمويني په پايله کې ښاغلی ملهوتره د ۱۹۸۲ز کال د اګست مياشتې پر ۲۰ نېټه د پښتو څانګې سوپر وايزر يعنې د ټولې پښتو څانګې مشر وټاکل شو او د ۲۰۰۹ز کال د دسمبر تر ۳۱ نېټې پورې ئې دغه دنده تر سره او له يادې نېټې وروسته تقاعد شوی دئ. د آل انډيا راډيو په پښتو څانګه کې د دندې تر څنګ ئې خپلو لوړو زده کړو ته هم ملا وتړله او په ۱۹۷۲ز کال ئې له ډيلي پوهنتون څخه په Science, English, Hindi, Political) History) کې د B.A سند تر لاسه کړ او بيا وروسته ئې له ميرټ پوهنتون څخه په ۱۹۷۵ز کال په انګليسي ادب کې د ماسترۍ سند هم واخيست. اوس د ډيلي په شاليمار باغ کې اوسېږي او خپل شخصي کاروبار کوي. په ال انډيا راډيو کې د څلوېښت کلن ژورناليستي ژوند په بهير کې د پښتو او پښتنو په اړه مطالعې، له پښتو او پښتنو مشرانو او اديبانو سره د مرکو، ناستې پاستې، د هغوی پر

سیاسي او ادبي ژوند، لیکنو او راډیوي پروګرامونو جوړولو له ښاغلي روښن لال ملهوتره نه د یوه حساس ژورنالیست تر څنګ یو هڅاند ادیب هم جوړ کړ، په پښتو ژبه ئې ادبي ، سیاسي، ټولنیزي، اقتصادي او فرهنګي لیکني وکړې، قلم ئې تاند شو او ورو ورو ئې هنري لیکنې هم پیل کړې. د هنري ادبیاتو په بېلابېلو څانګو کي ئې د فکر نیلي وځغلول، اثار ئې تخلیق کړل، ژباړي ئې وکړې او اوس هم لګیا دئ د ژوند یوه برخه ئې د پښتو ژبې خدمت ته وقف کړې ده، چي همدغو کارونو ښاغلی روښن لال ملهوتره د پښتنو ادیبانو په کتار کي راووست او نوم به ئې د تل له پاره د پښتو ادب په تاریخ کي ژوندی وي. "په هند کې د پښتو ژبې او ادبیاتو د ایجاد او ودې پراوونه" اثر کي د ښاغلي ملهوتره په اړه راغلي چي: "د ال انډیا راډیو ډهلي د پښتو څانګي اوسنی مشر د پښتو ژبې ځوان لیکوال او مترجم روښن لال ملهوتره هغه ځوک دئ، چي په هندوستان کي ئې پښتو ژبي او ادب ته ډېر د درناوي وړ کارونه کړي دي. پښتانه که احساس ولري او خپله ژبه او ادب پر ګران وي، نو به د ملهوتره کارونه ستایي"[1].

په همدغه اثر کي بل ځای راغلي چي: "د روښن لال ملهوتره کارونه د هند د مرکزي راډیو په پښتو څانګه کي محسوس دي، دا په دې معنی چي تر ډېرو د ده کارونه ډېر خوندور او با ارزښته دي مګر په وروستیو کلونو کي د ده په فرهنګي فعالیتونو کي څه لږوالی لیدل کېږي، موږ له دغه فعال او با انرژي لیکوال څخه هیله لرو، چي پښتو او پښتانه هېر نه کړي، یو وخت به ئې د کارونو قدر او درناوی وشي"[2].

د محترم استاد هېوادمل صاحب دا وړاندوینه دا دئ ان شاء الله تر یوه بریده پوره شوه، د روښن لال ملهوتره پر ژوند او پښتو ژبي ته ئې د خدمتونو په پار یو پښتون د ماسټري تیزس ولیکه او که خدای کول دا اثر چاپ شي ، نو به ډېر پښتانه د پښتو ژبې دغه د قدر وړ لیکوال او خدمتګار وپېژني او د تل له پاره به ئې پښتانه په درناوي یادوي.

په خپله دنده کي د ډېري بوختیا او قسمت له امله روښن لال ملهوتره ډېرو بهرنیو هېوادونو ته سفرونه نه دي کړي، یوازي د ۱۹۸۹ز کال په جون کي د یوه ځل له پاره د پښتونخوا سوات، یعني خپلي پلرنۍ او مورنۍ سیمي ته له خپلي کورنۍ سره تللی او تر دې دمه یو ځل په ۲۰۰۷ز کال په کابل کي د رحمان بابا په یاد جوړ شوي سیمینار ته راغلی، چي په دغه سیمینار کې ئې "عبدالرحمن (رحمان بابا) یو صوفي بزرګ" تر سرلیک لاندې یوه مقاله هم لوستې وه. د یادونې وړه ده، چي په ۲۰۰۸ز کال هم یوه سیمینار ته افغانستان ته د راتګ بلنه ورته ورکړل شوې وه او په ۲۰۱۱ز کال د افغانستان د سیمه ییزو مطالعاتو مرکز د خان عبدالصمد خان اڅکزي د څلوېښتم تلین په مناسبت جوړېدونکي سیمنار ته رابللی وو، خو د ځینو کورنیو ستونزو له امله ئې په دغو سیمنارونو کي ګډون و نه کړای شو[3].

د ښاغلي ملهوتره ځیني آثار چاپ شوي او ځیني ئې ناچاپ دي، ناچاپ آثار ئې هم ځیني بشپړ دي د چاپ لار څاري او ځیني نور ئې تر دې دمه نیمګړي دي، له موضوع سره په اړیکه کي به ئې لومړی چاپ او بیا ناچاپ اثار له پوره جزئیاتو سره معرفي کړو:

**۱- بدلون:**

بدلون له هندي ادب څخه د پنځلسو ژباړل شوو کیسو هغه ټولګه وه، چې د ۱۳۷۰هـ ل کال په جریان کې په کابل کې چاپ شوه او له چاپ سره سم چې په کابل کې کورنۍ جګړې پیل شوې نو دغه مجموعه په چاپخونه کې د چاپخونې له سوځېدو سره وسوځېده. له بده مرغه د بدلون ټولګې د ژباړل شوو کیسو له ډلې اوس ان یوه کیسه ئې پخپله له ملهوتره صاحب سره هم نشته. د همدغې ټولګې په اړه ښاغلی استاد هېوادمل په خپل اثر "په هند کې د پښتو ژبې د ودې او ایجاد پړاوونه" کې داسې وایي: "د خپلو ځینو نورو لنډو کیسو ترجمې یې د یوې مجموعې په بڼه د افغانستان د لیکوالو انجمن ته استولې دي او دوی د (بدلون) نوم پر ایښی دی او د چاپ له پاره مطبعې ته تللې دي، دا مجموعه په مطبعه کې چاپ شوه، خو د مطبعې له سوځېدو سره سمه وسوځېده"[۴].

**۲- د آمر مېلمستیا:**

دا د ښاغلي روشن لال ملهوتره هغه اثر دی، چې په ۱۳۹۰هـ ل – ۲۰۱۱م کال په زرو ټوکو کې په ۱۳۲ مخونو کې د افغانستان ټایمز د مطبعې له لوري په کابل کې د Indian Afghan Foundation – په مالي لګښت او سرپرستۍ چاپ شوی دئ. په دې ټولګه کې ټول ټال ۱۳ لنډې کیسې دي، چې د هندي ادب د بېلابېلو لیکوالو او له بېلابېلو ژبو څخه ئې راژباړلي او په دې ډول دي: له لومړي نه تر لسم مخ پورې د (پرده) په نامه کیسه ده، چې یشپال لیکلې او د (پرده کهاني) کیسې ژباړه ده. له یوولسم نه تر نولسم مخ پورې د (مشره) په نامه کیسه ده، چې د (چهوټې اپا) په نامه کیسې ژباړه ده. له شلم نه تر دېرشم مخ پورې د (اواره ګرد) په نامه کیسه ده، چې د قرة العین حیدر د (روشني کي رفتار) نومې کتاب څخه د اواره ګرد کیسې ژباړه ده. له یو دېرشم نه تر څلوردېرشم مخ پورې د (ادې) په نامه کیسه ده، چې سیارام شرن ګپتا لیکلې ده. له پنځه دېرشم نه تر شپږ څلوېښتم مخ پورې د آمر مېلمستیا په نامه کیسه ده، چې دا اثر هم په همدغه نوم نومول شوی دئ، د دې کیسې لیکوال بهیشم ساهني دئ. له اووه څلوېښتم نه تر شپږ پنځوسم مخ پورې د (اصل) په نامه کیسه ده چې دا د هندوستان د مشهور کیسه لیکونکي رابندرناتهـ ټاګور کیسه ده. له اووه پنځوسم نه تر دوه شپېتم مخ پورې د (ټارچ پلوري) مشعل فروشان په نامه کیسه ده، چې لیکوال ئې هري شنکر پارسای دئ. له دروشپېتم نه تر یو اویایم مخ پورې (دجامن ونه ) په نامه کیسه ده، چې کرشن چندر ئې لیکوال دئ. له دوه اویایم نه تر دري اتیایم مخ د (انا ابې) په نامه کیسه ده، چې منشي پریم چند لیکلې ده. له څلور اتیا نه تر درو نوي یم مخ پورې (په ډیلي کې یو مرګی) په نامه یوه کیسه ده، چې لیکوال ئې کملېشور نومېږي. له څلور نوي نه تر یوسلو دویم مخ پورې د (بوی) په نامه کیسه ده، چې لیکوال ئې امریتاپرېتم نومېږي. له یوسلو درېیم نه تر یوسلواتلسم مخ پورې د (هغې ویلي وو) په نامه کیسه ده، چې لیکوال ئې چندر دهرشماګولیري دئ او د دې اثر وروستۍ کیسه (د کافرانو خدای) نومېږي، چې دا پخپله روشن لال ملهوتره لیکلې یعنې ژباړه نه ده ، دا اثر سریزه او نور څه نه لري[۵].

**۳- هندي - پښتو قاموس:**

"هندي –پښتو قاموس" په پښتو او هندي ژبه کې لومړنۍ لیکل شوې ډکشنري ده، چې دوولس نیم زره لغات لري. دا اثر په ۲۰۰۳ز کال

په ۴۲۱ مخونو کې د لیزر کمپیوټر سرویس له لوري په ډیلي کې چاپ شوی دئ. د اثر په پیل کې په نهو مخونو کې یوه سریزه لیکل شوې، چې د نثر لیکنې له مخې د ادبي نثرونو په کتار کې شمېر ل کېږي. دا ډکشنري په اصل کې هندي ژبو ته د پښتو ژبې د زده کړې د یوه لارښود کار ورکوي، چې تر ډېره پورې د ورځنیو خو لومړنیو خبرو اترو د زده کړې یو قاموس دئ. د یادونې وړ ده، چې تر دې دمه روښن لال ملهوتره لومړنی لیکوال دئ، چې د هندي – پښتو ژبې ډیکشنري ئې لیکلې ده[۶].

## ۴ - **خر ماغزه نه لري**:

دا اثر شاوخوا په پنځوسو مخونو کې په ۱۳۹۱ هـ ل کال په زورو ټوکو کې د افغانستان د قلم ټولنې له لوري میوند خپرندویې ټولنې چاپ کړی دئ. ښاغلي روښن لال ملهوتره په ال انډیا راډیو کې د کار کولو پر مهال د سباوون غوټۍ خپرونې له لارې د نوور معلوماتو او تفریحي موادو تر څنګ پښتنو ماشومانو ته روزنیزې کیسې هم لیکلې او خپرې کړې ئې دي. په دې اثر کې د هماغو کیسو له ډلې ماشومانو ته ۲۲ روزنیزې کیسې چاپ شوي، چې د ماشوم د ادبیاتو په برخه کې په هندوستان کې د شوي کار لومړنۍ د ستایلو وړ هڅه ده. په دې ټولګه کې د رحیم سخاوت، سپېره سړی، بغض، دوه پیشوګان، زمری او سویان، خر ماغزه نه لري، دوه سری مارغه، خړ پړانګ، فیل او مېږی، ښامار او مېږی، شوم ګیدړ، ښکاري او چنچنه، کارغه، تنکی نولی، اړی مار خر، احمق دوست، هوښیار توب، ډینګ، لېوه د ګیدړ په جامه کې، د سرو زرو هګۍ او مېږی او کوتره کیسې شاملې دي[۷].

او ناچاپ اثار ئې په لاندې ډول دي:

## ۱ - **ګودان (د غوا خیرات)**:

"دا د منشي پرېم چند د مشهور ناول (ګودان) پښتو ترجمه ده، چې روښن لال ملهوتره له هندي ژبې نه پښتو ته را اړولې دي. دغه ترجمه مترجم په دوو برخو کې بشپړه کړې ده، چې اوله برخه ئې ما ولیدله او بشپړه پاکنویس شوې وه، دوهمه برخه ئې ما و نه لیدله "[۸].

د ګودان د دویمې برخې ژباړه هم اوس بشپړه شوې او له ښکه مرغه ډیلي ته زما د سفر پر مهال ښاغلي روښن لال ملهوتره د ګودان د ټولې بشپړې شوې ژباړې یوه کاپي ما ته راکړه او له ځان سره مې راوړه، چې ټول ټال په ۱۸۹ مخونو کې په لاس لیکل شوی دئ.

## ۲ - **د لنډو کیسو ټولګه**:

دا هم د روښن لال ملهوتره د تخلیقي ناچاپو کیسو ټولګه ده، چې د فحاشه، د کافرانو خدای، پرتوګاښ، خدایي خدمتګار، غټې غټې سترګې، بوډا، سوالګر، زمونږ پردې، مور او ذکات که سوغات په نومونو کیسې لري. د یادو کیسو له ډلې بوډا، پرتوګاښ او خدایي خدمتګار کیسې په افغانستان کې د کیسه ډایجست په نوم د لنډو کیسو په مجله کې خپرې شوي دي او د کافرانو خدای په نوم کیسه د روښن لال ملهوتره په یوه چاپ شوې د لنډو کیسو ټولګې "د آمر مېلمستیا" کې خپره شوې ده. ملهوتره صاحب اوس هم لګیا دئ، لنډې کیسې لیکي ښایي د دغې ټولګې د چاپ پر مهال ئې د کیسو شمېر له یادو کیسو ډېر شي.

## ۳ - **د هندي کیسو یوه ګلدسته**:

د هندي کیسو یوه ګلدسته د روښن لال ملهوتره هغه اثر دئ، چې پکښې د هند له

بېلابېلو ژبو څخه د وتلو کیسه لیکوالو کیسې پښتو ژبې ته راژباړل شوې دي. تر اوسه پورې په دې ټولګه کې د نااشنا وژنه، ورپسې، ازادي رد شوه، ایکي یو سګرت، منتر، کابلي والا او نجومي په نومونو کیسې ځای پر ځای شوې دي، د دې له پاره چې ملهوتره صاحب اوس هم لګیا دئ، د څو نورو هندي کیسو ژباړې ته ئې ملا تړلې ده، نو ښایي د دې ټولګې د چاپ پر مهال ئې د کیسو شمېر ډېر شي[۹].

## ۴ - انګلیسي - پښتو قاموس:

پر "انګلیسي – پښتو قاموس" باندې ښاغلي ملهوتره له ډېر پخوا راهیسې کار پیل کړی دئ، نږدې شل زره لغات ئې بشپړ کړي یعني د انګلیسي د A توري پای ته رسېدلی او پر څو نورو تورو ئې هم لړوډېر کار کړی، خو ملهوتره صاحب راته وویل، چې د انګلیسي پښتو ډکشنري د بشپړولو له پاره پر دوه دونیم لکه لغاتو باندې کار کول په کار دي، چې دا ډېر دروند کار دئ او له دې سره په څنګ کې ئې د چاپ له پاره هم اندېښنه درلوده، نو د دغې دکشنرۍ کار اوس په ټپه ولاړ دئ، که څه هم ما ترې د دغه اثر د بشپړولو غوښتنه وکړه، خو له دې امله چې لیکوال اوس د زړه له ناروغۍ، هم رنځېږي، ښایي سر ته و نه رسېږي.

## ۵ - انګلیسي - پښتو متلونه:

"په دې مجموعه کې روشن لال ملهوتره ۳۲۶ انګرېزي متلونه مردف راوړي دي (A-Z) او بیا ئې په څنګ کې ورسره د هر انګرېزي متل پښتو اندول پیدا کړی او ورسره ئې کښلی. د نسخې انګرېزي برخه ټایپ شوې او پښتو برخه ئې روشن لال ملهوتره په خپل خط لیکلې ده"[۱۰].

اروابښاد کاندید اکاډیمیسن محمدصدیق روهي هغه مهال چې د پښتو ټولنې رئیس وو په خپل یو لیک کې، ښاغلي ملهوتره ته د دغې ټولګې په اړه داسې ویلي دي: "ستاسې له خوا د انګلیسي – پښتو متلونو مجموعه له بیو ګرافۍ سره راورسېده، زه ستاسو د دې زیار او زحمت ډېره مننه کوم. د پښتو ټولنې له تعامل سره سم د متلونو مجموعه یوې کمېټې ته وسپارل شوه، چې د چاپولو په باره کې ئې نظریه ورکړي. زما شخصي نظر دا دی چې دا مجموعه د پښتو ژبې او افغاني کلتور له معرفي کولو سره پوره مرسته کوي او ګټور اثر دی. خدای دې تاسې ته توفیق درکړي چې په دې لاره کې نور کار هم وکړئ"[۱۱].

خو د ملهوتره صاحب دا اثر د پښتو ټولنې له لورې نه دئ چاپ شوی. د انګلیسي – پښتو متلونو دا ټولګه ټول ټال ۲۴ مخونه لري، متلونه پکښې د انګلیسي د A له توري پیل کېږي، ورپسې B او نور توري تر Z پورې راځي. په هر توري کې داسې متلونه راغونډ شوي، چې په عین معنا ئې په پښتو ژبه کې معادل متل وي. د متلونو په دې ټولګه کې ټول ۳۲۴ انګلیسي متلونه دي، چې په عین شمېر پښتو ملتونه ورسره راوړل شوي دي.

## ۶ - پنځوس میلیونه:

پنځوس میلیونه د ښاغلي عبدالوکیل سوله مل شینواري د لنډو کیسو ټولګه ده، چې په پښتو لیکل شوې، انګریزي ته هم ژباړل شوې او اوس ښاغلي ملهوتره په هندي ژبه، خو په دیوناګري رسم الخط ژباړلې ده، د یادې ټولګې ژباړه بشپړه شوې او د چاپ لار څاري.

## ۷ - د قبر جرګه:

د قبر جرګه د ښاغلي ملهوتره هغه ناچاپ اثر دئ، چي پکښې د پښتو ژبې د بېلابېلو لیکوالو یوه یوه لنډه کیسه په هندي ژبه په دیوناګري رسم الخط ژباړل شوي دي. دا ټولګه د ښاغلي احسان الله ارینزي د یوې لنډي کیسې (د قبر جرګه) په نوم نومول شوې ده. په دې اثر کي د نور محمد ترکي یوه کیسه، د زرین انځور یوه کیسه (ترورمی)، د عبدالوکیل شینواري یوه کیسه (زړه کلا)، له افغان جریدې نه یوه کیسه (وړوکی اختر) چي لیکوال ئې معلوم نه دئ، د احسان الله ارینزي یوه کیسه (د قبر جرګه)، د اکبر کرګر یوه کیسه، د کشوري لال تلواړ یوه کیسه، د بریالي باجوړي یوه کیسه (لمر پلو)، د عبدالخالق رشید یوه کیسه (د قبر چینجی)، د صفیه حلیم یوه کیسه (د آوازونو کلا)، د امین افغانپور یوه کیسه (د څپو په وزرو)، د بلقیس مکېز یوه کیسه (جال)، د علم ګل سحر یوه کیسه (غنیمت)، د غلام محمد کامه وال یوه کیسه (خانه کابل زما دئ)، د روشن لال ملهوتره یوه کیسه (د کافرانو خدای)، د اسدالله غضنفر یوه کیسه (ماته ونه) او د رفیع الله نیازي یوه کیسه (ولور) پکښې شاملي دي. دا اثر شاوخوا په A4 سایز کي یو سلو لس مخه لري، ژباړه، کمپوز او ډیزاین ئې بشپړ شوي او چاپ ته چمتو ده[۱۲].

## ۸ - د بوراګانو جرګه:

د بوراګانو جرګه د ارواښاد استاد خلیل الله خلیلي هغه اثر دئ، چې په دري ژبه لیکل شوی بیا انګلیسي ژبې ته ژباړل شوی او بیا ښاغلي ملهوتره صاحب پښتو ژبې ته راژباړلی دی . دا اثر نظم دئ او په نظمي ډول پښتو ژبې ته راژباړل شوی دئ. ژباړه ئې بشپړه ده، خو تر دې دمه نه دئ چاپ شوی.

## ۹ - بهګوت - ګیتا:

بهګوت - ګیتا د هندوانو یو دیني اثر دئ او نړدې د دنیا په ټولو ژبو کي ژباړل شوی. دا د رب النوع "شري کشن" د خولې ویل شوي بیانیې دي، چي تر دې دمه ئې نیمایي په پښتو ژبه ژباړل شوی او نور پاته دئ، ښاغلی ملهوتره وایي، چي په نژدې راتلونکي کي به ئې پاته برخه هم وژباړل شي.

## ۱۰ - پښتو - هندي قاموس:

تاسو د ښاغلي ملهوتره د چاپ آثارو په برخه کي ولوستل، چي "هندي - پښتو قاموس" ئې لیکلی او چاپ شوی هم دئ اوس ئې دې ته هم ملا تړلې چي "پښتو - هندي قاموس" ولیکي، په دې برخه کي ئې کار پیل کړی، نږدې درې زره لغات ئې راټول کړي او د بشپړولو هوډ ئې لري. د یادوني وړ ده چي دا قاموس هم د هندي - پښتو قاموس په څېر بڼه لري او په هماغه ډول ئې بشپړوي په دومره توپیر چي هندي - پښتو قاموس هندوانو ته د پښتو ژبې د زده کړي یو قاموس او پښتو - هندي قاموس پښتنو ته د هندي ژبې د زده کړي یو قاموس دئ. لغات پکښې داسي اوډل شوي چي یو هندي کلیمه هم د دیوناګري رسم الخط بڼه لري او د همدغه لغت تلفظي بڼه په عربي رسم الخط په پښتو کي هم لیکل شوې، همدا راز یوه پښتو کلمه په خپله بڼه کي لیکل شوې بیا د همدغي کلمې تلفظ په دیوناګري رسم الخط هم لیکل شوی دئ.

## ۱۱ - ثنا:

ثنا د سیکهانو د مذهب د سهارني عبادت د سترو دعاګانو یوه مجموعه ده، چي د "ګورو نانک" یا "ګورو بابا نانک" د اصل "جپ

جي" پښتو ژباړه ده، چې د A4 سایز په ۵۰ مخونو کې په پشپړه توګه ژباړل شوی او د چاپ لار څاري. د یادوني وړ ده چې دا اثر په اصل کې نظم دئ، خو پښتو ژبې ته په نثر کې راژباړل شوی دئ.

**۱۲- کشمیر:**

کشمیر، کشمیر ته د ښاغلي ملهوتره د سفر یونلیک (سفر نامه) ده. په دې یونلیک کې د کشمیر د بېلابېلو سیل ځایونو په اړه په زړه پوري معلومات شته.

**۱۳ - پښتنو ته د هندي د زده کړي لارښود:**

دا لارښود نږدې نوي سلنه بشپړ شوی، له الف – ب نه نیولې تر ګرامره پورې په ډېرو برخو کې جوړ شوی لارښود دئ او د پښتو او هندي دواړو ژبو په رسم الخط لیکل شوی دئ.

پر یادو آثارو سربېره روښن لال ملهوتره د خپل ژورنالیستي او ادبي ژوند په بهیر کې د آل انډیا راډیو په پښتو څانګه کې د خپل وظیفوي مسئولیت او ادبي ذوق له مخې لسګونه او سلګونه ادبي، سیاسي، ټولنیزي، فرهنګي او هنري لیکني کړې، چې د آل انډیا راډیو له څپو خپرې شوي او ځیني ئې د افغانستان په یو شمېر پښتو مجلو کې چاپ شوي هم دي، خو تر دې دمه ئې د بېلابېلو لیکنو کومه ټولګه نه ده چاپ شوې.

**اخځونه:**


۱. هېوادمل، زلمی: ۱۳۷۳هـ ل. په هند کې د پښتو ژبې او ادبیاتو د ایجاد او ودې پړاوونه. لاهور: شرکت پرنټنګ پرېس، ۶۰۸مخ.
۲. پورتنی اثر، ۶۰۸مخ.
۳. له روښن لال ملهوتره سره مرکه، نیو ډیلي، شالیمار باغ، د ملهوتره کور، د سهار له ۹ نه تر ۴ بجو پورې، د ۲۰۱۲ز کال د سپتمبر ۵ – ۱۰ نېټې.
۴. هېوادمل، زلمی: ۱۳۷۳هـ ل. په هند کې د پښتو ژبې او ادبیاتو د ایجاد او ودې پړاوونه. لاهور: شرکت پرنټنګ پرېس، ۶۰۹مخ.
۵. ملهوتره، روښن لال: ۱۳۹۰هـ ل. د امر مېلمستیا. کابل. افغان – هند فونډېشن: افغانستان ټایمز مطبعه، بېلابېل مخونه.
٦. ملهوتره، روښن لال: ۲۰۰۳ز. هندي – پښتو قاموس. ډیلی: لیزر کمپیوټر سرویس، بېلابېل مخونه.
۷. ملهوتره، روښن لال: ۱۳۹۱ هـ ل. خر ماغزه نه لري، د افغانستان قلم ټولنه، میوند خپرندویه ټولنه.
۸. هېوادمل، زلمی: ۱۳۶۳هـ ل. د هند د کتابخانو پښتو خطي نسخې. کابل. د افغانستان د علومو اکاډمی. د ژبو او ادبیاتو مرکز: د پوهني مطبعه، ۱۹۶–۱۹۷، مخونه.
۹. ملهوتره، روښن لال: د هندي کیسو یوه ګلدسته، ناچاپ اثر.
۱۰. هېوادمل، زلمی: ۱۳۶۳هـ ل. د هند د کتابخانو پښتو خطي نسخې. ۱۷۶–۱۷۷مخونه.
۱۱. روهي، محمد صدیق: ۱۳۵۵ هـ ل. ملهوتره ته لیک.
۱۲. ملهوتره، روښن لال: د قبر جرګه، ناچاپ اثر.


* * *

# هنر او ادب

چلوونکی: پردېس کندهاری

جرس فرهاد

## غزل

یاد مي سول چي څه مي یاد ته نه راځي
یاره ستا راتله مي یاد ته نه راځي

ستا د مخ لیده مي یاد ته نه راځي
شپه کي لمرخاته مي یاد ته نه راځي

وخت مي دومره ښکلي مخ ته تیري کړې
چا وړی دی زړه مي یاد ته نه راځي

ته مي نه یادېږې دا نو څوک مني
تږی یم اوبه مي یاد ته نه راځي؟!

خپل قتل په خپلو سترګو نه وینم
ستا خنجر بانه مي یاد ته نه راځي

چا ورته ویل چي **"جرس"** پېژني
ویل يې: نه هغه مي یاد ته نه راځي

احمد مفتون

## غزل

دا نجلۍ دا خپل اغزن کاله ته فکر وړې ده
درد، درد زنده ګۍ او ژوندانه ته فکر وړې ده
مه ورځئ د یار یادونو هسي نه ترې وسوزئ
هغه لېونۍ اوس تناره ته فکر وړې ده
اوښکي اوښکي ژوند به مي تر څو د غم په ټال زانګي
سوچ وهي خبري کړي بانه ته فکر وړې ده
ستن باندي ارمان پېيي خامک کوي پر زړه باندي
اوښکو ترې شمېر ورک کړ زنګانه ته فکر وړې ده
"اې مفتونه! دا څه شي او ها څه شي راوې ښيه"
ښار ته مي د زړه راغله هر څه ته فکر وړې ده

احمد فاني

## غزل

ډېره سخته ده بې یاره زنده ګي
ادم نه غوښته دا خواره زنده ګي
د جانان د مخ ولمر ته يې ایږده
څلوې که دي هینداره زنده ګي
ستا د میني په صحرا کي لکه پل
راځه پاته سوه پر لاره زنده ګي
د مظلوم د زړه جنت ته سه داخل
که ته غواړې دوامداره زنده ګي
چي خیرات غواړې **"احمد فاني"** هغه
چیري نه کوي بې ښاره زنده ګي

استاد م. معصوم هوتک / کاناډا

## د ارواښاد محمدصدیق پسرلي په ویر کي

د ادب گلبڼ ئې بیـانن نیمـه خـوا کـړ
چـي پسرلی مـو د وطـن خـزان تـالا کـړ

جنــازه د غــزل پورتــه ســوه اوړو تــه
حــسرتونو مــي قلـم بیــا پــه ژړا کــړ
زمانـه د مـرگ او ژونـد اوږده کیـسه ده
زموږ داستان ئې پر نیمگور راانتها کړ
چـي نـازلي کـړي پـرې تکـي لـه اسمانه
پښتون قام ئې بس همدې لـره پیـدا کـړ
خدای خبر چي په قرنو بـه ئـې بیـا وینـو
لـه مـداره چـې داسـتوری راخطـا کـړ
د رحلت تـاریخ مـې وپوښـتی لـه عقلـه
پـه الهـام ئـې راتـه دغـه فـرد عطـا کـړ

عـشرات ئـې د کـال مخ و شـا تـه یوسـه
د "**غزل سالار**" چـي پـور د ژونـد ادا کـړ

### حل:

"**غزل سالار**" تاریخي ماده ده چي ابجدي ارزښت ئې (۱۳۲۹) کیږي. د دغه عدد عشرات (۲۹) چي مخ و شا سي، (۹۲) څني جوړیږي او له تاریخي مادې څخه (۱۳۹۲) راوزي. دغه کال په لمریز حساب د ارواښاد محمدصدیق پسرلي د وفات کال دئ.

پیرمحمد کاروان / کابل

## پسرلی د کاروان میر

**(د ارواښاد استاد پسرلي په یاد)**

اخیر څه خوږه شرنگا
ګډوله یې اروا
په نازکو زمزمو
په پسته مسته موسکا
ماتوله یې چوپیا
وو لفظونه پایزېبونه
او مسرې یې تکې سرې
د خیالونو د کوترو
وې مهیني تنکۍ پښې
پوست غزل یې د ښکلا
دوې کوترې خوا په خوا
وې مشوکه په مشوکه
په غومبرا و په ګډا
یوې بلې ته یې ورکړه
د خوږې میني دانه
د پستې میني ښکالو
پسرلی وو د پښتو
د حیا د سر سالو
پسرلی وو یو ملنگ
وو د میني د ښکلا
د مینو شهنشاه
بس د ټولو وو اشنا
ور پسې مې رېږدي زړه
لکه لاس د وار خطا
پسرلی د کاروان میر
دا دئ اوس هم راسره
دی مې لپه کې دعا
په ګلونو دې مین
ربه ته یې کړې بلبل
د جنت د شني فضا
۲ دلو ۱۳۹۲

عبدالله ستوری

## غزل

د میني دین کې مې همدغه یو بدعت کړی دئ
چې د نړۍ له رواجو مې بغاوت کړی دئ

ما لا د میني د لمانځه سلام ویلی نه دئ
په کومه ورځ چې مې جانان پسې خپل نیت کړی دئ
غلیم ته بت غوندي ولاړ په کور کې تندر غوندي
د نن پښتون یم ما همدغه ډېر همت کړی دئ
زړه ته بې خامخا چینه وي د درداغوستې
چې کوم مین د میني ډار کې سکونت کړی دئ

د پښتونخوا پر پېکې ږدم د غزلونو ګلاب
"**ستوري**" د میني په خلوت کې ریاضت کړی دئ

**امین الله وحدت**/ لښکر ګاه

## غزل

ته د ګلابو د رنګونو په څېر
زه د صحراوو د ګردونو په څېر

څه بلې داسې قرباني نه وینم
د دې خپل زړه او د زخمونو په څېر
پښتو به هم جانانه داسې نه وي
ستا د وعدو او قسمونو په څېر
د اړونه هم ګوره پر دوه ډوله دي
یو د مالوچو بل د غرونو په څېر
اې خدایه دومره مو ثواب نصیب کړې
لکه د دوی د ګناهونو په څېر

دا زه "**وحدت**" بېغمه سوی نه یم
دا زما ژوند د کړاوونو په څېر

محبوب مشتاق

## غزل

بعضې وګړي په نه څه د رنه هر څه رڅوي
راګوري نه مګم بیا هم د سړي زړه رڅوي

چې ستا ښکلي او ته کله هم و یاد ته راسې
د سترګو ونه مې د اوښکو پاني ورڅوي
هغه تر ډېر انتظار وروسته یار ته ډېره ګوري
بانه ئې نه پر ېږدي له سترګو ئې کاته رڅوي
یو څوک زما د هر امیده سره ظلم کوي
لکه یخی اور ته ئې نیسي تړې او به رڅوي
ګوره چې خپل د کام وګړي دي و ئه شرموي
ستا یو پېغور ستا د کام خلک پښتانه رڅوي

"**مشتاقه**" ښکلي مدام نه کوي ترخې خبري
د ژبې کښت ئې ډېر وختونه ډېر خواږه رڅوي

حامد دقیق

## غزل

د رپر پولی مې تصویر په اوښکو اوښکو
کړی ما دئ دومره ویر په اوښکو اوښکو

بې له تا خوشحالي نه غواړم جانانه
بې له تا دي سم زهیر په اوښکو اوښکو
رقیبانو د چم غېږه ورته ورکړه
پخلا کړی ئې امیر په اوښکو اوښکو
ما پا چا د وجود تا ته د رسپارلی
راچاپېر ئې دئ ځنځیر په اوښکو اوښکو

ته مې ولي بېوسی ته دقیق نه سوې
سوه د غم اوره خمیر په اوښکو اوښکو

استاد احمد صمیم:

## نورستان

دا لنډۍ سیند څنګه مست دئ
څه رقاص او موسیقار دئ
حماسه د دغه وخت یې
په څپو کې زنګېدله

دا هر غر هره غونډۍ یې
د څېړې او عرفات وو
لڅې پښې شنه احرامونه
پر لمنو راڅکېدله

مخروطي تو کرۍ د لښتو
وې په شا د ښکلو نجونو
د هر چا د زړګي ځاله
بې اختیاره ورانېدله

د ښکلا سپینه سپوږمۍ به
د کامدېش و سر ته راغله
ته وا بیا له کوه قاف
شاپېرۍ راتاکېدله

د سبا پسته وږمه یې
صرف د زلفو شمېر ته وقف
د آریا د بنګو پاڼه
پر ملا ځکه کږېدله

دا وریځو سپین پنبه به
د "**صمیم**" و سر ته راغله
چې دا لمر یې ازار نه کړي
او چینه هم غځېدله

حبیب الله قلم مل

## غزل

د خبرو له سینګاره روڼا اوري
محمده (ص) ستا پر لاره روڼا اوري

د خولې کان دي د نور ډک پیمانه ده
د لفظونو له انواره روڼا اوري
د نرۍ ښارونه وایې مدینې ته
چې پر مور دا ستا له ښاره روڼا اوري
ستا د هر لفظ له ګلابه وږمې راسي
د حدیثو له ګلزاره روڼا اوري
د رحمت نظر درمل د درملونو
قلم مله له دې څاره روڼا اوري

دا د پوهې له سپرلي سره ته مل وې
چې د علم له بهاره روڼا اوري

رحمتي

## غزل

ډېري کلې لرو ماغزه نه لرو
سترګي ښایستې لرو باڼه نه لرو

هغه جرګې هغه شملې لا هم سته
ورسره هغه پښتانه نه لرو
د توپک قدر تر قلم ډېر سوی
زړه کې د علم خزانه نه لرو
دا چې کتاب په تاریکه کې ګورو
احمد محمود غونډې درانه نه لرو
هر څه کوو هر څه مو وکړل دلته
د بل جهان لپاره څه نه لرو

"**رحمتي**" سر مو پر ښکلا بایللی
خو زړه کې خیال د پروانه نه لرو

# د بنګړو شرنګ

چلوونکې: مینه انتظار

پروین فیض زاده ملال:

## د استاد پسرلي ابدي سفر ته

پسرلی او د ګلونو پاچا ولاړی
د مهینو غزلونو پاچا ولاړی
په کابل به پرخې نه ناځي له ویره
د وړمو د مزلونو پاچا ولاړی
چې د (**ستورو**) په جوپو کې جنازه ځي
د سپوږمۍ، سپوږمۍ خیالونو پاچا ولاړی
د غزل ناوې پلو پر مخ راخپور کړ
د بنایست د تفسیرونو پاچا ولاړی
د (**نازو**) اوښکې باجګیره د (**پروین**) سوې
د شفق او د لمرونو پاچا ولاړی

پاڼه حقیقت:

## غزل

ستا د زړه نه په رضا نه یم وتلې
ستا په خوښه هم اشنا نه یم وتلې
ژړاګاني او سلګۍ راسره مل وې
چې وتمه نو تنها نه یم وتلې
لېونو غوندې ګرېوان مې وو شکېدلی
وم دلې خو پر سحرا نه یم وتلې
هر سهار چې راوتم به ستا دیدن ته
زه له کوره چیرته بیا نه یم وتلې
ته هم هر شپه و "**پاڼې**" ته یادېږې
ستا له خیاله هم والله نه یم وتلې

مینه انتظار:

## غزل

د نظر په ماتولو پسې راغلم
در ته ځان لوګي کولو پسې راغلم
د چا مینې چې مې ساه ژوندون ته ورکړه
زه د هغه خپلولو پسې راغلم
د دنیا غمونه دومره سِوا نه وه
آشنا ستا غم د پرولو پسې راغلم
در نه جار مې شاعري ولې خپه سوې
د الهام په اخیستلو پسې راغلم
"**مینې**" وویشتې خونخوارو نظرونو
د خپل زړه په جوړولو پسې راغلم

ثریا حمیدي:

## غزل

زړه مې له مومه ځخه جوړ دئ ګرانه!
ځکه ژړیږي د هر چا په غم کې
زه دې تر اوسه انتظاره یمه
اوس مې هم اوښکې ځاځي ستا په غم کې
د آخرت توښه مو نه کړه پیدا
همېش پرېشان یو د دنیا په غم کې
نه مو مستي او نه خوشي سوه پاته
تل یو خپه مور د خندا په غم کې
ستا غم خو ما ته ستا احساس راکوي
خوشحاله ځکه "**ثریا**" په غم کې

مرسل احمدزی:

# د آيينې حافظه

آيينې ته دربدای نه سمه خدايه!
خپل تصوير ته هيڅ کتای نه سمه خدايه!
وايي دوی چې آيينې بې حافظې وي
بيا نو ولې مخامخ چې ورته ګورم
بلا ډېر کلونه مخکې تصويرونه راته سپړي
هغه زه چې وم ماشومه
مور به دوې چوټۍ را وکړې
آيينې ته به يې زه کړم مخامخه
ويل به يې وګوره چې لور مې ښه ښکارېږي
قناعت به مې د مور په سينګار وسو
آيينې ته به موسکۍ سوم، ترې به لاړم
آيينې سره په دغه پټپټوني کې رالو سوم
هم سوم ناوې په همدغه آيينه کې
په همدغه آيينه کې مې سينګار کړی هغه ته
توري زلفې مې همدغې آيينې ته سولې سپينې
آيينه مې د ژوند لويه حافظه سوه
خو اوس دغه آيينه راته بلا ده
اوس چې زه ور مخامخ سم
راته و خاندي موسکۍ سي
لکه ما پوري چې دا وهي ملنډې
لکه وايي چې انسان هم عجيبه دئ
څومره ژر ژر بدلوي بڼې مخونه
***

هما ظفر احمدزۍ

## د ميني يادګار

څو کاله پس يې راته
د مينې يادګار
يو دانه ماته آينه راکړله
زما د ترخي، ترخي زړه په شاني
زما څهره هم په څو ځايه
ترخي، ترخي ښکارېدله
په کي...

فرشته مرسل:

## غزل

کله چې ښغمه ستا له غمه سم
بيا به دي راتګ لره په تمه سم
ستا له اوروريني ښکلا وګرځم
څنګه دي د ميني ښار ته سمه سم
فکر مې نقاش سي ستا انځور جوړ کړي
زه ورته ګويا ستا له ستمه سم
دا د مات زړګي تحفه چې نه مني
وې وژنه چې سمه ترې ښغمه سم
څوک چې د جانان پر قدم پل ايږدي
زه دي هم حساب له هغه جمه سم
لويه نېکبختي د "**فرشتې**" به وي
ستا د تن و سيوري ته که دمه سم

هما ظفر احمدزۍ:

## ماتي آينې

ژوند له حماسو سره مې وژړل
تللي تېر يادو سره مې وژړل
ته وې پکې ستا خواږه يادونه ول
هغو څو شپېو سره مې وژړل
زړه مې حوصله اوښکي مې پاکي کړې
څيري ګرېوانو سره مې وژړل
کښېني مې ښوده لاس پر هر پرهر د زړه
ماتو حوصلو سره مې وژړل
سترګي مې په سترګو آيني ته کړې
ماتو آينو سره مې وژړل
هغه پلرني زمونږ د خاپورو کور
شاړو دېوالو سره مې وژړل
پرې مې ووت پر خړه هديره نظر
تېر زړو غمو سره مې وژړل



پیر محمد کاروان / کابل

# ماته به دومره مینه څوک راکوي



پر دېوال د تلويزيون ښيښه را ځوړنده ده. مسافر ښيښې ته ګوري او د خپل وطن تصويرونه پکښې ځاري. ناڅاپه د يوه ښکلي سړي تصوير پکښې راغی. د مسافر په زړه خوږ ولګېده. د تصوير پر مخ مينه ناکه موسکا خوره وه. په شونډو، اننګو او سترګو کې موسک وو. په موسکي تصوير پسې د همدې ښکلي سړي يو بل تصوير راغی. هغه هم په موسکا کې پټ وو. ورپسې جوخت دريم تصوير چې دا هم په ټوله مينه موسک وو. د مسافر پر زړه يو ه جمله لکه اره راتېره شوه. دا جمله د موسکي او ښکلي سړي په اړه وه. جمله څه داسي وه:

- دا موسکی او ښکلی سړی چي تاسي ئې د هندارو پر مخ د موسکو تصويرونو ننداره کوله د هنداري شا ته کښېناست او تاسي به ئې بيا په هنداره کي و نه ګورئ.

دا ښکلی او موسک سړی د پښتو غزل خان استاد محمد صديق پسرلی وو. مسافر د نن له هينداري څو ګامه را شا ته شو. د پرونيو هيندارو غبار ئې د يادونو په دسمال ليري کړ. په هيندارو کي د دې ښکلي سړي په لټون بوخت شو. په دې کي ئې له ليري د شپانه غږ واورېد. شپانه د دې ښکلي سړي د شاعرۍ پر خانۍ خبري کولې. خبري ئې خوږې لګېدې. په خبرو خبرو کي ئې د غزل د خان کره وړه داسي بيانول:

- نری نروچکی، ښکلی او مهين سړی دئ. غلی ملی آرام به ناست وي خو زړه ئې د غزلونو له شوره ډک سمندر دئ. ډېره څرګنده نښه ئې دا ده چي دنګه لوړه پزه ئې د غونډي زنې د پاسه ښکلې ښکاري.

ما د شپانه په خبرو کي د دې ښکلي سړي د غزل د دې خان پته پيدا کړه. چي تر درشله ئې ورسېدم دروازه ئې خلاصه وه. په تکو سپينو جامو او خامک شوي ټېر کي يو نری نروچکی ښکلی سړی ناست وو. دنګه پزه ئې د غونډي زنې د پاسه لا ښکلې ښکارېده. ما په موسکا، خوشحالۍ او شاعرانه عاجزۍ سلام واچاوه او ورته ومې ويل:

- پسرلی صاحب اجازه ده؟ پسرلي

صاحب په موسکا او ډېره مينه په غېږ کې ونيولم، زما نوم ئې واخيست او زه ئې هم پېژندلی وم. زه د خپل نوم په اورېدو په جامو کې نه ځايېدم. زما په زړه کې يوه لويه خوشحالي مېشته وه. هغه شپه ما داسې انګېرل چې د غزلونو يو لوی پير مې موندلی وي. ما د يوه نابلده مريد غوندي د غزلونو د باريکيو پوښتني ترې کولې. د ميني پسرلي لکه د غزل سليماني تاج ئې چې پر سر وي په مينه مينه په غزلونو راته غږېده. هغه مهال د هجرت مهال وو، شاوخوا تور تمونه خواره ول. د پسرلي قلم د سپېدې د پرښتې په لاس کې د هيلو او اميدونو د شمعې په څېر بلېده. د غزل پسرلی د سپېدې مجلې مسؤول وو. ما د استاد له خبرو پر له پسې الهامونه اخيستل. که په غزل کې به مې پښه ټکنی شوه دآزاد شعر لمنه به مې ونيوه. د ميني د پسرلي له لومړني ديدن سره جوخت د سپېدې مجله راته د رحمت او سپېدو پرښته ښکارېدلې وه. ما له دې پرښتې سره داسې خبري کړي وې:

**اې د سپېدو پرښتې**

**له خوبه و غځېږه**

**په کرشمو کرشمو وغځېږه**

**د شپو څادر له ګلابي بدن نه و غورځوه**

**د لمر زرينې جامې واغونده ادا وکړه**

**عمر ژړلو ته په سرو شونډو خندا وکړه**

**او د سپوږمۍ له ميخانې نه راوړه**

**د ميني تږيو ته د نور جامونه**

**پرېږده خواره چې شي پر وچو شونډو**

**لکه د ستوريو څاڅکي څاڅکي شراب**

**پرېږده د ميني ليوني دي هم شي مست و خراب**

**اې د سپېدو پرښتې**

**اوس که پېغلوټه يې خو پېغله به شې**

**د ښکلا راز يې يوه غوټه يې چې و سپړېږې**

**که د چړو په څوکو لاره هم وي**

**د عشق مجنون به ستا درشل ته درځي**

**په تور پټکي کي به ټومبي د پلوشو ګلونه**

**د تورو شپو په غېږ کي واخله نوراني ګلونه**

**د مهاجرو د خېمو غېږې ته**

**راوله راوله د نور قافلې**

**او دا د نور قافلې**

**د يو سفي کميس په عطرو باندي ولمبوه**

**د لمر د سترګي هار پر سپينه غاړه وځړوه**

**عزيز د مصر ته ورياد کړه د کنعان يادونه**

**او په مهجور پسرلي و وروه**

**د خوږ وصال د جنتونو ګلان**

**د استقلال د جنتونو ګلان**

**اې دسپېدو پرښتې**

**له خوبه و غځېږه**

**په کرشمو کرشمو و غځېږه**

د وطن د مهجور پسرلي د سپېدې له پرښتې سره مې دا خبري کم و زيات درويشت کاله وړاندي داسې مهال کړي وې چې شاعري مې ماشومه وه. دا دي دا خبري د استاد پسرلي د ابدي بېلتون په شپېو کې يو ځل بيا يوه يوه را يادېږي. هغه مهال مې زړه د پسرلي د ميني له غزليزو خاطرو مالامال وو. يو وخت موږ د ناصرباغ په کمپ کې اوسېدو. کله ناکله به د ناصرباغ په هديره کې ګرځېدم. د شهيدانو د قبرونو لوحې به مې لوستې. پر لوحو ليکل شوي نومونه د هغو افغان شهيدانو ول چې له روسانو او يا د هغه وخت له حکومت سره په جنګ او جهاد کې شهيدان شوي ول. د يوه دوه ويشت کلن شهيد پر مزار ليکل شوي وه:

– شهيد نيل. دې نوم د نيل د څپو غوندې ټکان راکړ. هغه وخت په زړه کې يو لنډکی شعر را

ګرځېدلی وو: چي نیل هم شهید شوی وي نو
فرعون به په کومو څپو کي غرق کېږي؟

ما نیل شهید ته د پسرلي د ماتي شپېلۍ له دردوونکي او زړه راښکونکي غږ سره یو ځای ژړلي ول:

**آن تر سهاره دې غم ویښ ساتي ما**
**شپه روڼوم تاته شپېلۍ غږوم**
**د ناصرباغ د شهیدانو تر څنګ**
**د هدیرې شاته شپېلۍ غږوم**
**ستا د شهید شپونکي ویرنه وایم**
**د پسرلي ماته شپېلۍ غږوم**

د غزل پسرلي لکه پیر، لکه مرشد زموږ پر زړونو، ذوقونو او غزلتورو لاسونه را تېرول. د هجرت په دیار کي د پښتو ادب کړۍ افغان ادبي بهیر د دوی د مینې او شاعرانه پېرزوینو زېږنده وه. موږ به ډېر ځله د دوی په مجلس کي د دوی له زامنو هر یوه مرحوم امان الله ساهو، اسدالله غضنفر، اجمل پسرلي او د هغه وخت ماشوم ایمل پسرلي سره یو ځای ناست وو. هغه مهال به عصمت الله ځاروان د پسرلي صاحب بل زوی په مسافرۍ کي وو. کله کله به اروابښاد امان الله ساهو او کله هم اسد غضنفر د استاد پر یوه نیمه خبره نیوکي کولې. استاد به د خپل کشري زوی ایمل پسرلي په ویښتانو کي ګوتي وهلې او یا به ئې د هغه پر سر لاس راتېراوه، د خپلو زامنو په نیوکه به موسکی وو. کله کله به ئې کټ کټ وخندل. دې موسکا او دې کټ کټ خندا به موږ ته د کره کتنې د زغم چل را ښووده.

افغان ادبي بهیر د لرو برو پښتنو او افغانو ادیبانو، شاعرانو، لیکوالو دمه ځای وو. افغان ادبي بهیر د افغانو شاعرانو لفظونه، خیالونه او شعرونه ځلول. افغان ادبي بهیر د استاد پسرلي تر مینه ناکي مشرۍ لاندي زرین ګامونه اخیستل. آخوا سپېدې هم د مینې او تغزل کر کړی وو. خو د سپېدې مجله چي کله بیماره او ورپسې په تپه درېده د هغې په بېګانۍ شپه مي د سپېدې مجلې په دفتر کي دا غزله لیکلې او ډېره مي له ځان سره زمزمه کړې وه:

**سترګي رنځوري وایه څه په زړه لرې نرګسه**
**تا هم لیدلي د کابل زېړي څېرې نرګسه**
**زېړه څېره، رنځوري سترګي لکه لمر د غروب**
**په مازدیګر کي درته چا وکړې ښېرې نرګسه**
**چا درته وې د سپېدې پېغله مري د مینې په تور**
**چي شوې راکوږ لکه جنډه د هدیرې نرګسه**
**روح په مینو بلبلانو پسي چېرته یوسم**
**ډېوې دي مړې توري تیارې دي راخورې نرګسه**
**خدای خبر بیا به چېرته واورو نرګسي راګونه**
**د پسرلي د تغزل له منارې نرګسه**
**نن دي له هري پاڼي پاڼي نه ګیله وربېږي**
**لکه کیسه د طالب جا ن د ګلبشرې نرګسه**
**شپه نیمه شپه ده راځه ډک ګړو سره ډک زړګوټي**
**بیا به نه ته وې، نه کاروان نه یې مسرې نرګسه**

۱-۱۱-۱۹۹۳

استاد پسرلي به د خوشال بابا پر غزلونو، پښتو لنډیو او د فارسي پر کلاسیکه شاعرۍ خوږې خبري کولې. دا خبري به مو د زړونو په غوږونو اورېدې. دې غزلیزو خبرو به زموږ زړونه او ذوقونه ځلول. استاد پسرلی دریابي شاعر وو، لکه ملنګ په خلوت کي له شهرته مستغني وو. د هغه د استغنا قامت لویو غمونو هم مات نه کړ. د استاد مجاهد، توریالی او عیار صفته لیکوال او شاعر زوی امان الله ساهو ځوانیمرګ شو. موږ د بهیر یاران به د استاد حجرې ته ډېر ډېر ورتلو چي ګوندې غم ئې لږ

تسکین شي. استاد به په هغه درانه غم کي هم په پرتم ناست وو. د امان الله ساهو یاد ئې داسې کاوه: له یوه سړي نه څادر ورک شوی وو. په محکمه کي ئې عریضه وکړه چي له ما نه یو خورجین، یو سروپړدی، یو مخ پټونی، یو ملاوستنی او یو څادر دا ټول ورک دي. قاضي وویل: دا څنگه په یوه ځای دومره ډېر شیان درنه ورک شوي دي؟ سړي وویل: له ما نه په اصل کي یو څادر ورک دئ خو دا یو څادر به مي کله د خورجین پر ځای کاراوه، کله به د شپې له خوا د بړستني پر ځای په پټېدم، کله به مي د سروپړدي پر ځای تر سر لاندي اېښوده او آرام خوب به مي پرې کاوه. استاد د دې خبري پیوند د اروابناد ساهو له مرگ سره داسي و کړ: ساهو زما هغه څادر وو چي هم خورجین، هم مخ پټونی، هم سر وپړدی او هم ملاوستنی وو.

استاد په غم کي هم له جلال او پرتم نه ډک وو. کله به چي د بهیر یاران او دوستان د غم په ورځو شپو کي ورتلو نو استاد به په مفکرانه انداز داسي ویل:

– دوستان په غم کي د تقسیم په څېر وي غم در نه ویشي، خو په ښادۍ کي د ضرب عملیې ته ورته وي، خوشحالي په څو چنده درزیاتوي.

د استاد پسرلي د نورو بهیروالو تر څنگ له ما سره هم ځانگړې مینه وه. یو وخت مي د افغان ادبي بهیر په مشاعره کي چنار خبري کوي شعر ولوست. له ماسره وېره وه چي دا شعر به د پسرلي صاحب خوښ شي او کنه؟ کله چي د بهیر غونډه ختمه شوه، استاد ستېج ته راغی، ډېر خوشحاله ښکارېده. د ډېري مینې او جذبې هیجان اخیستی وو. وئې ویل: که زه سلطان محمود غزنوي او یا کوم بل پاچا وای کاروان به مي د دې شعر په بدل کي په طلاوو کي پټ کړی وو، خو زه د پاچا پر ځای یو شاعر او ملنگ یم. خپل قلم ئې له جېبه را وایست. وئې ویل: دا قلم کاروان ته ډالۍ کوم.

ما ته له ډېرې خوښۍ ژړا راغلې وه، د استاد ډالۍ شوی قلم مي ښکل کړ. چنار خبري کوي شعر چي استاد د هغه پر سر ما ته د مینې ډالۍ راکړې وه خپله شعري ټولگه مي د هغه شعر په نوم ونوموله یعني چنار خبري کوي. تر چنار خبري کوي شاعرۍ وروسته مي نوره شاعري هم وکړه چي نوم ئې د ښاپېرۍ ورغوی شو. زړه مي اوبه نه وربانديڅښلې، زړه نازړه وم چي د ذوق د خاوندانو به خوښه شي او کنه؟ استاد پسرلي ته مي هم د ښاپېرۍ ورغوی واستاوه. استاد د ښاپېرۍ ورغوی په مینه لوستی وو. د ښاپېرۍ ورغوي ته ئې یو شهکار شعر د لمر کجاوه لیکلی وو. کله به مي چې د استاد د لمر کجاوه شعر لوستو ټکنی زړه به مي لږ آرام غوندي شو. د همدې شعر په هینداره کي به مي چي د ښاپېرۍ ورغوی کتلو ښکلی او مناسب ښکارېده. د استاد په شعر کي په ډېره مینه زما د نوري شاعرۍ له پاره هم زریني دروازې خلاصي وې. کله چي د استاد پسرلي د نظمونو ټولگه خپره شوه نوم يې د لمر کجاوه ورته ایښی وو. د لمر کجاوه د دې ټولگي هغه شهکار او ښکلی نظم وو چي زما د شاعرۍ ښاپېرۍ ورغوي سره ئې مینه پکښې ښودلې وه.

ما له خپل وطن نه غرونه او سمندرونه اخوا په مسافرۍ کي د یوه ملنگ خویه محبوب انسان استاد پسرلي د ابدي بېلتون خبر واورېد. زه لکه یتیم د خپل زړه په کونج کي ناست یم او د یوې لویي پوښتني سره مخ یم. دا پوښتنه دا ده:

ما ته به دومره مینه څوک راکوي؟

۲۰۱۴-۱-۱۶

له وطن لیري په بل دیار کي

فدا نظري/لندن

# شیخ عبدالحکیم کندهاری افغاني څوک دئ؟

په افغانستان کي د دري ژبي ستر عرفاني شاعر استاد خلیلي په خپلو یادابښتونو کي لیکي:

زه د ۱۳۵۰ کال (۱۹۷۱) په اوړي کي د زیارت له پاره دمشق ته ولاړم او هلته د (ظاهریه) په نوم پر یوه بډایه کتابخانه پیښ سوم. د کتابخانې په شاوخوا کي د عالمانو، پوهانو او صوفیانو د یوې کړۍ سره آشنا سوم او هغوی په ګډه د یوه ستر کندهاري صوفي چي شیخ عبدالحکیم کندهاري افغاني (په هغه وخت کي د افغانستان هر فرد افغاني بلل کېدی) نومېدی تر اندازې زیات صفتونه کول.

دوی ویل چي:

چي د دمشق هر اوسېدونکی د سید جماالدین هیواد افغانستان پېژني او بل دا چي دلته هر وګړی و شیخ عبدالحکیم کندهاري افغاني ته ستر احترام لري.

دوی ویل چي:

تر اوسه لا د ده د زهد، استغنا او دینداری کیسې، د ده د علمي او تحقیقي ارشاداتو اغېزې د شام د ټولو مدرسو او مسجدونو د مدرسینو او علماوو روح تازه کوي.

دوی ویل چي:

دمشقیانو ته دغه محقق شیخ، فقیه عارف او محدث مفسر د انساني سترتوب، د ښو کړو او زړه وړونکو خبرو یو آیت او سمبول وو. د شام عالمانو او شاګردانو شیخ عبدالحکیم د پوهي یو بهانده سند ګاڼه.

اوس به وګورو چي دغه د زهد، تقوا او پوهي ستره ډیوه څوک وو؟

د (اعلام الاسلام) چي د عیدالوهاب سکر تالیف او په حلب کي چاپ سوی دئ او همداسی د یوه بل ځانګړي کتابګوټي چي (عبدالحکیم افغاني) نومېږي په حواله:

شیخ عبدالحکیم په ۱۲۵۱ هـ – ق (۱۸۳۵ م) په کندهار کي زېږېدلی دئ. چي په دی تخمین دی په اټکلی توګه تر سید جماالدین افغانی څلور کاله ترمخه زېږېدلی او مشر دئ.

د ځوانی په سرکي ئې د زده کړو له پاره هند ته مخه کړې ده، وروسته د مبارکي کعبې زیارت ته ورغلی، بیا بیت المقدس ته تللی او په پای کي ئې ځان ته د ژوند کولو له پاره دمشق غوره کړی دئ. په تر اوسه را پاته آثارو کي دغو ښارونو ته د ده د تګ او سفر د کلونو په هکله هیڅ یادونه نسته.

د نومو‌ړو کتابونو د معلوماتو له مخي شیخ عبدالحکیم کندهاري:

– جګه ونه، غنمینه څېره، ببره ږیره، توري سترګي او پراخ تندی درلود.

– د ژوند تر پایه ئې واده و نه کړ، لږ خوراک، لږي خبري اولږ خوب ئې کاوه.

– ټول ژوند ئې دین ته وقف کړی وو، د ورځي او شپې ګرده وخت ئې په ټاکلې اندازه د تعلیم او تقریر، مطالعې، لیکلو، تلاوت او عبادت له پاره وېشلی وو.

– د خلګو هدیه ئې نه منل، کله به ئې هم ختې کولې او د ختو د مزدورۍ په پیسو به ئې ژوند کاوه، د روژې په میاشت به ئې د خپل کار په مقابل کې لږه اجوره اخیستل.

ډېر ښکلی خط ئې درلود او مبتکر مشاق وو. څو ځلي ئې مصحف کریم په خپل خط لیکلی وو.

– د عالمانو ئې زښت ډېر احترام درلود او د دوی په مجلس کې به تل پر دوو پښو (دوو ګوتو) کښېښنستی. پر مسکینانو مهربانه وو او د هغوی سره تل په ډېره نرمي او مهرباني رغېدی په داسې حال کې چې د بډایانو او واکمنو په مخ کې له ځایه هم نه ښورېدی.

وايي (جواد پاشا) د ترکیې د هغه وخت صدراعظم چې په شام کې د عثماني اردو عمومي قومندان هم وو، یوه ورځ د شیخ عبدالحکیم و حجرې ته ورغلی. شیخ هلته ناست او هغه ته د احترام له پاره ولاړ نه سو. جواد پاشا ورو د هغه څنګ ته کښېناست او خبرې ئې پیل کړې. کله چې ولاړ سو د سرو زرو یوه غوټه ئې د ده څنګ ته کښېښودل او له کوټې څخه بهر سو. کله چې شیخ زر ولیدل ډېر ژر ئې هغه واخیستل او لڅي پښې ئې په هغه پسې ور هلا کړل، د پاشا مخ ته ئې کځوړه پر مخکه وروغورځول، ویل زه دغه ته اړ نه یم. ژر خپلې خونې ته ننووت او ور ئې په ځان پسې وتاړه.

یوه ورځ د دمشق والي شیخ عبدالحکیم ته ورغلی او دعائې ترې وغوښتل. شیخ تر دعا وروسته د کتاب په لوستلو بوخت سو. والي څو طلايي پیسې د بوریا پر یوه څنډه کښېښودلې. شیخ د والي په وړاندې هغه پیسې و یوه شاګرد ته ورکړې چې توري ئې کړي او پر مسکینانو ئې ووېشي. یوه میاشت وروسته بیا والي د شیخ زیارت ته ورغلی او تر پخوا دوه ځله زیاتي د سرو زرو سکې ئې شیخ ته ورکړې چې خوارانو ته ئې و وېشي. شیخ ورته ودردېدی او په قهر ئې ورته وویل: زه خو ستا یاور نه یم ته ئې پخپله ووېشه!

والي بیا عذرونه ورته وکړل، ویل اوس روژه ده، په دې میاشت کې د ختو کار ډېر نه وي، دغه ډېري لږي پیسې مي یوازي د روژې د خرڅ له پاره درته راوړي دي. شیخ عبدالحکیم ورته ویل نه! وګوره ما د روژې خرڅ ترمخه برابر کړی دئ. والي چې بل پلو وکتل څو وچې ډوډۍ د کوټې په یوه کنج کې پرتې وې.

یوه ورځ هم یوه شاګرد چې د فقې کتاب ئې لوستی، د شیخ څخه و پوښتل چې دغه علم څه ګټه لري؟

شیخ دستي جواب ورکړ:

«اجتهاد».

شاګرد عرض ورته وکړ، وايي د اجتهاد ور خو تړلی دئ.

"چا د اجتهاد ور تړلی دئ؟ خدای دي جوړ کړه! ستاسو په ښار کې هغه طالبان د اجتهاد دعوه کوي چې تر اوسه ئې نورالایضاح لا نه دی لوستی".

کندهاري شیخ لاندي آثار لیکلی دي:

– کشف الحقایق. (پر کنزالدقایق شرحه)
– پر شاطبیه باندی شرحه.
– پر صحیح بخاري شرحه.
– پر هدایه شرحه او تعلیقات.
– پر المنار شرحه.
– د ابن العابدین پر کتاب شرحه.
– پر تفسیر نسفي شرحه.
– پر نخبه شرحه.

د ټولو دغو آثارو نه یوازي کشف الحقایق خپور سوی دئ.

مړینه:
شیخ علامه کندهاری د ژوند په پای کې د ډېر ریاضت، تقوا او تدریس څخه پر ملا کړوپ سو، او د ۱۳۲۶ کال (۱۹۰۸) کال د شوال د میاشتې پر اتمه نیټه ئې له دې نړۍ څخه سترگې پټې کړې.
په سبا ورځ د شام خلگو، د دمشق د ژاندارم او پولیسو ټولگیو، په داسې حال کې چې د حربي لبسې زده کوونکې ئې په وړاندې تلل اود شام ټوله عالمان، حکومتي چارواکي، د ښار اعیان او اشراف ورسره ملگري ول تر خاورو پورې د کندهاري فقیر مخه ښه وکړل.
قبر:
شیخ عبدالحکیم کندهاری د دمشق د (باب الصغیر) په هدیره کې خاورو ته وسپارل سو. د ده د قبر ته یوازې د ۱۰–۱۵ متره په واټن د حضرت پیغمبر یوه مېرمن او دوه سوه متره لیرې د اسلام د لومړني مؤذن حضرت بلال قبر دئ. د قبر دواړو اړخونو ته ئې دوه تنه نامتو فقهاء د درالمختار مؤلف علامې صاحب او ابن العابدین ښخ دي.
د دمشق علمي کړیو د ده پر قبر د مرمرو یوه ستره لوحه درولې ده چې پر لیکلې دي:
هوالباقی
هذا ضریح العلامة الفقیه الزاهد الورع شارح البخاری و الهدایه و الکنز والمنار والشاطبیه و محشی تفسیرالنسفی مع حاشیه و الجنة و غیرها عبدالحکیم الافغانی نزیل دمشق الشام المتوفی فی لیلة الجمعه ۸ شوال ۱۳۲۶
منابع:
– ز ما په شخصي کتاب خانه ( لندن ) کې د استاد خلیلي په خپل لیک یادابښتونه.
– قاموس الاعلام، د الیاس سرکیس تالیف.

***

ټولوونکی: حاجي محمد رزمي

## ګل خبري

- شتمني څوک نه بدلوي بلکې د مخ څخه ئې پرده پورته کوي.
- بدبینه خلک هغه څوک دي چې مجبوره دي په خوشبینۍ کې ژوند وکړي.
- کله چې څوک د بل چا د کرکټر په باره کې خبري کوي په حقیقت کې خپل کرکټر تشریح کوي.
- هغه څه چې انسانان سره بېلوي د هغوی تر منځ توپیرونه نه بلکې د هغوی د خودخواهیو ورته والی دئ.
- هغه څوک چې په ژبه وهل کوي د سر بیه ورکوي.
- د هر چا دوست د هیچا دوست نه دئ.
- هغه وخت چې لمر ځلېږي هیڅوک نه ورته ګوري کله چې ئې تندر ونیسي هر څوک ورته ځیر سي.
- د مادیاتو غریبي د چارې ور ده خو د روح غریبي هیڅ چاره نه لري.
- هغه څوک چې کتاب سوځوي هغه یوه ورځ انسان هم سوځوي.
- ایا ژوند سل واره تر هغه لنډ نه دئ چې څوک دي پکښې دیغ سي؟

# د سقراط تلپاته نظريات

لیکوال: زنه فین



مترجم: واحد فقيري

## ځلرم فصل

### سقراط د خدای وجود ثابتوي

که چيري هلته داسي کسان وي چي د هغو خلکو خبري مني چي د حدس او گومان پر اساس ئې لیکلي وي، او وايي چي په رشتيا هم سقراط تقوا ته د خلکو په تشويقولو کي عالي استعداد لاره، خو هغه همدا خلک د تقوا په لاره کي د سترو پرمختگونو ترلاسه کولو ته نه هڅول. د دې خلکو په جواب کي باید ووايم چي ښه به دا وي چي همدا خلک د سقراط پر خبرو باندي څه سوچ وکړي. ځکه سقراط په خپلو مناظرو او گرداوونو کي هغه خلک ردول چي د ټولو شيانو د پوهېدو ادعا ئې کوله، البته دا کار ئې د خپلي پخوانۍ او اشنا طريقې په مټ کاوه. بل خوا، همدا خلک باید خپل هغه قضاوت، چي گواکي سقراط د دې قابليت نه لاره چي خپل ملگري د تقوا او فضليت په لاره کي پرمختگ ته وهڅوي، د دغي ليکني تر لوستلو پوري وځنډوي.

زه به په لومړي سر کي دلته د هغه مباحثې په اړه څه ولیکم چي سقراط د اریستودیموس سره، چي په «کمکي» مشهور وو، درلوده. بحث د خدای په باب وو. سقراط اورېدلي ول چي اریستودیموس هیڅکله خدایانو ته قرباني او نذر نه وو ورانديٰ کړی؛ هیڅکله ئې خدایانو ته په دعا لاسونه نه ول پورته کړي؛ هیڅکله ئې د اسماني الهام څخه مرسته او توصیه نه وه غوښتې؛ او حتی پر هغو خلګو ئې خندل چي پر خدای ئې باور لاره او قرباني او نذر ئې کاوه. سقراط د هغه سره په دې ترتیب خبري پیل کړې:

«اریستودیموسه، دا راته ووایه چي ایا داسي کسان سته چي ته ئې د وړتیا او هنر په خاطر احترام لرې؟» هغه جواب ورکړ: «بلې هو، بالکل». سقراط زیاته کړه: «د هغوی نومونه راته ووایه». اریستودیموس په جواب کي وویل: «په حماسي شعرونو کي هومر چي تر ټولو وتلی او عالي دیٰ؛ په احساساتي او ازادو شعرونو کي میلانیپیدیس بلا کوي؛ سافه کلیس په تراژیدي کي ماهر او مبتکر وو؛ په مجسمو کي پالیکلیتیس بې ساری وو؛ او زوکسیس په رسامۍ کي استاد وو». سقراط وپوښتل: «ستا په نظر کوم هنرمندان د احترام او ستاینې وړ دي: ایا هغه انځورګران چي داسي تصویرونه او مجسمې جوړوي چي روح او حرکت نه لري، او که هغه هنرمندان چي داسي حیوانات جوړوي چي پخپله حرکت کوي، او عقل او پوه هم لري؟» اریستودیموس په جواب کي وویل: «بې له شکه وروستي هنرمندان. مګر په دې شرط چي په تصادف ئې نه وي جوړ کړي، بلکي په ښه قضاوت او بصیرت سره ئې جوړ کړي وي».

سقراط ادامه ورکړه: «هلته داسي شیان سته چي موږ نه پوهېږو چي ولي جوړ سوي دي، او ځیني نور بیا ظاهراً ښه او ګټور وي، اوس نو ما ته دا ووایه، اې زما یاره، ستا په ګومان له دغو دوو څخه کوم یو د عقل او دوراندیشۍ کار دیٰ نه د اتفاق او قمار». اریستودیموس په جواب کي وویل: «معقوله خبره خو دا ده چي هغه شیان چي ښه او ګټور وي، هغوی د عقل او سالم قضاوت تولید وبلل سي». سقراط ورته وویل: «ایا فکر نه کوې چي د انسانیت لومړي جوړونکي انسانانو ته هغه تفوقونه ورکړل چي د دغو حواسو په واسطه شیان پېژندلای او درک کولای سي، د مثال په توګه سترګي د لېدو له پاره، او غوږونه د اورېدو له پاره؟ ښه بوی به څه اثر لرلای که چیري زموږ پزو نه سوای احساسولای؟ او که چیري زموږ ژبي خوند او لذت نه سوای درک کولای، د خوند او لذت احساس به مو څرنګه کولای؟ برعلاوه، ایا تا ته دا معقول او هوښیار کار نه برېښي چي څرنګه چي سترګي نازکي جوړي سوي دي، خو د باڼو او وریځو په ذریعه ساتل کېږي، څو له یوې خوا اسانه پورته او کښته حرکت وکړي، او له بلي خوا ئې د خوب پر مهال وپوښي؟ باڼوګان سترګي له خاورو او دوړو څخه څرنګه ښه ساتي؟ او وریځي پخپل ځرګند موقعیت کي د تندي خولې نه پرېږدي چي سترګو ته داخلي سي او خوږ ئې کړي. غوږونو د مختلفو صوتونو د اخیستلو او اورېدلو له پاره څرنګه ښه شکلونه غوره کړي دي، او

داسي نه کېږي چي يو ږغ د نورو اوازونو د اورېدو مانع سي. ايا د ټولو حيواناتو د مخ غاښونه د دې مقصد له پاره مناسب نه دي چي له مړی څخه مناسبه اندازه ټوټه پرې کاندي، او نور غاښونه ئې په کافي اندازه ميده ميده کړي څو د خورک او تېرولو له پاره چمتو سي؟ خوله چي موږ له همدې لاري ډوډی خورو، په ډېر ښه شکل د پزي او سترګو لاندي ځای لري. دا په خپله د ښه قضاوت ښکاروندی دئ؛ او څه چي زموږ د حواسو له پاره بد او نامطبوع دي، البته د همدې سبب په وجه، په مناسبه فاصله له خولې او پزي څخه ليري جوړ سوي دي. څرنګه چي همدا شيان داسي په ترتيب او اندازه سره اوډل سوي دي، او دونه خيال ئې ساتل سوی دئ، اوس نو سوال دا دئ چي ايا دا به الهي امر وي، او که به د سپېره تصادف کمالات وي؟» اريستوديموس په جواب کي وويل: «زه په دې باب نور څه شک او ترديد نه لرم، او هر څونه چي زه په دې هکله تفکر او غور کوم، په زياتېدونکې توګه تشويقېږم چي دا ګرده شيان د يوه ستر او عالي استاد شهکارونه وګڼم، داسي څوک چي د انسانانو سره سخته مينه لري». سقراط ادامه ورکړه: «په دې کي څه وايي چي هغه په ټولو حيواناتو کي د خپل نسل د تکثير هيله او غريزه اېښې ده؟ دغه راز، دا چي هغه ټولو موجوداتو ته د خپلو ماشومانو سره مينه او الفت ور الهام کړي دي؛ دا چي هغه په ټولو ژوندي موجواتو کي د زېږېدو پر مهال له ژوند سره ليونی مينه او له مرګه بېساري تېښته او کرکه اېښې ده؟» اريستوديموس په جواب کي وويل: «زه درته وايم چي همدا د هغوی د بقا په ارتباط د هغه پروا او غم خوړل ښيي». سقراط ور غبرګه کړه: «دا ټوله خبره نه ده، زما د نورو تپوسونو له پاره به نور جوابونه هم راکوې؛ ښايي ښه به دا وي چي ته له ما څخه تحقيق او تپوسونه وکړې؛ زه داسي ګومان کوم چي ته جاهل نه يې، بلکي ته د عقل خاوند يې. ايا ته فکر کوې چي بل چيرته به يو بل کوم عاقل او هوښيار موجود نه وي؟ په تېره بيا، که چيري پر دې مسلې سوچ وکړې چي ستا تنه يوازی د ختو او خاورو يوه کوچينی کوټه ده، او له هغې ستري خاوريني کرې څخه رااخيستل سوې ده چي ته همدا اوس ورته ګورې. دغه راز، د هغه اوبو او رطوبت څخه چي ته جوړ سوی يې، د څپانده سمندر يو کوچينی ځاڅکی دئ. په بل عبارت، ستا تنه او جسد د هغو عناصرو يوه کوچينی برخه ده چي په کايناتو کي په پېخر پراته دي. مګر ستا پوهه او عقل بايد د يو بل ځای څخه وي، او هغه هم ښايي د کوم ښه بخت له کبله. اوس نو، ايا دا ويل کېدای سي چي ټول دغه کاينات او ټول دا بېشماره مخلوقات او اجساد چي په خاص نظم ترتيب سوي دي، دا ټول کارونه پرته د يوه هوښيار موجود له مرستي څخه موجود سوي وي؟ په بل عبارت، ايا دا ټول فقط تصادف وو؟» اريستوديموس په جواب کي وويل: «ما ته هم د دغي مسلې بل راز درک او پوهېدل ګرانه خبره ده، ځکه زه په دې کار کي هسي خدايان نه وينم لکه څنګه چي يې ته وينې، او وايې چي هغوی دا شيان خلق کړي او حکم پرې چلوي. يعني زه دا نه وينم لکه څرنګه چي

صنعت کاران وینم څوک چي زموږ تر سترګو لاندي کار کوي او شیان جوړوي». سقراط ور غبرګه کړه: «ته خپله روح او اراده هم نه وینې چي ستا پر جسم باندي حکم چلوي؛ مګر، څرنګه چي ته یې نه وینې، ایا ته له دې څخه دا استنتاج کوې چي ته د خپل روح او ارادې په حکم هیڅ کار نه کوې، او یا دا هر څه چي ته یې کوې، فقط د تصادف له مخي یې کوې؟» دلته اریستودیموس ګنګوړه او وارخطا غوندي سو او وې ویل: «زه له خدایه کرکه نه لرم، خو کله چي زه د هغه د عظمت او ځان بسیایي مفکورې ته ګورم، زه تصور کوم چي خدای نه زما له پاره او نه هم زما د خدمت له پاره کومه اړتیا لري». سقراط په جواب کي ورته وویل: «ته کاملاً غلط یې. ځکه لکه څنګه چي ستر او باعظمته خدایانو ستا سره د ژوند او روح رحمت کړی دئ، په هغه اندازه ته مکلف یې چي د هغوی حمد او ثنا ووایې». اریستودیموس په جواب کي وویل: «ضرورت به نه وي چي زه تا ته ووایم که چیري ما باور لرلای چي خدایان د انسانانو له ژوندانه سره علاقه لرلای، ما به د هغوی له عبادت څخه غفلت نه وای کړی». سقراط وویل: «څرنګه؟ ایا ته باور نه لرې چي خدایان د انسانانو خیال ساتي؟ خدایانو نه یوازي انسانانو او حیواناتو ته د لیدو، اوریدو، او ذایقې حواس ورکړي، بلکي انسان ته ئې د سم او سیده تګ طاقت هم ورکړی دئ. دا هغه امتیاز دئ چي بل هیڅ حیوان ئې لا په نه سي ویشتلای، او دا امتیاز د انسان له پاره نهایت اهمیت لري. ځکه هغه کولای سي چي مخامخ او سیده ووینې، لیري شیان ننداره کړي، هغه شیان په اسانۍ سره سروې او معاینه کړي چي له ده څخه پاس وي، او په دې ترتیب ځان له صدمې څخه وساتي. که څه هم حیوانات ګرځي او پښې لري، خو همدا پښې ئې پرته له قدم وهلو څخه په بل درد نه خوري. دلته خدایانو انسانان متمایز کړي دي، او هغه دا چي د پښو تر څنګ ئې لاسونه هم ورکړي دي چي د زرهاوو سترو او کوچنیو کارونو او فعالیتونو له پاره مناسب او ګټور دي. په دې برخه کي نه یوازي انسان مزیت او تفوق لري، بلکي د نورو ګردو حیواناتو په پرتله خوشحاله او راضي هم دئ او برعلاوه، که څه هم ټول نور حیوانات ژبې لري، خو هیڅ یو ئې د انسان غوندي خبري نه سي کولای. یوازي د انسان ژبه داسي خبري او کلمې ادا کولای سي چي د هغو په ذریعه خپلي مفکورې بیانولای سي، او خپلي نظریې نورو ته ورانتقالولای سي. برسېره پر دې، خدایانو د انسان له پاره نوري اسانتیاوي هم برابري کړي دي؛ د مثال په توګه، هغوی د انسان د لذت خیال هم ساتلی دئ، ځکه انسان ئې د همدې لذتونو د اخیستلو له پاره یوه خاص موسم ته نه دی مقید کړی، لکه څنګه چي ئې په نورو حیواناتو کي شهوت موسمي کړی دئ».

«خدای نه یوازي زموږ د تنې او جسد غم خوړلی دئ، بلکي زموږ د روح او نفس خیال ئې هم ساتلی دئ؛ همدې مسلې هغه لوی او ستر خالق خوشحاله کړی دئ. خدای نه یوازی دا چي انسانانو ته په تنې او بدن کي

زیات تفوقونه ورکړي، بلکي (تر ټولو مهم تفوق او ستره تحفه، او د هغه د پروا او علاقې تر ټولو مهم او غښتلی ثبوت) هغه دا چي لوی خدای په انسان کي یوه هوښیاره روح پو کړې ده، یوه داسي روح چي تر ټولو عالي او بهتره ده. څکه کوم بل حیوان داسي روح لري چي د خپل خالق په شتون دي پوه وي، هغه خالق چي دونه زیات خارق العاده او حیرانوونکي شیان ئې خلق کړي دي؟ ایا هلته پرته له انسانه بل داسي موجود سته چي د هغه عبادت، ثنا او حمد کوي؟ بل کوم حیوان کولای سي، البته لکه انسان، چي خپل ځان د لوږي او تندي په مقابل کي وساتي، او یا ځان د تودو او سړو په وړاندي وساتي؟ بل کوم حیوان کولای سي چي د امراضو د علاج له پاره دارو درمل پیدا کړي، او یا د خپل طاقت څخه داسي کار واخلي لکه انسان؟ او یا د زده کړي داسي قابلیت لري چي هغه شیان چي دی ئېویني، اوري، او یا ئې ذهن ته سپارلي دي بشپړ وساتي او مواظبت ئې وکړي؟ که چیري انسان د غوایي په شان تنه لرلای، نو بیا به ئې د پوهي نازکي او انداز هیڅ په درد نه وای خوړلی، څکه څه چي ئې په خپل ذهن کي لرلاي هغه به ئې نه سوای عملي کولای. بل خوا، که چیري حیواناتو زموږ غوندي بدن لرلای، بیا به هم د نورو ځناورو څخه بهتره نه وای، څکه چي هغوی له پوهي څخه محروم دي. نو ښنا، خدایانو ستا په وجود کي تر ټولو ښه بدني جوړښت او تر ټولو ښه د روح کمال نغښتي دئ؛ اوس نو، له دې ټولو را وروسته، ایا ته کولای سې چي ووایې خدایانو ستا خیال نه دئ ساتلی؟ هغوی باید څه کړي وای چي ته ئې د خپل نظر پرخلاف قانع کړی وای؟»

اریستودیموس په جواب کي وویل: «ما به له هغوی څخه غوښتي وای چي په ټولو هغو شیانو مي په څرګنده توګه خبر او عالم کړي چي زه باید په یوه وای لکه د مثال په توګه: څه باید وکړم او یا ئې باید و نه کړم؟ لکه ته چي ئې ادعا کوې چي تا ته ئې الهام وي».

سقراط وویل: «څه! کله چي هغوی د اتن ټولو خلګو ته کوم الهام اعلانوي، ایا ته فکر کوې چي خدایان تا نه پکښې شاملوي؟ کله چي په عجایباتو او معجزو سره هغوی یونانیانو ته د راتلونکو پېښو په باب معلومات ورکوي، ایا هغوی تا هېروي؟ ایا هغوی ستا په باره کي غفلت کړی دئ؟ ایا ته فکر کوې چي خدایانو به انسانانو ته دا درک په ناحقه ورکړی وي چي دا خدایان دي چي انسانان خوشحاله او بدبخته کولای سي؟ او ایا ته باور لرې چي انسانان به تر ابده پوري د دې چل په کشفولو نه وای توانېدلي؟ ایا ته نه پوهېږې چي تر ټولو لرغوني او هوښیار جمهوریتونه او خلګ تر ټولو نورو متقي او پاک هم ول؟ او دغه راز ایا ته فکر نه کوي چي انسان هم کله چي پاخه سن ته ورسېږي او عقل او قضاوت ئې تر بل هر وخت پوخ او کمال ته رسېدلی وي، هله تر بل هر وخت د خدای عبادت او ستایلو ته زیات اړتیا نه لري؟

«زما ګران اریستودیموس، دا هم په پام کي ولره چي ستا عقل ستا پر بدن باندي په خپل صلاحیت او رضا سره حکم چلوي: همدا شان، موږ باید دا عقیده هم ولرو چي هلته یو

داسي ستر عقل سته چي په ټولو کايناتو کي ئې جال خور دئ، او د خپلي خوښي سره سم ټول شيان ترتيب او تنظيموي. ته بايد دا تصور و نه کړې چي ستا کمزوری نظر هغو شيانو ته رسېدلای سي چي په پېړيو ليري پراته دي، خو د خدای نظر هلته نه سي رسېدلای. ته بايد دا تصور و نه کړې چي ستا دماغ د اتن، مصر، او سيسلي پر مسايلو باندي تفکر او غور کولای سي، خو خدای په عين زمان کي پر ټولو شيانو باندي تفکر او غور نه سي کولای. ښايي ته د يوه شخص د احسان په مقابل کي د هغه سره ښه وکړې. اوس نو، که چيري ته په دې پوه سې چي د خدای لطف او مرحمت څونه ستر دئ، بيا به ته په پوره صميمت او صداقت تقوا ته مخه کړې، او د هغه عبادت به وکړې. زما ګران اريستوديموسه که چيري ته دا ټول ومنې ته به ډېر ژر په دې قانع سې چي خدای هر څه ويني، هر څه اوري، هر چيري حاضر او حضور دئ، او په عين زمان کي، د کايناتو ټول حوادث منظم او څاري».

په همدې راز بحثونو باندي سقراط خپلو ملګرو ته دا ور زده کول چي هيڅکله د هيڅ ډول بې عدالتۍ مرتکب نه سي او يا بل داسي بې ننګه کار و نه کړي، البته نه يوازی د خلګو په حضور کي، بلکي حتی يوازي او په مخفي ډول هم بد او شرارت و نه کړي. څرنګه چي خدای تل انسانان ګوري، نو بنا زموږ هيڅ عمل له هغه څخه پټ نه سي پاته کېدلای.

نور بيا ...

ليکوال: جبران خليل جبران
مترجم: احمدالله څرګند

## درې مېږيان

درې مېږيان د يوه سړي په پزه، چي لمر ته بيده وو، ننوتل. هر يوه د خپلي قبيلې په طريقه له يو بل سره روغبړ وکړ او وروسته ئې هلته باندار شروع کړ.

لومړي مېږي وويل: "ما تر اوسه داسي وچي کلکي دښتي او تپې نه دي ليدلي. ټوله ورځ مي په غله دانه پسي کتلي خو يوه مي هم نه ده موندلې".

دوهم مېږي وويل: "ما هم هيڅ شی پيدا نه کړه، که څه هم هر کونج و کنار مي پسي وکاته. زما په فکر دې ته به هم خلک هغه پسته او نرمه مځکه وايي چي هيڅ نه پر شنه کېږي".

وروسته نو درېيم مېږي خپل سر راپورته کړ او وئې ويل: "ملګرو! موږ اوس د يو غټ مېږي په پزه کي ولاړ يو، چي بيخي ډېر غټ دئ، بدنه ئې دومره لويه ده چي موږ ئې نه سو ليدلای، سايه ئې دومره پراخه ده چي موږ ئې نه سو پای کولای، ږغ ئې دومره لوړ دئ چي موږ ئې نه سو اروېدلای او هغه هر ځای حاضر وي".

کله چي درېيم مېږي خبري پای ته ورسولې، هغه نورو مېږيانو يو بل ته وکتل او وئې خندل.

په دغه وخت کي سړی، چي له خوبه وو، سره وښورېدی، خپله ګوته يې پورته کړه او خپله پزه ئې وګرول او درې سره مېږيان ئې چختاڼ کړل.

***

لیکوالان: خالد اقبال یاسر او محمد ارشد رازي



مترجم: نثاراحمد آریا

# نوبل جایزه وړونکي ادیبان

## بائیورنسن

(Bjornson Bjornstjern)

(۸ډسمبر ۱۸۳۲م-۲۶اپریل ۱۹۱۰)

**(شپږمه برخه)**

بائیورن ستایر یا بایورنسن (Bjornstjern Bjornson) ته په ۱۹۰۳م کې نوبل ادبي جایزه ورکړه سوه. که څه هم معاصر ادبیان په دې پوهېدل، چې ابسن (Ibsen) او بایورنسن په نیمه شمالي کره کې دوه سیال ستوري دي او دواړه د جایزې مستحق دي، خو بیا هم د هنریک ابسن (Henrik Ibsen) پر ځای دغه جایزه بایورنسن ته ورکړه سوه، ښایي له دې امله چې هغه ئې ډېر وړ وو، ځکه هغه د مثالیت له مخې د نوبل له وصیت سره ډېر نژدې وو. البته که چیري تر استبداد لاندې افرادو او اقوامو په حق کې د څه ویلو شرط په دې معیار کې ورزیات سي، نو په دې اړه بیا د ابسن گوشه نشیني د جایزې له پاره د نوموړي موزونیت لا کموي. په هر صورت بایورنسن نه یوازي په خپله زمانه کې، بلکې اوس هم د یو ادیب ارزښت لري. بایورنسن لومړی کس وو، چې په سکینډي نیویایانو کې ئې پر معاصرو مسایلو ریالیستیکي ډرامې ولیکلې. همدارنگه ابسن د نوموړي په پیروي (Pillars of Society) او (A Doll□s of House)غوندي ډرامې ولیکلې. دا بیا جلا خبره ده، چې نوموړی له بایورنسن څخه ډېر مخته ولاړی. همدا د بایورنسن ډرامې وې، چې په لومړي وار د سکینډي نیویا له سیمو څخه راووتې او دباندي ولوبول سوې. په المان او اسټریا کې

د هغه ډرامې خورا وستايل سوې. همدې ډرامو دابسن شهرت له پاره لار هواره کړه.
بايورنسن د شمالي ناروې د آسټرډال (Osterdal) د درې د لوړې برخې په کويکني (Kvikne)کلي کې پيدا سو. د هغه د پلار له کليسا سره سروکار وو. هغه پنځه کلن وو، چې کورنۍ ئې د هيواد مغربي برخي رامسډيلن (Ramsdalen) ته ولېږدېده. هغه منځنۍ زده کړې په اوسلو کې وکړې او بيا د ژورناليزم په ډګر ورکښېووت. له پيل څخه د نوموړي تنقيدي ليکني او لنډې کيسې د سادګۍ او نوښت له امله د خلکو د خوښي وړ وګرځېدې. د ۱۸۵۷م په مني کې د نوموړي د کيسو لومړۍ ټولګه (Symnove Solbakken) خپره سوه. د نوموړي د کيسو دغه ټولګه نه يوازې داچې د ادب په ميدان کې د نوموړي لومړی قدم وو، بلکي تر ننه پوري دغه کتاب د نوموړي په آثارو کې هغه اثر دئ، چې ډېر مينه وال لري. که دغه کتاب د هغه وخت له نورو ناروېژي (Nordic) ناولونو او لنډو کيسو سره پرتله سي، نو د دې اثر نوی انقلابي هنري سبک ښه ځرګندېدلای سي. ګومان کېږي، چې آيس لينډي داستانو، د ناروې فلکلوريکو کيسو او د هينز اينډرسن ليکنو به هم د بايورنسن پر سبک اغېز کړی وي، خو که په ځير سره وکتل سي، نو نوموړي هغه نه د زړه له تله منلي دي او نه ئې د هغو د خپلولو خواهيش کړی دئ، بلکي په دې ټولو کي تېر سوی او خپل ځانګړی انداز ئې خپل کړی دئ. د هغه پر الفاظو او د جملو پر جوړښت باندي د ناروېژي نخښي سته. البته دغه نخښي د هغه مهال له ډينشي ژبې څخه په مطلق ډول جلا، او ښېل ښکاري. بايورنسن ډېر ښخوا لا د ځان له پاره فني اصول ټاکلي ول او ويلي ئې وه، چي که يو ليکوال د خپل ځان له پاره يو انتهايي ستر منزل او هدف ونه ټاکي نو هغه به ډېر ژر لار ورکه کړي. د هغه په لنډو کيسو کي د کليوالي رومانيت ځواکمن رنګ موجود دئ. البته د نوموړي په ليکنو کي چي يو بل اړخ هم په ځرګند ډول تر سترګو کېږي، هغه په خپل عصر کي د رياليزم رواجول دي. همدا لامل دئ، چي د ده په ليکنو کي د ښکلايزم پر ځای د رياليزم د دودولو هڅه برلاسې ښکاري.
په راتلونکو څو کلونو کي د بايورنسن تخليقي هڅي پر دوو ژانرونو متمرکزي وې. نوموړي به کله د کليوالي محيط تر پوښښ لاندي کيسې ليکلې او کله به ئې داستاني ډرامې. هغه په دې نظر وو، چي دواړو ژانرونو ته په نوبت سره پاملرنه کول د تخليقي ښېرازۍ له پاره ضروري ده. نوموړي په نوبت سره په پورتنيو دواړو ژانرونو کي د ليکلو شعوري هڅه يوازي د ادبي ملاحظې له مخي نه کول بلکي د سياسي ملاحظاتو له مخي ئې هم کول. پنځوس کاله وروسته نوموړي په دې اړه وويل: "موږ دا درک کړه، چي زموږ په بزګرانو کي اوس هم د داستان ژبنی رنګ موجود دئ. ښايي دا د دې له پاره چي د دوئ ژوند له دې داستانو سره ورته والی لري. زه په دې نظر يم، چي زموږ د خلکو ژوند بايد زموږ پر تاريخ بينا وي او د دې قوم بنسټ به پر بزګرانو ولاړ وي". که د بايورنسن له نظره وګورو، نو د بزګرانو ځيني ځانګړني چي په دوی کي ډېري ځرګندي دي، همدا ځانګړني د نوموړي د کيسو پېژندنه هم ده. مثلاً په بزګرانو کي نه قابو کېدونکی ځواک، د ماجرا جويي نه

ماتېدونکې تنده، منزل ته د رسېدو له پاره د خپلو صلاحيتونو استعمال او په مستقيم ډول له مځکې څخه د رزق د اخيستو ويار د ټولنې تر نورو قشرو ډېر په دوی پکښې ليدل کېږي. همدا هغه شيان دي، چې دوی د ټولنې له نورو طبقو څخه بېلوي. د بايورنسن د دهقاني کيسو اتلان پر خپل خواک د کنټرول چم زده کوي، له مذهبي عقيدې او نورو هغو علايقو سره مينه کول چې د ده په وينه کې شامل دي، له ده سره په دې لار کې مرسته کوي. البته په داستاني ميدان کې چاپېريال ډېر بوږنونکی وي، وحشت پکښې څرګند وي او اتل له غمجن پای سره لاس او ګرېوان وي.

د کيسو تر مجموعې وروسته په همدې شاليد کې د نوموړي دوه ناولونه (Arni) او (A Happy Boy) په ترتيب سره په ۱۸۵۹م او ۱۸٦۰م کې چاپ سول. د نورو کتابو په پرتله د (Arni) مرکزي کرکټر ډېر پېچلی دئ. د خدای ورکړي استعداد او هنري طبعي څښتن آرني (Arni) د ډېر کمزورې شخصيت خاوند وي. هغه له خپل چاپېريال څخه د تېښتې بې تابه خواهش لري خو په ضمن کې د خپل محيط له څينو شيانو لکه د خپلې شاړې مځکې سره د زياتې مينې د لرلو له امله په دوه لارې کې راګير وي. د اثر هنري ځانګړنې متفاوتې دي. غنايت او رياليزم ډېر پکښې ليدل کېږي خو ليکوال په دې نه دئ، توانېدلی چې غنائيت او رياليزم ته له يو بل سره توافق ورکړي. البته د دې اثر په پرتله په (A Happy Boy) کې دغه توازن په ښه ډول ساتل سوی دئ. دغه ناول چې د نکل په شکل ليکل سوی دئ، د نوي عصر د څينو مسايلو عکاسي هم کوي.

بايورنسن په ۱۸۵۹م کال کې د ممثل، مدير، ايډيټر او سياستمدار په توګه کار وکی. هغه په برجن (Bergen) کې اوسېدی او په همدې ځای کې ئې خپله داستاني ډرامه (Lame Huld) چاپ کړه. د نوموړي دغه ډرامه تقريباً د ابسن د (The Warrior□s at Helgeland) د خپرېدو پر وخت چاپ سوه. دواړو له جلا ماخذو څخه کار واخيست، خو د بايورنسن د ښځينه مرکزي کرکټر اروايي انتشار د ابسن د ډرامې له اتلې څخه يو څه زيات دئ. د بايورنسن د ډرامې اصلي کرکټر د ډېرو داسي ځانګړتياوو څخه برخمن دئ، چې په آرني (Arni) کې ذکر سول.

د بايورنسن ستره داستاني ډرامه (Sigurd Slembe) نهايي زياته ټرايلوجي[1] ده. دغه ډرامه په ۱۸٦۲م کې د ابسن له ډرامې (The Pretenders) څخه يو کال مخکې چاپ سوه. د شلر (Schiller) غوندي بايورنسن هم دا هڅه کول، چې حال زمانه د ډرامې لازمي برخه وبولي. د نوموړي په نظر "دا يو داسي اصل دئ، چې د ټولنې هر څه پکښې پربنديږي" البته بايورنسن د شيکسپير له تخنيک څخه هم استفاده وکړه. د دې ټرايلوجۍ د دوهمي برخي يو اصلي کرکټر هيرالډ جارل (Harald Jarl) د هيملټ[2] له څينو ځانګړتياوو څخه برخمن دئ. همدارنګه د دې ډرامې مرکزي کرکټر ټوبيورن (Torbjorn) د نوموړي د بل ناول د ممتازه کرکټر آرني (Arni) غوندي دئ. د ترايلوجي مرکزي کرکټر زوړ دئ. تاند سګرډ

---

[1] ټرايلوجي: د درو هنري کارو يو داسي سيټ، چې د يوه واحد په توګه هم ګڼه ورڅه اخيستل کېږي.
[2] هيملټ: د شکسپير د ډرامې يو اتل دئ.

(Sigurd) چي د شاهي کورنۍ يو باصلاحيته غړی دئ، د خپل ياغي فطرت غلام دئ او د باطن د ماتي قوتونه ئې پر برلاسه دي. همدا وجه ده، چي نوموړی د تخت د ترلاسه کولو په هڅه کي لت خوري.
همدارنگه موږ وينو، چي هغه د کايناتي نظام د توازن ساتونکي قدرت په اړه غور او فکر کوي او ډېره کله په دې اړه حيران پاته کېږي.

د بايورنسن د سکاټ لينډ ملکه (Mary Queen of Scots) نومي ډرامه په ۱۸۶۳م کي ميدان ته راووته. په دې ډرامه کي هم د شلر او شيکسپير آغېز ليدل کېږي، خو بايورنسن د سکاټ لينډ د ملکې په اړه د شلر په ډرامه کي له موجود نظر سره توافق نه لري، ځکه د شلر د ډرامې ملکه د هيڅ ډول انساني چوکاټ سره توافق ته تياره نه ده. شلر د دې د زوال وجه د دې د ښځينه فطرت همدا اړخ بولي، خو بايورنسن د ملکې يوه اړخ ته کمزوری ډارنلې (Darnley) دروي او بل طرف ته ئې څواکمن او ضدي جان ناکس (John Knox). په دې ډول د کمزوري او څواکمن په وړاندي متفاوت عکس العمل ښوول د ملکې شخصيت په ښه ډول روښانه کوي. البته د دې ډرامې پر عوج باندي د شيکسپير اغېز څرگند دئ.
**همدارنگه د ډرامې غنايي او شاعرانه جوړښت هم د همدې حقيقت څرگندونه کوي.**

کله چي په ۱۸۶۴م کي د ډنمارک او المان تر منځ جنگ ونښتی، نو دې پېښې پر ابسن او بايورنسن دواړو باندي ژور اغېز وکی. بايورنسن په خپلو څو نظمونو کي د يو ستر څواک په وړاندي د ډنمارک پر يوازيتوب باندي خواشيني څرگنده کړه. همدارنگه نوموړي د ابسن په (Brand) نومې ليکنه کي د موجود وحشت او له تاوتريخوالي ډک چلند غندنه وکړه. بل لور ته نوموړی د ډنمارک د لوی شاعر، مورخ او د حکمت د فلسفې ماهر اين ايف ايس گرنډوگ (N.F.S Grundving) د جمهوريت او نشنلزم تبليغ هم متاثره کړ. همدا رنگه نوموړی د زغم او د مسيحيت د باطني ليد په اړه هم د گرنډوگ د نظرياتو پلوی وو. بايورنسن د دغه تاثيراتو تر اغېز لاندي (The Fisher Maiden) نومی اثر وليکی. دغه اثر په ۱۸۶۸م کي خپور سو. دا د يوې تاندي نجلۍ تازه او له رنگينيو ډکه کيسه ده. که څه هم د دې ډرامې سبک او جوړښت دواړه سرې ته د بزگري طبقې کيسې ور په يادوي، خو برعکس په دې ډرامه کي ټولنيز مسايل ډېر رياليستکي شکل لري. د کيسې مرکزي کرکټر پر ځان ويسا يوه داسي نجلۍ ده، بې له دې چي د چا پروا وركړي، سپينه خبره ورته کوي. دغه ډرامه د ۱۹ پېړۍ په درېيمه نيمايي کي په سکينډې نوايي ادب کي راتلونکي تغيرات تر بحث لاندي نيسي.

د بايورنسن په کيسو او ډرامو کي به سندري او نظمونه شامل ول. په اخبارو او مجلو کي د نوموړي اشعار د ده د مرگ تر ساعته پوري چاپېدل. په ۱۸۷۰م کي د هغه يو لوی غنايي نظم (Arnljot Gelline) او د نظمونه او سندري(Poems and Songs) په نامه شعري کليات چاپ سول. د بايورنسن غنايه شاعري ډېر اړخونه لري. د هغه شاعري برجسته وه، پر لوستونکي ئې ژر اغېز کاو، د بيان ډول ئې نوی او ساده وو، ژبه ئې تصويري او طرز ئې بېل وو. همدا هغه څه ول، چي د نوموړي شاعري ئې په زړه پوري کړې وه. د موضوع او جوړښت دواړو له مخي د ده شاعري رنگينه وه. که له يوه اړخه

د ده په شاعري کي د ميني نظمونه ليدل کېږي نو په بل اړخ کي ئې په منظوم ډول د فطرت رنګيني هم بيان کړي دي. د هغه په اشعارو کي تاريخي مدحي هم پکښي پيدا کېږي او له وطن سره د ميني ترانې هم. د ناروې ملي سرود د نومړي له يوې سندري (Norway Thine is our Devotion) څخه جوړ سوی دئ. په شاعري کي هغه په خورا کمال سره خپل کار ترسره کړی دئ. هغه د خپلو معاصرينو په ياد کي نظمونه وليکل او هغوی ته ئې منظوم درناوی وړاندي کی. د هغه اولنۍ سندري پر دهقاني کيسو ولاړي وې. د دې کيسو چاپېريال له نازکيو او رنګينيو ډک دئ. له ۱۸۶۰م څخه وروسته د نومړي پر ليکنو کلاسيکيزم غالبه سو. د دې اثارو ماهيئت ډېر قوي او دلچسپه دئ. د ده ډېر غنايي شعرونه په اساني موسيقۍ ته لوېدلای سي. د نومړي ډېرو نظمونو يوازي په ناروې کي نه بلکي په ډنمارک کي هم ملي بڼه غوره کړه. همدارنګه تر يو بريده په نورو ناروېژي (Nordic) هيوادو کي هم د ده د مقبوليت همدا حال دئ او په دې کي خو شک نسته چي موسيقي پوهانو د نومړي پرته د بل هيڅ ناروېژي شاعر شعرونو ته دونده ډېر کمپوزونه نه دي جوړ کړي.

بايورنسن په تياتر کي عملي کار هم وکی. د ۱۹ پېړۍ په شپږمه لسيزه کي هغه د تياتر د مدير، ايډيټر او فعال سياستمدار په حيث مشهوره سو. د نومړي د ژوند راتلونکي لس کلونه په ډېره ناامني کي تېر سول. په ځانګړي ډول د ګرنډو د تدفين پر مهال د بايورنسن له تبصرې څخه را زېږېدلي جګړې خورا ترخې پايلي ودرلودې. هغه له خپلو ډنمارکي ملګرو څخه غوښتي

ول، چي د المانيانو سره د مفاهمې لار پيدا کړي. هغه په دې ښه پوهېدی، چي بهرنی اړودوړ په غير مستقيم ډول د ده پر شاعري ښه اغېز کوي. البته ځيني وختونه همدې سياسي سرګرميو د نومړي ټوله ځواک له منځه وړی او هغه ئې دې ته مجبوره کاوه، چي د ليکني له پاره د يو پرسکونه ځای په لټه باندني هيواد ته ولاړ سي.

بايورنسن له ډېره وخته غوښتل، چي يوه معاصره بورژوايي ډرامه وليکي. په ۱۸۶۳م کي چي کله نومړي په پاريس کي استوګنه غوره کړه، نو دا غوښتنه ئې په زړه کي لا غښتلې سوه. آخير هغه وو، چي په ۱۸۶۵م کي ئې د (The Newly Married Couple) په نامه پر بورژوايي مسايلو ليکلې ډرامه خپره سوه. دا په ناروېژي ژبه کي لومړنۍ داسي ډرامه وه. همدا رنګه د نومړي بله بورژوايي ډرامه شاوخوا لس کاله وروسته ميدان ته راووته.

په ۱۸۷۲م کي نومړي يو ځل بيا دهقاني داستانو ته مخه کړه او په دې برخه کي ئې د (The Bridal Dance) په نامه اثر وليکی. له دې وروسته د نومړي بل هنري اثر د (Sigurd Jorsalfar) په نامه داستاني ډرامه وه. په دې ټولو کي يو هم د نومړي شاهکار اثر نه وو. په ۱۸۷۳م کي هغه روم ته ولاړ او دوه کاله هلته پاته سو. په دې موده کي هغه (The Bankrupt) او (The Editor) په نامه ډرامې وليکلې. دغه دواړي ډرامې په لومړي ځل د مال په يوه ګودام کي ولوبول سوې او په همدې کال چاپ سوې. له همدې دوو ډرامو څخه په ناروېژي هيوادونو کي په رياليستيک ډول پر معاصرو مسايلو د ډرامې ليکلو شروع وسوه. (The

(Bankrupt ډرامه ئې په نړیواله کچه مشهوره سوه. جارج برینډز (George Brandes) د ې ډرامې د هنریت په اړه په خورا صداقت سره وویل: "دغې ډرامې د معاصري ډرامې او ریالیزم ستر مقام گټلی دئ"

که څه هم پر دې اثارو د فرانسوي ادبیاتو اغېز موجود دئ، خو بایورنسن دا آثار په خپل رنگ رنگولي دي. د (The Bankrupt) موضوع د کاروباري اخلاقو پر پېچلې موضوع راڅرخي. د بایورنسن د ډېرو نورو ډرامو په څېر دغه ډرامه هم له خورا جوش او خروشه ډکه ده. د یوه سیاستمدار په توگه نوموړي په خپله یوه بله ډرامه (The Editor) کي په سیاست کي د اخلاقي رسالت پر اړتیا بحث کړی دئ. د نوموړي دغه ډرامه د موضوع او پلاټ له مخي ډېره نادره ده. دغه ډرامه ټوله د لیکوال خپل خیال دئ، خو د کرکټر لیکني او پلاټ له مخي دغه ډرامه د هغه د نورو ډرامو غوندي بریالۍ نه ده.

په ۱۸۷۵م کي د نوموړي یوه بله ډرامه د (Captain Mansana) په نامه خپره سوه. د دې ډرامې مکان ایټالیا ده خو مرکزي خیال ئې دهقاني ډرامو ته ورته دئ. په دغه ډرامه کي د (Captain Mansana) د زوال لاملونه د ټولني هغه ناسم او غیر فطري حالت بلل سوی، چي د ټولني او انسان ذهن ئې ناپاکه کړی دئ. د نوموړي بله ډرامه (The King) پر سیاسي او ټولنیزو خرافاتو راڅرخي. د دې ډرامې ځیني برخي پر ریالیزم، ځیني برخي ئې پر سمبولیزم او ځیني هم پر ابهامو مشتملي دي. دغه ډرامه ټوله پر چیلنج ولاړه ده. باچاهي نظام ننگوي، د کلیسا ریاستي نظام ننگوي او د فوج واک ننگوي.

په ۱۸۷۷م کي د بایورنسن یو ناول د (Magnhild) په نامه چاپ سو. د ریالیزم د مکتب له رویه دا د لیکوال تر ټولو ستر ناول بلل کېږي. په دې ناول کي هغه د گډ ژوند پر مسایلو بحث کوي. په ناول کي هغه د یو سنتي ناکامه گډ ژوند انځورکشي کوي او په نتیجه کي ئې دا روښانه کوي، چي تر داسي گډ ژوند بېلوالی ښه دئ. په دې ناول کي د بزگرانو په اړه هم د نوموړي په فکر کي تغیر راغلی دئ. د دوئ په اړه د نوموړي په تنقیدي نظر کي یو څه سختوالی راغلی دئ. همدارنگه مخکي نوموړي داسي فکر کاوه، چي د سیاسي او روشنفکره ازادۍ له پاره باید مسیحیت د یو ځواک په ډول کار وکړي، خو په دې اړه د کلیسا دریځ هغه له مایوسۍ سره مخ کی. له ۱۸۷۷م څخه تر ۱۸۷۹م پوري هغه د ډارون ټول آثار له سره وکتل او علاوه پر دې ئې د جان سټیورټ مل او پر بایبل باندي دارنسټ ري نان (Ernest Renan) او وکټر رډ برگ (Viktor Rydberg) تنقیدي لیکني هم مطالعه کولې. که څه هم پر دې هرڅه سربېره بیا هم هغه یو مذهبي شخص پاته سو او په عقیده کي ئې خلل پیدا نه سو، خو لږ تر لږه ئې دونده وکړل، چي عیسوي مذهبي عقایدو ته ئې له سره نوی تعبیر ورکی او همدا هغه څه ول، چي په ټولنه کي ئې د نوموړي په وړاندي د تاوتریخوالي توپان وزېږاوه. په ۱۸۷۹م کي چي د نوموړي کومه ډرامه خپره سوه، د هغې ځیني برخي د همدې تجربې څرگندونه کوي. که څه هم د دې ډرامې مرکزي کیسه د ربل گاډۍ د تعمیر پر مسایلو راڅرخي، خو په اصل کي موضوع پر زړې او نوي اصلاح غوښتني، د حقیقت له پاره د ځوانۍ پر تلوسې،

ارتجاعيت پسندۍ او د شاهي نظام پر اختياراتو بحث کوي. په همدې کال بايورنسن د يوې بلې ډرامې ليو نارډا (Leonarda) له لارې د واده او طلاق پر موضوع بحث وکړ. په دې ډرامه کې هغه داسې ښيي، چې په ظاهره يو بې دينه کس د واده او طلاق په موضوع کې تر يو بشپ (Bishop) [۳] ډېر اخلاقي معيارونه مراعتوي. که څه هم دغه ډرامې په ظاهره د خوشحالۍ د ترلاسه کولو له پاره د وخت د ضرورت پر اساس د طلاق پر پلويتوب فشار راوړي، خو د دې تر څنګ د ځان پر ثبات او د ځان له پاره د حدودو پر ټاکلو هم ټينګار کوي. په ۱۸۸۳م کې د بايورنسن يوه بله ډرامه د (A Gauntlet) په نامه خپره سوه. د دې ډرامې د يوه ښځينه کرکټر سواوا (Svava) په توسط هغه له نارينه وو څخه غوښتنه کوي، چې دوی هم بايد په خپلو ځانو کې هغه سپېڅلتيا او پاکي ښکاره کړي، چې نارينه ئې له ښځو څخه غوښتنه کوي. د دې ډرامې د خپرېدو له امله بايورنسن د مذهبي کړيو تر څنګ د مترقيانو او د ښځي او نر د آزادانه اړيکو د پلويانو تر نيوکو او ګذارونو لاندې راغی. په ۱۸۸۲م کې د هغه يوه کيسه د (Dust) په نامه خپره سوې وه. په دې کيسه کې هم هغه خپله مذهبي عقيده څرګنده کړې وه. په ياده کيسه کې هغه د دې خبرې د ثابتولو هڅه کړې وه، چې خلکو ته په مورثي ډول پاته سوي مذهبي افکار څنګه هغوی د ژوند کولو له وړتيا باسي. په ۱۸۸۳م کې د هغه يوه بله خپره سوې ډرامه (Beyond Our Power) هم پر همدې موضوع بحث کوي. دا د نوموړي تر ټولو

جامع او په فکري لحاظ تر ټولو غښتلې ډرامه ګڼل کېږي. د دې ډرامې مرکزي کرکټر د سينګ (Sang) په نامه يو پادري دئ. که څه هم د نوموړي د نورو ډرامو غوندي دغه ډرامه هم له تمايله ډکه وه، خو د دې مرکزي کرکټر له دې لحاظه له نورو څخه مختلف دئ، چې د نوموړي زهد او تقوا ډېره ښکاره او خيراتونه ډېر دي. د هغه ټول احساسات په مذهب پوري تړلي وي. هغه د خپل ايمان د پوخوالي له پاره د يوې معجزې په تمه وي، خو داچي هم د ده معجزه خپله د ده له پاره او هم د عيسوي مذهب څرنګوالی د انسان تر سويې لوړ وي، نو د نوموړي دغه عقيده خپله هغه له ماتي سره مخامخ کوي او مايوسي هغه د مرګ کندي ته ټېل وهي. بايورنسن په ډېر برياليتوب سره د دې ډرامې مرکزي خيال د يوې رياليستيکي معاصري ډرامې په بنه وړاندي کړی دئ. که څه هم د دې ډرامې پلاټ خيالي دئ، خو په ناروېژي چاپېريال کي رياليستيکي بڼي ته نژدې کېږي او په ځانګړي ډول د کرکټرونو تخليق ئې ارزښت لا ور زياتوي. د ډرامې اوضاع د شک او ايمان، هيلي او اندېښنې، جديت او طنز تر منځ ټالونه وهي. ډرامه قدم په قدم انسان د بېري او سابندۍ حالت ته نژدې کوي او د هرڅه د پېښېدو امکان ممکنه کوي. بايورنسن په دې ډرامه کې يو ځل بيا د عوامو سنتي عقايد ونګول. دغه ډرامه په ۱۸۹۹م کې په لومړي وار ولوبول سوه. بايورنسن تر عقيدوي موضوعاتو وروسته يو ځل بيا اخلاقي مسايلو ته راوګرځېدی. په ۱۸۸۴م کې د هغه يوه بله ډرامه د (The Heritage of the Kurts) په نامه چاپ سوه. په دې ډرامه کې د يوې کورنۍ حال را اخيستل سوی دئ او د فرد او ټولنې پر

[۳] بشپ: لوی پادري يا د عيسوي دين مجتهد.

اخلاقي رسالت باندي د جينياتو[۴] او ارتقاء په رڼا کي بحث پکښې سوی دئ. په ۱۸۸۹م کي د هغه ناول (In God's Way) چاپ سو. په ناول کي دوه ملګري پر يوه مذهبي موضوع په خورا ترخه بحث سره اخته کېږي. دواړه د خپلو تجربو له رويه دلايل وړاندي کوي. دغه بحث دوی ته په ځانګړي ډول پادري ته خورا ګران تماميږي. هغه په دې برخه کي ډېر احساساتي وي او خپله دا عقيده هم ډېره پر ګرانه وي، چي د ښو خلکو لار د خدای لار ده. که څه هم د ناول ماحول ډېر خسته کنه وي، خو بايورنسن د کرکټر ليکني په بېمثاله استعداد او طنز سره لوستونکی له ځان سره ملګری کوي.

د نونسمي پېړۍ په اتمه لسيزه کي له سياست سره د بايورنسن مينه او دلچسپي خپل عوج ته ورسېده. د ناروې لبرال ګوند په دغه هيواد کي د پارلماني نظام له پاره په مبارزه بوخت وو. همدارنګه دوی دا هم غوښتل، چي سويډنيان بايد په ناروېژي اتحاد کي د ناروې خپلواکۍ ته پراختيا ورکړي.

بايورنسن د همدې ګوند پلوی وو. له ۱۸۹۰م څخه وروسته د ناروېژي اتحاد په اړه د نوموړي په افکارو کي سوړوالی راغی او هغه د سولي له پاره د دريمګړي په توګه او په جګړه کي د بندو خلکو د خلاصون له پاره کار شروع کی. په دې مبارزه کي نوموړي د افرادو او اقوامو دواړو له پاره کار کاوه. د مثال په ډول هغه له يوه لوري د الفريډ ډريفس (Alfred Dreyfus) ټينګ ملاتړ وکی. همدارنګه داچي د صنعتي پرمختګ سره، سره ټولنيزي ستونزي په ډېرېدو وې، نو هغه د دې ستونزو د حل په لټه کي هم وو. سره له دې چي هغه ځان سوشلسټ معرفي کړی وو، خو بيا هم هغه په دې باور وو، چي طبقاتي جنګ له سوليزي لاري پای ته رسېدلای سي.

لکه څنګه چي بايورنسن په خپله ډرامه (The Editor) کي د سياسيونو سر زوره او سخت چلند په ډاګه کړی وو، همدا رنګه په خپلو دوو نورو آثارو (Sigurd Slembe) او (Mary Queen of Scots) کي هغه د کمزورو او مفعولو کسانو کرکټرونه په ډېر ماهرانه ډول وړاندي کړي وه. په ۱۸۹۸م کي د هغه يو بل اثر د (Paul Lange and Tora Parsberg) په نامه خپور سو. دغه اثر د نونسمي پېړۍ په اتمه لسيزه کي د رامنځ ته سوو، پېښو پر اساس کښل سوی وو. د دې اثر مرکزي کرکټر د يو حساس خوی مالک وي. له همدې امله هغه ټولنيزي بې انصافۍ درک کوي او د دغه بې انصافيو د له منځه وړلو په هڅه کي وي، خو حاکم خسته کنه سياسي چاپېريال هغه له مايوسه کوي. حتی يوه ډېره هوښياره او جذابه ښځه هم هغه له دې نهيلۍ څخه نه سي را ايستلای.

د بايورنسن د وروستيو کلونو له ډرامو څخه دوې د يادوني وړ دي. له دې ډرامو څخه لومړۍ ډرامه (Daglannet) په ۱۹۰۴م کي چاپ سوه. دغه ډرامه پر نسلي

[۴] جينيات: دغه توری په اردو قاموسونو کي ما (ژباړن) په عيني شکل پيدا نه کی. زما په فکر په دغه جمله کي ښايي لاندي تعبير ولري:
که چيري دغه توری د جين توري جمع وبولو، نو د کتاب د ليکوالو هدف به ورڅخه د جين مذهب فلسفه وي. د دغه مذهب ابتدا ۵۰۰ کاله مخکي تر ميلاد له هند څخه سوې ده.

خلا[5] (Generation Gap) او له صنعت څخه پر پیدا سویو ستونزو بحث کوي. په ۱۹۱۹م کې د نوموړي دوهمه ډرامه (When the New Wines Blossom) چاپ سوه. له دې ډرامې څخه داسې ښکاري، چې د دغه اتیا کلن شاعر لا هم پر ژوند باندې پوره باور سته. همدارنګه د ابسن د تراژیدک نظم (When we Dead Awaken) برعکس هغه په خپل وروستي بشپړ نظم کې پر انسانیت خپل باور څرګند کې. د نوموړي دغه باور د هغه د یوه بل نظم له سرلیک (Good Deeds save the World) څخه هم ښه څرګندیږي. هغه غوښتل، چې خپل دغه نظم له مرګ څخه مخکې پوره کړي، خو ژوند یاري ورسره ونه کړه.

په ادبي ډګر کې د بایورنسن شخصیت له څو اړخو څخه د ارزښت وړ دئ. نوموړی نه یوازې دا چې یو پوخ ادیب وو، بلکې په غنايي شاعري او ډرامو کې ئې نوي لاري هم رامنځ ته کړې. د ناروې او نورو سکینډي نیویايي هیوادو ډېرو ادیبانو له بایورنسن څخه د فیض اخیستو برملا یادونه کړې ده. په دې کسانو کې د ناروې کانټ هیمسن (Kunt Hamsun)، د سویډن سلیما لاګرلوف (Salma Lagerlof) او د ډنمارک جوهانزوي جینسن (Johannes V. Jensen) په نړۍ واله کچه مشهور ادیبان دي. د نوموړي څو آثار په نورو اروپايي ژبو ترجمه سوي دي. هغه د المان او څو نورو سلاوي ملیتو پر ادب باندې نه پاکېدونکې نخښې پرې ایښې دي.

د بایورنسن ژوند او آثار د نوموړي د هیواد له سیاسي او ټولنیز تاریخ سره ژوري اړیکي لري. د نوموړي د ژوند زمانه د تغیر او نوښت زمانه وه، ځکه له یوه لوري ناروې له ذراعتي ټولنې څخه صنعتي ټولنې ته د اوښتو کوټلي ګامونه اخیستل، بل لور ته د شاهي نظام پر ځای ولسواکي را روانه وه او همدارنګه د نوموړي هیواد له ګاونډیو هیوادو سره د سیالۍ په هڅه کې وو. هغه په دې پوهېدی، چې ملي خپلواکي، ټولنیزه او کلتوري روشنفکري او د ولسواکۍ سیاست د یوې موضوع څو اړخونه دي. هغه په خپلو آثارو او سیاسي فعالیتو کې یوازې د بزګري طبقې استازیتوب نه کاوه، بلکې نوموړي د خپلې ټولنې د کمزورو او رټل سویو ښځو او کارګري طبقې ږغ هم پورته کی. هغه د ټولو له پاره د رایي حق وغوښت. د ښځو له پاره ئې صنعتي مساوات او په ټولو کارونو کې د هغوی ګډون حق وغوښت. همدارنګه ئې د دوی له پاره په اسانه ډول د طلاق د اخیستو حق هم وغوښت. نوموړي پر دې ټینګار کاوه، چې د بحث له پاره باید هیڅ نوعه موضوع منع نه وي. په عمومي ډول هغه په مذهبي، شاهي او جنسیاتي مسایلو کې تر هرچا لوړی ږغ پورته کاوه. بایورنسن د بیان د آزادۍ له پاره هم تر هرچا زیات کار وکی. هغه که له یوې خوا د خپل هیواد د خپلواکۍ له پاره مبارزه وکړه، نو له بل لوري ئې د هغو خلکو ږغ هم پورته کی، چې د خپلو کوچنیو ملتو له پاره په سفارتي او سیاسي مبارزه بوخت ول. همدارنګه نوموړي د بین المللي دریمګرۍ، د وسلو د تخفیف او سولې له پاره هم کار وکی.

نور بیا ...

[5] نسلي خلا (Generation Gap): د لویانو او ځوانانو تر منځ هغه اختلافي کړه وړه، چې په نتیجه کې ئې د دغو دوو نسلونو تر منځ د افهام او تفهیم خلا رامنځ ته کېږي او یو د بل په خوی او طبیعت سم نه سره پوهیږي.

# اغېزه ناکه مذاکره

## د مذاکرې خاصي نقطې وپېژنئ
## دوه اړخيزه ګټونکي حالتونه وپېژنئ
## اجنډا جوړول او د مقابل لور اجنډاوو ته جوابونه

ليکوال: کين لاسن، ايم. اې، اي ډي. ايم
ژباړه: **سعيد لودين/ کاناډا**
(څلرمه برخه)



### د ګمانونو په اړه فکر کول

د پوښتنو کولو څخه مراد دا دئ چي هيڅکله هم دا ګومان و نه کړئ چي تاسي ته دا معلومه ده چي ستاسو د حريف غوښتني او ضرورتونه څه شي دي بلکي په حقيقت کي ګومان کول د يوې کاميابې مذاکرې تر ټولو غټ دښمن دئ.

ګومانونه يعني له يوې موضوع سره قياسي او فرضي برخورد کول دي نه د حقيقتونو په رڼا کي او په داسي يوه حالت کي نو ډېره اسانه وي چي په يوه نه په يوه لومه کي ئې بند سی.

ته به ښايي دا اټکل وکړای سې چي ستا د حريف موقف او ګټي څه شي دي خو دا تر هغه وخته نه ده ممکنه تر څو د هغه ګټي مو په بشپړه توګه نه وي سپړلي. اکثره مذاکرې د غلطو ګومانونو په کولو سره ناکامو پايلو ته رسېږي. د دې يو ښه مثال زموږ په ورځني ژوند کي هم سته. د کوڅې هوښيار کوچنی شي ته هيڅکله هم په عادي نظر نه ګوري او په پټو سترګو ئې نه اخلي، هيڅکله هم دا فکر نه کوي چي له هر چا سره چي مخامخ سي هغه به ئې دوست وي حتی که يو څوک په ورين تندي لا هم خبري ور سره وکړي. برعکس کوچنی پر خپلي تجربې او حقيقتونو باندي قضاوت کوي او بيا فيصله کوي. لاندي د پوښتنو هغه لست دئ چي همدا کوچنی به ئې په دغسي حالاتو کي له ځان څخه کوي:

۱. دا سړی زما سره څنګه برخورد کوي؟
۲. دی څه شي وايي؟
۳. د سړي ظاهري چمونه ما ته څه شي وايي؟
۴. ایا د تېښتي په حالت کي زه د تېښتي یوه چټکه لار لرم؟
۵. ایا زه داسي کولای سم چي بې له تېښتي هم هغه سړی له ځان څخه پر شا کړم؟

په مذاکره کي باید ستا تاکتیک د همدې کوچني د کړو په څېر وي په تېره چي بیا د یوه پېژندلي او زاړه حریف سره مخامخ یاست. په دې غلط فهمۍ کي لوېدل ډېراسانه وي چي څه د حریف ګټي او حالت مي هیڅکله نه بدلېږي. خو داسي نه ده هغوی اکثره بدلېږي. شاید په مذاکره کي د هغه (حریف) رول بدل سوی وي او یا کېدلای سي چي صلاحیتونه ئې تر پخوا ډېر سوي وي. ته ښایي دا ګومان وکړې چي حریف مي زما قومي دئ نو په دې پوه یم چي څنګه رویه به راسره وکړي او یا برعکس ښایي ته په داسي یوه غلط فکر یې چي حریف مي په سن او قوم کي زما څخه جدا دئ نو داسي څه به نه وي چي زموږ تر منځ دي سره ورته وي.

ماهر مذاکره کوونکي د غلطو ګمانونو د مخنیوي له پاره دوه کاره کوي، هم و مذاکرې ته په تیاري کي او هم د مذاکرې په جریان کي.

پوښته وکه د دې پر ځای چي ورته ووایې.

د دې له پاره چي پر مذاکره ئې لاس بری پیدا کړی وي، ډېری خلک خپل حریف ته قصداً خپلي ګټي او موقفونه ورښیي او دا په دې خاطر چي اصلي هدف ته ځان لومړی ورسوي. وروسته بیا ټینګار هم پر کوي چي همدا نقطه د مذاکرې د پیلېدلو صحیح او لومړی نقطه ده. ماهر مذاکره کوونکي داسي نه کوي. برعکس هغوی پوښتني کوي او دا و ځانو ته معلوموي چي کومو پایلو ته چي دوی د هغو معلوماتو په واسطه رسېدلي ول چي د مذاکرې ترمخه ئې د خپل حریف په اړه راټول کړي ول ایا صحیح دي که غلط؟

## واوره!

تر پوښتنو وروسته ماهر مذاکره کوونکي د جوابونو و اورېدلو ته خاصه توجه کوي او دې ته یې پام اړولی وي چي په څه ډول جوابونه ورکړل سول او څه وویل سول. دې ته زیاتره وخت "په غور اورېدل" وایي، دا یعني هر څه چي مو اورېدلي دي له ځان سره ئې په تحلیلي ډول وڅېړئ لکه:

د دې اصلي مطلب څه شي وو؟ په دې جوابونو کي زما له پاره ګټور او رازداره څه شي ول؟

## کتل!

د جوابونو ورکولو په وخت کي د حریف د ظاهري چمونو سمه ترجماني کول به د هغه د اصلي ګټو د معلوموماتو څرک په لاس درکړي. په لنډه توګه، و درکړل سوو جوابونو ته ډېر

متوجه اوسي. دا به بې ګټې وي چې د ملايمو سوالونو په پيداکولو کې ستاسو څخه د
درکړل سوو جوابونو تعبير او تفسير ورک سوی وي.

"د ادراکونو په اړه فکر کول"

ادراکونه د ګومانونو سره تر يوه سايوان لاندي راځي، خو د دوی (ادراکونو) کار د احساساتو تر بريده دئ. ادراکونه په ذهن کي پيدا کېږي او هغه وخت په يوه مشکل بدلېږي چې هيڅ عيني معلومات او يا حقيقت ئې د ردولو تر عهدې و نه وزي. دا يعني له ادراکونو سره بايد د دوی په خپله دايره کي برخورد وسي.

## بې تجربې مذاکره کوونکي اکثره!

**۱/صرف د خپل بحث مهمي نقطې ويني او ارزښت ورکوي:**

دا يو ډېر قوي احساس وي او همدا قوي احساس لرونکي خلک هغه څه غواړي ووينې چې دوی ئې ليدل غواړي او ډېره توجه پر هغو موضوعاتو باندي کوي چې د دوی په اند معقولي او ضروري وي. د خطرې شی دلته دا دئ چې د خلکو مشاهده په خلکو باندي دا فکر کوي چې د دوی موضوعات د توجه مستحق دي او د دوی د حريف دا بې ارزښته او بې معنا او بايد چې له مخه ليري سي. کله چې همدا خلک په دې پوه سي چې د دوی حريف بيخي بل ډول فکر کوي او هيڅ هم ورسره همنظره نه دئ

نو بيا دفاعي حالت غور کړي او د ځان دفاع شروع کړي.

**۲/ بد ګوماني کوي:**

دا د اټکل او درک کوونکو يو عام مشکل دئ. نوموړي مذاکره کوونکي دا فکر کړی وي چي د ده حريف د يوې غيرعادلانه جوړي غوښتونکی دئ. ده په خپله ځان ته قناعت ورکړی وي چې مقابل لوړ به د خپلې دې غير عادلانه غوښتنې له پاره کار کوي، دا که ئې قصداً کوي او يا غيرقصدي. داسي درک کول څوک صرف و دېواله ته دروي.

**۳/ پړه اوملامتيا کاروي:**

کله چې هر څه د تمي خلاف سي نو مذاکره کوونکي ښايي ملامتيا خپل و مقصد ته د رسېدلو له پاره وکاروي. مقابل لور چې په دې ښه پوهېږي چې د هر څه مسئوله به دوی وبلل سي، ګرسره له مسئوليت څخه انکار کوي. په لنډه توګه، بې تجربې مذاکره کوونکي به په خپل ټول قوت سره پر مقابل لور پړه او ملامتيا ور واړوي او په دې سره به مقابل لور دفاعي حالت غوره کړي او نور به هم سرسخته سي. په داسي يوه حالت کي نو و جوړي ته د رسېدلو يوه لار هم پاته نه سوه.

## برعکس ماهر مذاکره کوونکی په عمومي ډول:

**۱/ د خپل حريف نقطه نظر ورمعلوم وي:**

دا يعني نه يوازي دا چې ورمعلومه وي او قدر يې ولري چې دلته د دوو نظرونو توپير موجود دئ بلکي د خپل حريف موقف ئې هم په رښتيا احساس کړی وي. يو مذاکره کوونکی تر هغو د خپل حريف په نقطه نظر نه سي

پوهېدلای تر څو دغسي همدردي ئې ورسره نه وي.

**۲/ په دې پوهېږي چي تر هغو پر نورو نفوذ نه سي پیدا کولای تر څو له هغوی سره همدردي و نه کړي:**

پر خلکو باندي د اغېزې لرلو چټکه لار دا ده چي هغوی ته دا ښکاره کړه سي چي تاسو ئې د احساساتو قدر لرئ. په دغه ډول ماهر مذاکره کوونکی کولای سي چي مذاکره په خپله خوښه رهبري کړای سي.

**۳/ درک او مشاهدې ته په غېږ ورځي:**

دا دا معنا نه چي ګواکي مذاکره کوونکی دي د خپل حریف سره مخالفت وکړي او راچپه دي ئې کړي بلکي د دې څخه مراد د یوه داسي روک او په ډانګ پېیلي بحث درلودل دي چي په هغه کي دواړي خواوي دا سره روښانه کړي چي کوم غلط ګومانونه باید له منځه لیري سي. په دې کار سره به دا ښودل سوې وي چي دواړي خواوي یو و بل ته په جدي توګه توجه کوي او د یوه و بل و هیلو او ستونزو ته په سپکه سترګه نه ګوري او مهمي ئې ګڼي.

**۴/ حیرانتیا په کار اچوي:**

د مقابل لور د غلطو ګومانونو به بدلولو کي تر ټولو اغېزمنه طریقه دا ده چي مذاکره کوونکی دي دخپل حریف د توقع خلاف کړنه وکړي. که ستاسو حریف ستاسي څخه د نه همکارۍ توقع لري نو دا ورته ښکاره کړئ چي د ده د غوښتنو په پوره کولو کي څنګه مرسته ورسره کولای سئ. که مو په پخوا کي مخالفت ورسره کړی وي نو دا ورته ښکاره کړئ چي ښه اړیکی هم ورسره لرلای سی.

**۵/ خپل حریف د مذاکرې د قرارداد په جوړولو کي شاملوي:**

اکثره مذاکره کوونکي خپل حریف ته داسي جوړ سوی د مذاکرې پلان وړاندي کړي چي ټول شیان ئې په خپله ګټه وي او ډېر لږ امتیاز ئې صرف په دې خاطر حریف ته ورکړي وي چي دی (مذاکره کوونکی) ښه په وایسي. ماهر مذاکره کوونکي به په عمر داسي څه و نه کړي. د قراردادونو او تجویزونو په جوړولو کي و مقابل لور ته د شاملېدلو سرلوړی ورکول به اتومات مقابل لور تاسو د ځان کړی وي. دا پروسه ښایي اوږده او ډېره د مقابل لور په ګټه وي خو کوښښ کول ئې په ارزي. لکه څنګه چي مو د کتاب په سر کي ویلي ول. مذاکره یو جریان دئ نه نتیجه.

نور بیا ...

لیکوال: جبران خلیل جبران
مترجم: احمدالله څر ګند

## ګیدړه

سهار پر لمر خاته یوې ګیدړې خپلې سایې ته وکتل او ویې ویل: "نن، په غرمنۍ کي به یو اوښ وخورم".

ټوله ورځ ئې په اوښ پسي وکتل خو پیدا ئې نه کړ. غرمه ئې بیا خپله سایه ولیده او ویې ویل: "موږ ک هم بسنه کوي".

***

(۳)

# د کابل پېغله

(په زړه پوري اسلامي تاریخي ناول)

لیکوال: اسلامي مؤرخ: صادق حسین صدیقي
ژباړن: ډاکټر نثار احمد صمد/کاناډا

## خلاصون

ارشد د خپلې پوځي قوې سره د جبل سراج څخه روان سو او د کوهدامن وادي ته ورسېد. دا وادي ډېره ښایسته، تازه او شنه وه. پر هره لوېشت آن ذره ذره ئې شنه څپه خپره وه. قدرت په دې وادي کي داسي ښکلي منظرې پیدا کړي وې چي د انسان زړه ئې ځانته کشاوه او په لیدو ئې نه مړېدی.

په دې وادي کي لږ خلک اوسېدل. ځای ځای به کلي او کورونه معلومېدل. په دغو کلیو کي لږ کورونه آباد ول او خورا لږ کلیوال پکښې اوسېدل. دغو خلکو د هینجي او وړیو کاروبار کاوه (هینجه یو بد بویه نبات دئ چي هندیان ئې د کولمو د چنجیانو اونورو پارازیتونو پر ضد د خوړو دېګ ته اچوي -ژباړن). دغو خلکو د پسونو او بزو لویې رمې لرلې.

د دې سیمي د ټولو کلیو اوسېدونکو د بچۀ سقاو سره سر ښوراوه. هغه دوی هیڅ نه لوټول او نه ئې کوم تېری پر کاوه. دغو خلکو د بچه سقاو سره ډېره مرسته کوله. کله چي به کارتوس ختمېدل، یا به توپکونو او توپنچو ته اړتیا پېښېده، نو دغو کلیوالو به د بچه سقاو له پاره رانیول او هغوی ته به ئې ورکول.

بچه سقاو د غلا څخه ډېر مال او شیان تر لاسه کول. هغه به جنګي سامان او مهمات په ډېره بیه له دوی څخه رانیول. دا خلک له افغان حکومت څخه هیڅ نه بېرېدل. علت ئې دا وو چي امیر امان الله خان فطرتاً ډېر نېک، خورا زړه سوېه او سخت هیواد پال انسان وو. هغه امر کړی وو چي د حکومت پرسونل به هیڅوک هم نه زهیروي. خو د قانون سرغړوونکو او پایمالوونکو ته ئې ضرور سزا ورکوله. د امیر د دې نرمښت او زړه سواندی څخه خلکو بده استفاده کول او څه نا څه سرکښه سوي ول.

کله چي ارشد او پوځیان ئې د کوهدامن وادي ته راورسېدل، نو کلیوالو ئې هیڅ هر کلی و نه کړ. هر چا به په یو سطحي نظر ورته کتل او مخ به ئې اړاوه او خپل کار ته به ئې دوام ورکاوه. ارشد ولیدل چي هر ځای کلیوال د وړیو لویې لویې کوټي او خرې اړوي را اړوي. دا څکه چي هغوی اصلاً وړی وچولې . دغو کلیوالو ګردي پرتوګونه، اوږده کمیسونه او د هغو له پاسه کرتۍ اغوستي وې. تقریباً ټولو کسانو څوني لرلې. دغو خلګو د خپلو وښتانو ډېره ساتنه او پالنه کول. هر سړي به په جېب کي یوه ږمونځ حتماً لرله. هغوی چي به کله د خپلو کارونو څخه خلاصېدل، نو ډېر ژر به ئې مخ او لاسونه پرېولل او د سر او ږیري په ږمونځولو به

بوختېدل.

ارشد په دې سیمه کې ډېر په غلو پسې وګرځېد مګر پیدا ئې نه کړل. هغه د دې هر څه سره سره د دغو بې پروا او ناځوانه افغانانو څخه د بچه سقاو په باره کې هیڅ پوښتنه هم و نه کړه. دا ځکه چې هغه پوهېدی چې که دغو خلکو ته بچه سقاو معلوم هم وي، قطعاً به ئې څرک په لاس ورنه کړي.

هیڅ کوم حکومت هم تر هغه وخته نه سي ټینګ او کامیابه کېدای څو چې د عوامو خواخوږي او همکاري ئې نه وي خپله کړې. که حکومت ظلم او تشدد راپیل کړي او د توري په زور باداري وکړي، نو ډېر ژر به تباه او له منځه ولاړ سي. تاریخ د دې ترخه حقیقت شاهد دئ چې که حکومت یا کوم واکمن له زور او ظلمه کار اخیستی دئ، نو په هیواد کې ئې د توطیو او دسیسو تور هم غوړېدلی دئ. پایله ئې دا وي چې دغسي حکومت یا پاچا حتماً رکود او سقوط کوي. تر حد وتلی زړ سوی او نرمښت هم ناوړه تمامېږي چې له امله ئې متزلزل او بې فکره انسانان جرأت اخلي او د اړونده حکومت د لاري اغزي ګرځي.

ارشد ځانښت مهال خپلو پوځیانو ته د یو څه دمي او هوساینې هدایت وکړ. هغوی هم ټول له آسونو څخه راکښته سول او خپل تغرونه ئې هوار کړل. وروسته ئې د هغه غذا په خوړلو پیل وکړ چې ورسره راوړې ئې وه. پوځیان لس لس یا پنځه پنځه کسان سره یو ځای کېدل او ډوډۍ ئې په ګډه خوړل. ارشد او اشرف هم د خپلو ډوډیو لوښي خلاص کړل او په خوراک ئې پیل وکړ. هغوی ټول تر ډوډۍ خوړلو وروسته پرېوتل او څه آرام ئې وکړ. ارشد یو ګړی وروسته راوپاځېد او اشرف ته ئې داسي وویل: "اشرفه وروره! زما داسي خیال دئ چې د دې وادي هغه بلې خوا ته یوازې ورسم او وګورم، ښایي بچه سقاو او د هغه غله د دې ګڼو ونو او غونډیو شا ته پټ وي".

اشرف په حیرانتیا سره ورڅخه وپوښتل چې آیا په رښتیا هم غواړې یوازې هلته ولاړ سې؟

ارشد وویل چې: هو! هلته نو څه بېره ده؟

اشرف: واه، ډېر ښه! ته خو نه بېرېږې. مګر دلته د بچه سقاو او د هغه د خوني ډلي ټپلي اصلي پټنځی دئ او ګام پر ګام خطره ده.

ارشد: زه بېره او وهم هیڅ نه احساسوم، بلکي په نړۍ کي د دې ټولو نه ښایسته نجلۍ د خلاصون په فکر کي یم چي د سپین او نوراني مخ پلوشو ئې ټوله دنیا ښکلې کړې ده.

اشرف وخندل او داسي ئې ورته وویل: هو، ولي نه! همدا اوس به هم ښایي د هغې بې مثاله ښکلي نجلۍ د مخ شغلې هره خوا روښانه کوي.

ارشد په ښه فکر او سنجیدګۍ سره ځواب ورکړ چي: په دې کي خو هیڅ شک نسته چي لمر د هغې د روښانه او ځلانده مخ څخه رڼا اخلي او هغه خپروي.

اشرف: نه پوهېږم چي په تا کي دا دومره شاعرانه تخیل او مبالغه له کومه سول؟!

ارشد: آیا دا شاعرانه تخیل او مبالغه ده؟ بالکل غلط! ګوره اشرفه، تا خو دا سپین مخې او د حوري غوندي ښکلې پېغله و نه لیدله. لمر او سپوږمۍ صرف د رڼا دوې ټوټې دي او زړه نه سي وړلای، حال دا چي تر لمر او سپوږمۍ دغه ځلانده او روښانه ځېره یو بې هوښه کوونکی زړه وړل او زړه لوټول لري.

اشرف: خبره خو دا ده چي ستا په زړه کي نور نو د دې ښکلي نجلۍ ښایسته ځېرې ځای نیولی دئ، نو ځکه ته هر شی د هغې د روښانه مخ انځور ګڼې.

ارشد خپل تندی یو څه تریو کړ او داسي ئې ورته وویل: ته خو بس د چا ستاینې ته ښه تیار یې، حال دا چي عملاً څه نه سې کولای. زه درته وایم چي ګرانه دوسته! قدرت هغه په خپلو لاسو جوړه کړې ده. ښایي خدای په ټوله دنیا کي بل چا ته داسي ښکلې، غوړېدلې او وتلې ځېره نه وي عطا کړې. ما هغه صرف یو نظر ولیدله او همدې یوه کاته مي د وجود په رګ رګ کي د هغې مینه او محبت پیدا کړ.

اشرف: ښه دئ بابا، اوس راته ووایه چي څه اراده لرې؟

ارشد: بس غواړم چې د هغو غرونو آخوا ته ورسم.

اشرف: چې داسې ده نو درځه زه هم درسره ځم، او يو خدمتګار هم بايد راسره ملګرى وى.

ارشد: سمه ده، راځئ چې ځو.

اشرف هم فوراً را ولاړ سو او يو خادم ئې هم د ببولو له پاره مؤظف کړ.

هغوى درې سره شمالي خوا ته روان سول. څومره چې مخته تلل، هغومره لوى غرونه ولاړ ول چې څوکې ئې اسمان ته رسېدې. دا ټول غرونه تک شنه او په لويو ونو پوښلي ول. هره لوره او ژوره ښايسته او خوش بويه ګلانو معطر کړې وه او باد ښورول.

هغوى درې واړه لګيا ول دغو غرونو ته ختل. غرونه خورا صعب العبور، جګ او ستونځمن ول چې ورختل ئې نور هم ګران کړل. هره ثانيه او هر ګام يې د ښوييدلو له خطره ډک وو. خو هغوى د غرونو خلک ول او غرونو ته ختل ئې ښه زده ول. درې واړه مخ پر لوړه ختل او ښه سم ختل. کله کله به ئې د کوچنيو ونو تنې ونيولې او لږ دمه به ئې وکړه. تر لږ هوسايني وروسته به ئې بيرته ختلو ته دوام ورکاوه. درې واړه په همدې ترتيب کرار کرار ختل څو چې د غره سر ته ورسېدل. هلته ئې يو څه دمه وکړه او بيا ودرېدل او هغې بلې خوا ته ئې په ځير ځير وکتل.

د غره هغه بلې خوا ته هم ښه ګڼه او شنه مګر هواره وادي وه. په همدې وادي کې غله اوسېدل. هغوى پر ونو باندي پراته ول. بچه سقاو په يو کمپل کې ځان پېچلى او بيده وو.

د بچه سقاو پېژندل څه ګران کار نه وو. قدرت هغه ته د بل هر چا څخه بېله څېره ورکړې وه. هغه يو ګردى، غوښن او قوي انسان وو. څېره ئې ډېره د بيرې وه. مخ ئې توربخن وو. د چيچک داغونه ئې پر مخ باندي دومره ډېر ول چې د چا زړه نه غوښت چې ورته وګوري. لږ تر لږه دوه کيلو د کوفتې غوښنه پکار وه چې د ده د مخ داغونه ئې پټ کړي او پوښلي واى. هغه پر مخکه پروت وو. څنګ ته ئې توپک ورته اېښى وو. قطار وزمه ئې په غاړه کې اچولې وه. ده ته نږدې ئې مرستيال سيد حسن پروت وو. دغه سړي هم بدرنګه څېره لرله. ده هم د افغانانو غوندي قوي بدن درلود. خو سترګې ئې د عادي افغانانو پر خلاف کوچنۍ وې. د سترګو څخه ئې شيطنت له ورايه معلومېدى. دى ډېر چالاک، ټګمار او خطاايستونکى انسان وو. د تنګ او کوچني تندي څخه ئې د ظلم او بې رحمۍ ښې معلومېدې.

د دوى څخه يو څه ليري دواړې پېغلې نجونې پر ونو باندي ناستې وې. دواړو خپل سرونه لاندي ځړولي ول. خورا غمجنې او مأيوسه معلومېدلې. خو د دې هر څه سره سره دومره ښايسته وې چې ټوله وادي ئې له ښايسته روښانه او نوراني کړې وه. هغوى دواړو ته نږدې يوه ښځه ناسته وه چې عمر ئې ۲۶ يا ۲۷ کاله معلومېدى. هغه که څه هم ډېره ښکلې نه وه خو بدرنګه هم نه وه. ښه سپين مخې او جذابه وه. دا د بچه سقاو محبوبه وه چې بېنظير نومېده. لکه نوم چې ئې وو، وجود ئې هم هماغسې وو. (دلته ليکوال اشتباه کوي، يعني بېنظيره د بچه سقاو محبوبه نه وه بلکي هغه ئې تښتولې او يرغمل کړې وه چې د کابل په يوه مشهوره کورنۍ پوري ئې اړه لرله او ما يعني ژباړن په ۱۳۵۹ او ۱۳۶۰ لمريز کلونو کې چې د پوهنتون وروستى کال مي وو، د هغې سره څو څو واره ملاقات کړى دئ، ن. صمد).

ارشد دغو ښايسته نجونو ته وکتل او اشرف ته ئې داسې وويل: اشرفه! د کابل بې مثاله ښايسته پېغله کومه يوه ده؟

ارشد د دواړو زړه وړونکو نجونو څخه يوې ته اشاره وکړه او داسې ئې وويل: په اصل کې دا دواړې نجونې ستاره او حُسن جهانه دي.

اشرف دا دواړې نجونې وليدې. د هغوى په ليدو سره ئې سترګې تياره غوندي سوې دا ځکه چې فوق العاده ښايستې وې. څو شېبې ئې هوښ له سره تللى وو خو وروسته ئې بيرته ځان کنټرول او سم کړ. ارشد ته ئې کرار داسې وويل: موږ پر ښه وخت راورسېدو، غله زموږ په راتګ خبر نه دي، راځه چې ژر خپل پوځيان راولو او دوى ټوله په

همدې بنده وادي کې ووژنو یا ئې ونیسو.
ارشد په یو ژور نظر سره پرله پسې د شاپېرۍ غوندي ښایسته حسن جهاني سپین مخ ته کتل او داسي یې ورته وویل: اشرفه! ته ژر روان سه او ټول پوځیان راوله.
اشرف: او ته څنګه؟
ارشد ئې خبره قطع کړه او داسي ئې ورته وویل: زه نه سم تللای، داسي نه چي زه او ته په پوځیانو پسي ولاړ سو خو دغه غله له دې ځایه بلې خوا ته ولاړ سي.
اشرف: چي داسي ده نو زه هم نه سم تللای.
ارشد دا مهال اشرف ته وکتل او ورته وئې ویل: نو څوک باید پسي ولاړ سي؟
اشرف: خادم ور ولېږه.
ارشد: ښه خبره ده، خو هدایت ورکړه چي په ډېره کراره سره ولاړ سي او په پټه توګه پوځیان ورسره راولي.
اشرف: خو له دې ځایه به موږ ټوله کښته څنګه ورسو؟
ارشد: راځه لومړی لاري لیکي او کمرونه ولټوو تر څو د هغو په ذریعه دغه هواري وادۍ ته ورکښته سو.
اشرف: درځه چي تلاښ ئې وکړو.
هغوی درې واړه په ډېر احتیاط او کراره سره راکښته کېدل. کله چي د دې جګو غرونو څخه راکښته سول او هغه ځای ته بیرته راورسېدل چي له هغه ځایه ورختلي ول، نو خادم په نورو پوځیانو پسي روان سو. ارشد او اشرف د کومي مناسبي لاري او شیلې په لټه کي سول. دواړه په یو تنګۍ کي راکښته کېدل چي لاره ئې په عین حال کي نښاني کوله. دواړه په کرار او پټ ډول سره راکښته کېدل او کوښښ ئې کاوه چي دا خورا جګ غرونه ئې لاره بنده نه کړي. څه ګړی وروسته دواړه ستړي سول خو ارشد ډېر تلوار درلود. هغه غوښته چي ژر تر ژره کومه آسانه لاره ورپیدا سي او ځانونه بچه سقاو ته ورسوي. خو تر دې مهاله لا کومه ښه لاره نه وه ورپیدا سوې. څه ګړی وروسته ارشد او ملګري یې یعني اشرف د داسي یوې لارې د نه پیدا کېدو له امله یو څه نا امیده غوندي سول. وروسته دواړه بیرته راولاړ سول او هري خوا ته ئې ښه دقیق نظر واچاوه څو چي په یو نږدې غره کي ئې یوه نرۍ شېله غوندي ناوه ولیده. د هغه تر څنګ خورا غټي او ګڼي درختي ولاړي وې. داسي معلومېده لکه د کومي زلزلې پر مهال چي دا غر مات سوی او چاودلی وي او د څو ونو تنې سورۍ سورۍ او غوټي ماتي سوي وي. ارشد داسي وویل:
اشرفه! زما په خیال چي د دې درې څخه به لار ورغلې وي.
اشرف هم یو څه خوشحاله سو او ورته وئې ویل چي زما هم همداسي خیال دئ.
ارشد: چي داسي ده نو راځه د خدای نوم په واخلو او ور داخل به سو.
اشرف: اوس نه، ښایي په دې دره کي غله پټ وي. موږ صرف دوه کسان یو خو غله خورا ډېر دي. اول خو صبر وکړه چي پوځیان مو راورسېږي بیا به پر مخ ورځو.
ارشد: دا بې غیرتي ده، زه د خپلو پوځیانو تر راتګ پوري صبر نه سم کولای. ښه، ته د همدې درې په دروازه کي اوسه زه دننه ورځم.
اشرف، واه واه! ته داسي فکر کوې چي زه د ځان خلاصولو او ځان کښېلو له پاره پلمې جوړوم؟ دوسته! قسم په خدای که داسي خبره وي، زه والله که د ځان په فکر کي یم، زه سور اور او ناپایه اوبو ته هم ورغورځېدای سم، د جنګ تاوده ډګر ته یوازي ور دانګلای سم، خو زه صرف او صرف ستا په غم کي یم. که ته د خپلو پوځیانو راتګ ته نه معطله کېږې نو بسم الله ده او درځه چي ورځو، زه دې ملګری یم او تر تا مخکي زه ورځم.
ارشد خوشحاله سو او ورته وئې ویل چي شاباس! زما توریالي او زمری یاره شاباس! درځه چي دواړه پر ورځو.
اشرف: درځه.
دوی دواړه یوې بلې غټي درې ته ورننوتل چي په عین حال کي ډېره تنګه وه. له پاسه ئې جګ جګ کمرونه او لویې توټې داسي ولاړې وې تا به ویل چي همدا اوس به لاندي راولوېږي. همدې

بېرې دغه لاره نوره هم سخته، وارخطا کوونکې او خطرناکه کړه.

په دې تنګۍ کې خورا ډېر وابنه، بوټي، ځنګلي کوچنۍ او غټې ونې موجودې وې. دوی دواړه کرار کرار مخته تلل. کله چې دواړو نیمایي لار ووهل ناببره یو ټک وسو. مرمۍ په سرهاري سره د هغوی تر سرونو لوړه تېره سوه او یو ځای ولګېده. اشرف بې له ځنده وویل چې یاره، ټيټ سه، لکه چې کوم خبیث غله ولیدلو او دا دئ فیر ئې راباندی....

د اشرف خبره لا پوره سوې نه وه چې بل ټک وسو. دواړه ډېر ژر ټيټ سول. مرمۍ د هغوی د اوږو سره تېره سوه. که هغوی ټيټ سوي نه وای حتماً به دواړه یا یو ویشتل کېدی.

اشرف وویل چې دوسته! په هغو وبنو کې پټ سه.

دواړه پټ کښېنستل. وابنه ډېر جګ جګ وو او هغوی ښه پکښې پټ سول. ارشد وویل چې اشرفه! غله زموږ په راتګ او شتون خبر سوي دي، دا خو ډېره بده سوه. که خدای مکړه د وتلو بله لاره موجوده وي او هغوی ووژي، نو زموږ ټوله خواري به عبث او ضایع سي او په خپل مأموریت کې به ناکامه سو.

اشرف په ډېره کراره سره ځواب ورکړ چې یاره، کرار کرار خبرې کوه او په احتیاط سره مخته ځه.

دواړه پر ځلورو تلل او لږ ګړی وروسته داسې ځای ته ورسېدل چې غټ وابنه ختم سول. هغوی وابنه له مخې ایسته کړل او ویې لیده چې یو غل توپک په لاس نږدې ولاړ دئ او مخامخ هغه ځای ته ګوري چې ټک ئې هغې خوا ته کړی وو. هغه فوراً خپل توپک ورته ونیوی او ټک ئې پر وکړ. مرمۍ برابر د غله په ټټر کې ولګېده او تر ووتله. غل بې له کوم ږغه پر مځکه ولوېد او ځای پر مړ سو.

خو هغوی دواړه بیا هم په وبنو کې همداسې پټ وو مبادا چې نور غله د وژل سوي غله کومک ته رانسي. کله چې څه شېبه تېره سوه، نه چا ږغ وکړ او نه څوک راغی، نو دوی دواړه هم سوکه سوکه له وبنو څخه راووتل. دا د همدې شېلې بله دروازه وه. دواړه ودرېدل او شاوخوا ئې وکتل او بې له غټو او جګو غرونو څخه ئې بل هیڅ شی هم نه لیدی.

اشرف د وژل سوي غله خوا ته ورغی او توپک ئې ځني واخیست. ارشد د غله هغه قطار واخیست او په خپله سینه کې ئې واچاوه چې د غله په ځان کې وو. اشرف دغه غل تر پښو ونیوی او ګوښه خوا ته ئې کش کړ او هلته ئې په وبنو کې پټ کړ او بیر ته راغی.

هغوی چې کله له دې کار څخه بېغمه سول نو مخته پسي ورغلل. اوس نو غرنۍ دره شروع سوه. دا هم یوه تنګه دره وه. خو دونه تنګه نه وه لکه هغه تنګۍ چې هم ډېر تنګ وو او هم د تېرېدو وړ نه وو. دواړه په احتیاط او کرارۍ سره مخته تلل. ځنګه چې دوی صرف دوه کسه او غله ډېری کسان وو، نو ځکه ټيټ ټيټ کېدل او هره خوا ئې د غرو څوکو ته په ځیر ځیر کتل او سوکه سوکه مخته تلل. کله چې دواړه د درې وروستۍ برخې ته ورسېدل نو یو غل ئې ولیدی چې د درې په بل مدخل کې د ختیځ خوا څخه لوېدیځ لوري ته چټک چټک روان وو. دوی چې هغه ولیدی نو د یوې غټې ډبرې شا ته پټ ودرېدل. دلته ئې د غله د بوټو آواز ښه سم اورېدی. ارشد وویل چې اشرفه! پر دغه غله هم فیر وکړم؟

اشرف په ډېره آرامه توګه او پُسهاري سره ورته وویل چې یا، داسې کار و نه کړې، ځکه اوس موږ د غلو اصلي اوسېدنځي ته را رسېدلي یو.

ارشد: خو موږ به دلته څونه وخت پټ یو او انتظار به کوو؟

اشرف: تر څو چې زموږ پوځیان رارسېږي.

ارشد: خدای خبر هغوی کله راورسېږي، او هغوی به دلته څنګه راسي، ځکه هغوی څه خبر دي چې موږ دغه تنګۍ ته راغلي یو؟!

اشرف: هو همداسې خو ده، نو زه به همدلته پټ پاته سم او غله به تر نظر لاندې لرم، ته د تنګۍ څخه ووزه او پوځیان همدلته راوله.

ارشد: دا خو هیڅ امکان نه لري چې زه دې تا یوازې پرېږدم. نه، قطعاً نه ځم.

اشرف: زه به هم ځنګه تا یوازي پرېږدم او درځخه ځم به. بس نصیب او قسمت چي مو هر څه وي راسره وبه سي.

ارشد غوښته چي څه ووايي چي نابېره ئې د غلو د خبرو اترو ږغونه واورېدل. یوه خپل کوم ملګري ته وويل چي شهباز خانه، د تنګي دروازې ته نه يې ورغلی؟

بل کس چي ښايي شهباز خان به وو، ځواب ورکړ چي: یا، نه یم تللی او د تللو کوم خاص ضرورت هم نسته. روستم خان د خپل عادت له مخی کله کله یو فاير کوي.

لومړنی کس ورځخه وپوښتل چي د عادت له مخي؟ آیا هغه د ټوپک د فیر په مرض اخته دئ؟

شهباز: هو، هغه تل بې له ضرورته کله کله ټک کوي.

لومړنی کس: خو ته بیا هم یو وار ورسه او وګوره چي څه خبره خو به نه وي.

شهباز خان: ناحقه مي هلته استوې، یا به هغه پر کوم ښکار باندي ټک کړی وي یا دا چي د خپل ناوړه عادت له مخي به ئې دا فیر کړی وي.

لومړنی کس: ورسه او هغه له داسي کاره منع کړه چي په آینده کي ناحقه ټکان و نه کړي که نه سزا به ورکړو.

شهباز خان: هووی! هغه یې کله مني. خدای دي ئې نه درواغ کوي ښايي ما تر لس واره هم ډېر منع کړی وي.

لومړنی کس: خیر، همدا اوس ئې پوه کړه او ورته ووایه چي یعقوب خان سخت امر درته کوي چي وروسته له دې که دي ناحقه ټک وکړ نو مرمۍ به دي تر زړه درو باسم.

شهباز خان: ښه، همدا اوس دا دئ ورځم او خبر ور کوم.

لومړنی کس یعقوب خان وو. دی هم د بچه سقاو تکړه قوماندان وو. ټولو غلو د ده د امر او حُکم هم احترام کاوه.

د هغوی ږغ نور نه اورېدل کېدی. داسي معلومېده لکه یعقوب خان چي خپل امر صادر کړ او ولاړی.

ارشد وویل چي اشرفه! اوس هماغه غل همدلته راځي.

اشرف: هو، موږ باید ځانونه ورته تیار کړو.

بس پر همدې مهال شهباز خان د ځان سره غږمبېدی او د دوی خوا ته راورسېد. هغه خپل سر ځړولی وو او ټوپک ئې په لاس کي نیولی او راروان وو. هغه کښېنته کتل. کله چي د دوی خوا ته رانږدې سو نو دواړه يو څه وېږېدل. شهباز خان په احتیاط سره راروان وو او د دوی ځخه تېر سو. کله چي څو ګامه نور هم ورځخه تېر سو نو ارشد ورټوپ کړ او تر ستوني ئې ونیوی. داسي ټینګ ئې ورکښېکیښ چي د هغه آواز تر خولې نه راوتی. ټوپک ئې پر مځکه وغورځاوه او په لاسو سره ئې د خپل ستوني د خلاصولو کوښښ پیل کړ.

ارشد ډېر غښتلی وو، پنجه ئې اوسپنیزه وه. شهباز خان د پرله پسې هڅو سره سره و نه سو کړای چي خپل ستونی ورځخه خلاص کړي.

ارشد د هغه ستوني نور هم پسي کښېکیښ، د هغه ساه بنده سوه او سترګی یې زډي زډي راووتې څو چي ساه ئې له بدنه والوته او مړ سو.

اشرف د هغه ټوپک هم واخیست. ارشد ئې له ټېره قطار خلاص کړ او په خپله غاړه کي ئې واچاوه. اشرف ورته وویل چي د دغه ازلي منحوس انسان جسد هم واخله او د خپل بل ملګري سره ئې کښېږده.

ارشد: هو سمه ده.

هغوی دواړو د شهباز **خان مړی واخیست** هلته يې د غټو وښو په منځ کي د هغه بل مقتول تر څنګ کښېښود.

يو ګړی دواړو دمه وکړه. کله چي لږ آرام

سول نو اشرف وویل چي درځه اوس به نو خپل پوځیان دلته راولو.

ارشد: هیڅکله نه، زه ببربږم چې مبادا غله زموږ په راتګ خبر سوي نه وي او راځخه و نه تښتي.

اشرف: هغوی نه سی تښتېدای، زما په خیال د دې وادي ځخه د وتلو همدا یوه لاره ده او غله د همدې دروازې ساتنه کوي.

ارشد: د ګیدړو او غلو د فرار له پاره ډېري دروازې موجودي وي. دا کسان په داسي ځای کي نه اوسېږي چې د وتلو فقط یوه لاره دي ولري.

اشرف: خو موږ یوازي دوه کسان به ځه وکړای سو؟

ارشد: خپل ځانونه خو قربانولای سو.

اشرف: اوس خو ځه چي زموږ په تقدیر کي لیکلي وي هغسي به راسره کېږي. نو راځه چي دواړه پر غلو برید وکړو.

ارشد: هو دا ښه خبره ده، همدا موږ به ان شاء الله هغوی ټوله ونیسو.

دوی دواړه کرار کرار مخته ورتلل. کله چي شېله او تنګی ختم او دره شروع او ورداخل سول، نو د درې په لوړه برخه کي ئې ځو کسان ولیدل. دواړو په وارخطایي سره هغوی ته کتل. خو وروسته پوه سول چي دا د دوی خپل پوځیان دي چي راورسېدل. د هغوی په لیدو سره دواړه ډېر خوشحاله سول. اشرف په اشاره سره هغوی ته وویل چي لاندي راکښته سئ. خو هغوی پر شا ولاړل او له نظره غایب سول. دوی دواړه درې ته ورننوتل. کله چي د درې هغه مدخل ته ورسېدل چي یو ګړی مخکي شهباز خان په مغرورانه ډول قدم پکښې واهه، نو نابېره ئې مخی ته یو چاغ او قوي غل ودرېد چي ډېر غښتلی او پیاوړی وو. ارت پرتوګ، غټه او اوږده کرتې یې اغوستې وه چي په دې سره نور هم چاغ او تکړه معلومېدی. هغه پوخ سِنه انسان وو. د سر او ږیري ورېښتان ئې تور او سپین ول. ږیره ئې ګردی او بریتونه یې د ږیري سره برابر ول.

هغه په ډېره حیرانتیا سره ارشد ته کتل او داسي یې ورته وویل: ځوک، ارشد...

بس ډېر ژر ئې خپل توپک تیار کړ. ارشد هم بې له ځنډه ورحمله کړه او توپک ئې ځنی ونیو او ورته وئې ویل چي یعقوب خانه! هو، ارشد اغا یم.

ارشد اغا په ډېر جرأت سره دا کار وکړ. یعقوب خان چي د هغه دا زړه ورتوب ولیدی، نو خوله ئې وازه پاته سوه. ارشد په قهر سره ورته وویل چي یعقوب خانه، ستا خیر په دې کي دئ چې خپل توپک پر مځکه کښېږدې.

یعقوب خان ځان ټینګ وښوراوه، ورحمله ئې کړه چي توپک بیرته ځني واخلي او داسي ئې ورته وویل: ته د شیدو ماشوم زما ځخه توپک اخلې؟!

ارشد: ته باید توپک پرېږدې، ایله ئې کړه که نه ټک درباندي کوم.

یعقوب خان هم وبېرېدی او ډېر ژر ئې توپک ایله کړ. وروسته ځو ګامه پر شا ولاړی او د کرتې جیب ته ئې لاس دننه کړ او توپنچه ئې راوایستل او فوراً ئې ټک پر وکړ . ارشد هم د برېښنا غوندي وغورځېد او هغه بلې خوا ته ودرېد. اشرف پر هغه فیر وکړ. مرمۍ د یعقوب خان له اوږې سره تېره سوه.

یعقوب خان بې له ځنډه پر اشرف باندي هم ټک وکړ. ځنګه چي اشرف د مځکي ځخه تیار وو، نو دی هم وغورځېد او هلته ګوښه ودرېد.

دا مهال ارشد فیر وکړ او مرمۍ د یعقوب خان په بازو کي ولګېده او تر ووتله. یعقوب خان کوږ ووږ سو او پر مځکه ولوېد. مرمۍ د هغه پر راسته لاس باندي لګېدلې وه.

ارشد غوښته چي بل ټک پر وکړی چي هلته نابېره له هري خوا ځخه مرمۍ پر راو

اورېدلې او د دوی دواړو د سرونو او اوږو سره
تېرېدې. دواړه پټ سول او مرمۍ ویشتونکي ئې
ولیدل. هغوی ټوله غله ول چې توپکونه ئې تیار
په لاسو کي نیولي ول. دوی دواړه پر شا سول او د
یوې لویې ډبري تر شا ئې مورچل ونیوی. دوی
چې کله پر شا سول نو غلو بیا فیرونه پر وکړل او
مرمۍ دوري هوري پر ډبرو منبتلې.

ارشد وویل چې: اوس د دې خطر سته چې
غله وتښتي.

اشرف: هغوی تښتېدلای نه سي. موږ هم
نور نو باید پټ نه سو.

ارشد، هو بالکل صحیح ده.

بس په همدې خبره سره دواړه د ډبرو د
شا څخه راووتل او مرمۍ ئې اورولې چې له امله
ئې دوه غله پر مځکه ولوېدل.

غلو ته هم قهر ورغی، توپکونه ئې پر
راواړول او د مرمیو باران ئې شروع کړ. د دې له
امله دوی دواړه بیرته د لویو ګارو شا ته پټ سول.
خو غله په ډېرو ولولو او جذبو سره مخته پر
راتلل. دوی یو څه پرېشانه او ناآرامه سول.
هغوی یو څه نور هم پر راغلل او دوی د لویو ډبرو
شا ته پناه واخیسته یعني هغه ځای ته بیرته راپر
شا سول چې شهباز ئې لومړی ځل لیدلی وو.

دا ځای ښه پټنځی او مورچل وو. غله نور
هم مخته راغلل او پرله پسې ټکان ئې کول. دوی
هم مجبور سول او فیرونه ئې شروع کړل. تقریباً
پنځلس دقیقې د دواړو خواوو تر منځ د مرمیو
ویشتلو تبادله روانه وه خو غله په دې موده کي نه
پرمخ راتلای سول او نه ئې پر شاتګ وکړ. هغوی
د درې په دروازه کي مسلسل مرمۍ اورولې او
ارشد او اشرف هم خوابیه مرمۍ پر اورولې. خو د
دوی مرمۍ ناحقه ضایع کېدلې.

څه نا څه پنځلس دقیقې وروسته د دوی
ملګري راورسېدل او د لیري څخه ئې د مرمیو
ګوزارونه شروع کړل. غلو چې دا ټکان او
ګوزارونه ولیدل نو وبېرېدل. بچه سقاو په لوړ ږغ
سره خپلو غلو ته وویل چې وتښتئ، د دغو
حکومتي ښناورو څخه ځانونه وژغورئ او
وتښتئ.

غله هم ټوله پر شا سول. د هغوی په دې
پرشاتګ سره ارشد او اشرف د خپلې مورچې
څخه راووتل او پر مخ ورغلل. د دوی تر شا ئې زړه
ور او اتل پوځیان ورپسې سول. دوی ټوله د وادي
هواري برخي ته راورسېدل. غلو د وادي څخه د
تښتي کوښښ کاوه، خو دوی ئې لاره تنګه او
بنده کړه. هغوی هم مجبور سول دوري هوري
ئې ځغستل او د تنګي په ګوښو کي پټېدل.

بچه سقاو په تلوار او وارخطایي سره د
ښکلو او سپین مخو نجونو یعني حسن جهاني او
ستارې خوا ته ورغی او داسي ئې ورته وویل: اې
نازکو نجونو ! فوراً زما سره رواني سئ، بدبخته
ارشد اغا زموږ پر پټنځي باندي حمله کړې ده.

ستارې یو څه جرأت وکړ او داسي ئې ورته
وویل: موږ ستا سره نه ځو.

بچه سقاو ډېر وخښمېد او د تندي رګونه
ئې شخ شخ ودرېدل. سترګي ئې سرې سوې، د
برېښنا غوندي ځپه پر راغله او داسي ئې ورته
وویل: بې له ځنډه راسره رواني سئ، که نه په
مرمۍ به مو سورۍ سورۍ کړم.

ستارې ورته وویل چې موږ نه درسره ځو او
ته کولای سې چې همدلته مو ووژنې.

بچه سقاو توپنچه پر ونیوله او داسي ئې
ورته وویل: ښه، همدا اوس دي ژوند ختم کوم.

ستارې ورته وویل چې اول خو ته خپل
خان وژغوره، د هغوی مرمۍ به ستا کار وکړي.

بچه سقاو هم وبېرېدی او شا ته ئې وکتل.
ارشد او ملګري ئې له ده څخه یو څه لیري ول.
دی بیرته د ستارې خوا ته راغی او ورته وئې ویل
چې شیطاني اوچالاکي نجلۍ! ته ما
خطاباسې؟!

بچه سقاو همدا جمله ختمه کړې نه وه
چې ستارې ورحمله کړه او په ډېره زړه ورتیا ئې

توپنچه د لاسه څني واخیسته.
بچه سقاو په تېرو او سرو سترګو سره ورته وویل چې: «ښه، دونه جرأت؟» بس په یوه ټوپ ئې توپنچه بیرته څني حمله کړه. یو ګام شا ته ولاړ او د توپنچې میله ئې د ستارې خوا ته ونیوله. ستارې په وارخطایي او خوف سره ورته کتل.
دا مهال بېنظیره ژر راغله او په درېدلي او بند بند ږغ سره ئې بچه سقاو ته وویل چې زما سرداره! وتښته، بدبخته ارشد مرمۍ درباندې اوروي.
بچه سقاو یو وار بیا شا ته وکتل او یو څه نږدې ئې ارشد د توپک سره ولیدی. بس یو دم ئې توپنچه پر راواړوله او ټک ئې پر وکړ. مرمۍ د ارشد د سر سره تېره سوه. ارشد کولای سوای چې په یوه مرمۍ ئې د هغه ژوند ختم کړی وای، خو له دې بیري ئې دا کار و نه کړ چې هلته دواړې ښکلي نجوني موجودې وې، او داسي نه چې د ده مرمۍ په هغوی کي ومښلي. نو هغه وو چې د بچه سقاو خوا ته ئې ټوپ وکړ او هغه هم سخت وارخطا سو. هغه بې نظیره تر ملا ونیوله او کش ئې کړه او یوې شېلې ته ننوت.
د ارشد پوځیانو د وادي هره برخه تر خپل کنټرول لاندي راوستله. غله ټوله دوري هوري وتښتېدل. ارشد راوګرځستل او د حسن جهاني خوا ته راورسېد او داسي ئې ورته وویل: «شکر دئ چې ته خو وژغورل سوې...». حسن جهاني په زړه بایلوونکي نظر سره ارشد ته وکتل. ارشد هم د مینې په جال کي راغی. حسن جهاني ورته وویل چې موږ دواړې ستا څخه ډېره مننه کوو.
ارشد ځان وښوراوه او وئې ویل چې: مننه؟ د تشکر هیڅ کوم ضرورت نسته...
حسن جهاني د ده خبره غوځه کړه په خوږه او تازه لهجه ئې ورته وویل چې: موږ ستا نېکي هیڅ نه سو ادا کولای.
ارشد باغ باغ سو او ورته وئې ویل چې ما ته د خپل زحمت نتیجه او بدله راورسېده.
ستارې وخندل او وئې پوښتل چې ارشده! تا کومه بدله حاصله کړه؟
ارشد پوه سو چې څومره ستاره ښایسته ده، هغومره تېزه او شوخه هم ده. نو داسي ئې ورته وویل: یوه شاپېرۍ غوندې ښکلې پیغله زما څخه مننه کوي، نو تر دې بله ښه بدله څه ده؟
ستاره وشرمېده. حسن جهاني داسي وویل: بېشکه چې ستاره فرشته غوندي ده، یعني د نیوې شاپېرۍ.
ستارې په شرمندوکي او حیاناکه توګه حسن جهاني ته وکتل او وئې ویل چې: «زه؟ ګراني فرشتې! هغه دا هر څه تا ته وایي، ځکه مننه خو همدا تا وکړه».
حسن جهاني موسکا وکړه. د هغې تبسم برېښنا نازله کړه او ورته وئې ویل چې یا، ستا هېره سوه، اول تا مننه وکړه.
ارشد د دغو دوو بلبلو غوندي نازکو آواز لرونکو نجونو د پستو پستو دلایلو څخه خوند اخیستی. خو له یوې خوا د غلو د بیرته راستنېدو خطر وو، او د بلې خوا هم ځکه اندېښمن وو چې د خپلو مأدونانو په مخکي د نامحرمو نجونو سره داسي خبري کوي.
نو ځکه ئې وویل چې: د غلو د بیرته راتګ اندېښنه موجوده ده. ښه به دا وي چې له دې وادي څخه ووزو.
ستارې ځواب ورکړ چې زه هم له دې درکه بېرېږم، درځئ چې له دې نحسي وادي څخه وزو، دا د غلو اوسېدنځی دئ.
ارشد هم خپل ټول پوځیان پر یوه ځای راغونډ کړل. کله چې هغوی ګرده حاضر او چمتو سول، نو فرشتې غوندې ښکلي نجوني ئې په خپله ساتنه کي واخیستې او له درې څخه راووتل.
نور بیا...

لیکوال: استاد م. معصوم هوتک/کاناډا

# د غره او د وره

(دوهمه برخه)

ما د دغو خاطراتو نوم "د غره او د وره" ایښی دئ، یعني منظم تسلسل نه لري. په دې برخه کي بیرته ښوونځي ته د شاملېدلو بیان ته ځم.

**ښوونځي ته شاملېدل:**

د ۱۳۳۵ش کال = ۱۹۵۶ع د سنبلې شپاړسمه وه چي د خپل ماما بلال احمد بري سره د کندهار د میرویس لېسې په ودانۍ کي د ده خوجې لومړني ښوونځي ته ورغلم. د لومړني ښوونځي او لېسې اداره په یوه اطاق کي وه. دغه اطاق د لېسې د عمومي دروازې پر مخامخ د عمومي تعمیر په منځ کي واقع وو. زما سن په دغه ورځ ټیک اته کاله او شپږ میاشتي وو. تر دغي ورځي څو میاشتي مخکي مي قرآن شریف پر خپل مشر اکا حاجي عبدالعلي چي موږ (کاکا) باله، ختم کړی وو. د ختم په ورځ مي پلار زموږ د کور په سراچه کي لوی محفل جوړ کړی او شېرچای ئې تهیه کړي وې.

د هغه وخت د سرکاري تعامل له مخي، ښوونځي ته زما شاملېدل، یو څه ناوخته وو. د دې ځنډ علت دا وو چي مکتبو ته د شاملېدو پر وخت به زما پلار عموماً د تجارتي معاملاتو له پاره د هندوستان په سفر تللی وو. کله چي به مکتب ته د شاملولو کسان کور ته راغلل، زما اکا به هغوی په څه پلمه جواب کړل او زه به ښوونځي ته له شاملېدو څخه محروم سوم. په هغه وخت کي د ښوونځیو چپراسیان په کوڅو کي ګرځېدل او اووه کلن هلکان به ئې ښوونځیو ته بېول او په مکتب کي به ئې شاملول. زموږ په کورنۍ کي زما پلار، اکاګانو مي (میرزا عبدالودود، حاجي عبدالمجید) په اماني دوره کي مکتب ویلی وو. پلار مي خپله شهادتنامه چي په زرین ښنتو لیک لیکل سوې او د هغه وخت د معارفو د مدیر مولوي صالح محمد خان لاسلیک پر باندي وو، تر ډېره وخته ساتلې وه. د ده تر وفات وروسته بیا زما سره وه. د ثور په پاچاګښتیو کي چي له کندهاره، کابل او بیا له هغه ځایه کوټې، کراچي ته کډي وکړې، دغه شهادتنامه ښځایه سوه. تر پلار او اکاګانو مخکي مي زموږ په کورنۍ کي حاجي محمدحسین هوتکي ولد غلام محمد ولد حاجي محمداکبر هوتکي په اماني دوره کي تر رشدیې پوري تعلیم کړی وو. د ده په خپل لاس خطاطي سوي د مکتب کتابونه اوس هم زما په کتابتون کي خوندي

دي. په هیواد کې د سقوي دورې په راتګ سره (۱۳۰۸ش = ۱۹۲۹ع) معارف او هر څه نور ګډوډ سول او زموږ د کورنۍ د غږو د تعلیم سلسله هم پسې وشلېده. په ظاهرشاهي دوره کې چې په هیواد کې دولتي نظم ټینګ او معارف هم وده وکړه، نو زموږ د کورنۍ یو شمېر هلکان هم ښوونځي ته د شاملېدو چانس ومونډ. په هغو کې تر ما دمخه بلال احمد بري د مولوي صالح محمد زوی[۱]، عبدالله جان احسان[۲] د حاجي محمدحسین هوتکي زوی په ښوونځي کې شامل سوي دي. زه د ملا ګلداد کوڅې د هوتکو په کورنۍ کې دریم تن وم چې په ښوونځي کې شامل سوم. د حاجي محمدحسین هوتکي دوهم زوی هدایت الله هدایت زما سره په یوه وخت کې مکتب ته شامل سو.

چې بیرته خپل اصلي مسیر ته راوګرځم، زه چې د خپل نیکه مولوي صالح محمد په هڅه ښوونځي ته د شاملېدو له پاره د بلال احمد بري[۳] په توسط ورغلم او د ښوونځي اداري زما سن ته چې ښوونځي ته د شاملېدو تر عمر (یو نیم) کال زیات وو، ګوته ونیوله. نو زه د سویې ازمویني ته حاضر سوم. دا ازموینه د هغه وخت د میرویس لېسې ښوونکي ښاغلي منورشاه خان[۴] راخځه واخیستله. په ازموینه کې د قرآنکریم، دینیات، حساب، پښتو او خط مضمونونه شامل ول. ازموینه مې په بشپړ بري سره تېره کړه او د اداري په موافقه واردواره په دریم ټولګي کې شامل سوم. دغه ورځ د ۱۳۳۵ش کال د وږي میاشتي شپاړسمه وه. د ښوونځي اطاق د میرویس لېسې د ودانۍ د شمالي راستې د لوېدیځ خوا اول اطاق وو[۵]. د دریم ټولګي ټول مضمونونه د یوه ښوونکي له خوا تدریس کېدل او دغه وخت د دریم ټولګي ښوونکی عبدالباقي خان نومېدی. تور، ګردي سړی وو. د کندهار ښار اوسېدونکی وو. غالباً به د فراه ولایت اوسېدونکی وو. د دغه وخت په هم صنفیانو کې مې قیوم خان کرزی، اسدالله کرزی (د شېرآغا عبدالله خان زوی) اوس ژوندي دي. د نورو حال نه لرم. د معارفو مدیر عبدالباري خان آشنا وو. د میرویس لېسې مدیر کاکا رازق وو[۶]. د ده خوجې لومړني ښوونځي سرمعلم عبدالرزاق خان وو[۷]. د ښوونځي نور ښوونکي غلام حیدر خان (د کندهار له پارسیوانانو څخه)، سور عبدالرزاق خان، ګل محمدخان (د کوچني بالاکرز)، محمدنبي خان (فراهي)، محمداکبر خان

---

[۱] بلال احمد بری د کابل پوهنتون له حقوقو څخه فارغ سوی او په الهیاتو کې ئې په مصر کې PhD کړې ده.

[۲] عبدالله احسان د کابل پوهنتون د ښووني او روزني پوهنځي ویلی او په بیروت کې ئې مافوق لیسانس تحصیلات کړي دي.

[۳] بلال احمد بری په دغه وخت کې په اووم ټولګي کې وو.

[۴] منورشاه خان د کندهار د اهل تشیع اوسېدونکو څخه وو.

[۵] دغه ودانۍ د مجاهدینو د واکمنۍ په دوران کې له بیخه ونړېده. اوس ئې پر ځای نوې ودانۍ جوړه سوې ده او په عالي دارالمعلمین پوري اړه لري. دا ودانۍ د مرحوم سردارمحمد داود د نائب الحکومګۍ پر وخت د میرویس لېسې له پاره ودانه سوې وه.

[۶] کاکارازق واصفي د عزیزالله خان واصفي د اکا زوی دئ.

[۷] عبدالرزاق خان د کندهار د بامیزو کوڅې اوسېدونکی وو. د دغي کوڅې د لوَېو (لوانیو) له کورنۍ سره ئې خپلوي وه. یوه ورور ئې د شاه بازار په ختیځه راسته کې د قره قل خولیو ګنډلو دوکان کاوه. په ریاضي او انګرېزي کې ئې په خپل وخت کې نوم ایستلی وو.

(ننگرهاری)، صالح محمد، قاري عبدالحمید (قاري مصری) او نور ول. د دریم ټولګي په اولو درې میاشتنیو ازموینو کې د خپل ټولګي دوهم نمره سوم. تر دې وروسته مې بیا د تعلیم او تحصیل تر پایه پوري تر اوله نمره ګي کمه درجه نه ده اخیستې. د لومړني ښوونځي په ابتکاري کارونو کي مې د افغانستان، آسیا، اروپا او افریقا د دېوالي نقشو رسمول دي. دغه نقشې مې پر ۲ × ۳ متره کاغذ باندي په رنګه پنسلانو رسم کړې. د پلار په مرسته مې د کاغذ شا ته ټوکر ورسریښ کړ او د سر او ښنو خوا (شمال او جنوب) ته مې لرګي ورکړل. له دغو نقشو څخه د جغرافیې مضمون په تدریس کي استفاده کېدله او ښوونکو به ټولګیو ته ورسره وړلې. دغه نقشې تر ۱۳۳۹ش کال پوري لا د ښوونځي په اداره کي پر دېواله ځوړندي وې.

زما د ښوونځي دورې په کلونو کي په افغانستان کي د اول وار له پاره د ښوونکي ورځ په رسمي توګه ونمانځل سوه (۱۳۳۸ش؟). دا وخت د سردارمحمد داود د صدارت زمانه وه او د کندهار والي محمدصدیق وزیري وو. په کندهار کي د ښوونکي د ورځي د نمانځلو مراسم د احمدشاه بابا په لېسه کي تر سره سول. د ده خوجې ښوونځي زده کوونکو په دغو مراسمو کي د ښوونکي ترانه وویل د ترانې په ګروپ کي زه هم شامل وم. د ترانې شعر او کمپوز د ګل محمدخان ښوونکي وو او د ترانې د ګروپ مشر د ده خوجې ښوونځي یو زده کوونکی فتح محمد وو. د دې ترانې څو بنده تر اوسه زما په حافظه کي سته:

رحیم رحمانه – غواړو له تا نه، لوړ تر هر چا نه
–افغانستان
یا ذوالجلاله –مې کړې زواله – ګرځو سرشاله
–موږ هر زمان
ورځ د معلم ده، معلم استاد –لوی خدمتګاره د
خپل هیواد
یو ښه پالنه – بل ئې روزنه – کړي د وطنه –
دی په هر آن

د ښوونکي د ورځي د نمانځلو مراسمو ته نائب الحکومه، د قول اردو قومندان (جنرال خان محمد خان) او د ښار مخور راغلي ول. په مراسمو کي سردار عبدالله جان طرزي په زړه پوري وینا وکړه.

په کندهار کي دغه وخت د مکتبو تعلیمي سویه فوق العاده لوړه وه. ډېر ښه ورزیده او تجربه کارو ښوونکو د تدریس چاري پر مخ بېولې. له معارف سره ئې خدمت او مرسته په ویاړ سره کوله. د هغه وخت د لېسې زده کوونکي به په ټوله معنا یو باسواده شخص وو. په کندهار کي دغه وخت دوې لېسې موجودي وې: د احمدشاه بابا لېسه، د میرویس نیکه لېسه. د احمدشاه بابا په لېسه کي زیاتره د ښار د مخورو او معتبرو کسانو زامن شامل ول. خو په میرویس لېسه کي د ښار د متوسطي طبقې افراد او د غریبانو اولادونو درس لووست. د تعلیم په لحاظ او د زده کوونکو د سویې له مخي به هر وخت میرویس لېسه وړاندي وه. په لېسو کي د تدریس پر څنګ هره هفته علمي کنفرانسونه جوړېدل او ډرامونه تمثلېدل. د ډرامو جوړولو اصلي هڅوونکی د میرویس لېسې استاد جان محمد خان (پلار) وو. ده په اماني دوره کي په ترکیه کي درس لوستی وو. موږ ته ئې په څلرم ټولګي کي جغرافیه تدریسوله او هغه وخت به ئې پېشګویي راته کوله چي یو وخت به انسان په سپوږمۍ کي قدم کښېږدي. د ده وړاندوینه څلوېښت کاله وروسته عملي سوه. د میرویس لېسې د کنفرانس او ډرام چاري د محمدداود مسلم، عبدالاحد صالحي، رحمت الله بزګریار

(کرزي) او نورو زده کوونکو له خوا پر مخ وړل کېدلې. دغه کسان ډېر تکړه ممثلین هم ول. محمدداود مسلم د اروابناد محمدرسول مسلم مشر زوی وو. ورور ئې محمدابراهیم مسلم هم په تمثیل کي برخه اخیستله. عبدالاحد صالحي د کندهار ښار د یحیی خان کوڅې اوسېدونکی وو. رحمت الله بزګریار د عبدالاحد خان کرزي وراره او د شېرآغا عبدالله خان کرزي مشر زوی وو. د هغه وخت په ډرامو کي ټولنیزي نابرابرۍ، بې عدالتۍ او ناوړه دودونه انتقاد کېدل. ډرامونه هم زیاتره همدغو کسانو لیکل. خو ډېره برخه ئې رحمت الله کرزي لیکله.

په ډرامو کي د خانانو، ملکانو د ظلمونو پر ضد پراخ تبلیغات کېدل او نتیجه ئې هم ورکوله. زموږ آشنا عبدالباري جهاني په همدغو ډرامو کي د خان د زوی رول لوباوه. ما ته مي کورنۍ اجازه نه راکوله چي په تمثیلي فعالیت کي برخه واخلم. البته د لېسې په دوره کي مي بیا دغه بندیز مات کړ.

په ښوونځي کي مي د تعلیم پر څنګ د ماپښین له خوا دیني علوم هم لوستل. د دیني علومو په استادانو کي مي پر خپلو اکاګانو سربېره، ملا محمدنور اخند، ملا محمدقاسم اخند (په کابل بازار کي ئې د بقالۍ دوکان کاوه)، ملا عبدالسلام اخند صحاف (زما د اکا زوی) او د لږ عمر له پاره د ذاکر ملا ګل محمد اخند ول. فارسیات راته ملا عبدالسلام اخند وویل. هر ماپښین ئې دوکان ته ورتلم. دوکان ئې د ارګ په کتابفروشانو کي وو. د سبق پر څنګ ئې صحافي هم راښووله. د دوکان څنګ ته ئې د حمدالله صحاف د پلار مرحوم وکیل صاحب دوکان وو. ملا عبدالسلام اخند د صحافۍ کسب په هرات کي زده کړی وو. ډېر مجلس آرایه، ظریف او د ښکار شوقي ملا وو.

زما او د ده اړیکي وروسته د استادۍ او شاګردۍ له حدودو راووتی او د ښکار انډیوالان سوو.

په لومړني ښوونځي کي زما د تعلیم په وخت کي په کندهار کي عمومي بلوا وسوه. دا د ۱۳۳۸ش کال د قوس میاشت وه. په افغانستان کي د سردار محمد داود صدراعظم په اراده د ښځو د مخ لوڅې نهضت شروع سو. په کندهار کي هم د دغه حرکت په مناسبت د ولایت د نائب الحکومه محمدصدیق خان وزیري له خوا د یوه پراخ مجلس له پاره ترتیبات نیول سوي ول، چي په هغه کي د ولایت پر ملکي او عسکري مامورینو سربېره د ښار مخور او سوداګر هم له خپلو مېرمنو سره ګډون کوي. د دغه مجلس د جوړېدلو پاره د قوس د میاشتي (۲۹ مه) ټاکل سوې وه. زه په دغه وخت کي د ماپښین له خوا په ارګ بازار کي د ملا عبدالسلام صحاف په دوکان کي شاګرد وم. د مجلس تر جوړېدو څو ورځي دمخه لا په خلکو کي ډول ډول آوازې خپرې وې. د ملا عبدالسلام دوکان ته زیاتره ملایان راتلل او د یوه احتمالي عکس العمل بیانونه به ئې کول. مجلس جوړ سو او وربلل سوي کسان له خپلو مېرمنو سره ورغلل. د معارفو مدیر عبدالباري خان آشنا مېرمن نه وه وروستلې او یوازي مجلس ته حاضر سوی وو. دی له هماغه مجلس څخه د والي په شفاهي حکم له وظیفې څخه طرد سو. (د قوس پر ۲۹مه = ۲۱ دسمبر ۱۹۵۹ع). موږ په مکتب کي وو. د ریاضي ښوونکی محمدنبي خان فراهي په تدریس اخته وو. د جدي په میاشت کي به معمولاً شاګردان د یخنۍ له اسیته تر ټولګیو دباندي راوتل او د ښوونځي په انګړ کي به ئې پیټاوي ته چوکۍ منظمي ایښې وې او درس به ورته

ویل کېدی[۸]. زموږ د ټولګي زده کوونکي هم په دغه ورځ دباندي راوتلي ول. د تدریس په جریان کي چي غالباً د سهار د لسو بجو شاوخوا وه، د پرله پسي ډزو اوازونه واورېدل سول. د هغه وخت په سوله ییزو شرایطو کي د توپک او ماشینګڼو ډزي غیر عادي کار وو. زده کوونکي د ډزو په اورېدو سره وارخطا سول. د ښوونځي سرمعلم له اداري راووت. زموږ د ټولګي یوه زده کوونکي (محمدامین د حاجي تورک زوی) چي کور ئې د مکتب شا ته نزدې واقع وو، وویل چي دا ټکان به د دوی په کور کي وي. ځکه د اکا کره ئې تېره شپه زوی وزېږېد. ښوونکي درس ته دوام ورکړ. خو د مکتب وضعه ناآرامه او زده کوونکي او ښوونکي ټول په تشویش کي ول. یو ساعت وروسته د زده کوونکو پلرونه پخپلو زامنو پسي مکتب ته رامات سول. زما او د عبدالباري جهاني پلرونه هم مکتب ته راغلل. له ځانو سره ئې زموږ بګړۍ هم راوړي وې (موږ په مکتب کي بګړۍ نه پر سر کولې. معمولاً به مو قره قلي خولۍ یا پیک لرونکي خولۍ (ببري خولۍ) پر سر کولې) او موږ دواړه ئې کورونو ته بوتلو. د بازار دوکانونه ټول تړلي ول او خلک په کورو کي ناست ول. په بازارو کي ټانګونه ګرځېدل. موږ چي کور ته راورسېدو، زما اکاګان هم کور ته راغلي ول. یو اکا مو (حاجي عبدالمجید) لا کور ته نه وو رارسېدلی، چي د کور د غړو زیاته اندېښنه په بنده وه. پلار او اکاګانو مي د شپې له پاره په کور کي امنیتي تدبیرونه ونیول. موږ په کور کي ښکاري توپک درلودل او پلار و

---

[۸] په کندهار کي به معمولاً د ژمي د بخاریو له پاره لرګي پر خپل وخت نه حواله کېدل او زده کوونکو به کله کله پیسې سره واچولې او لرګي به ئې له بازاره رانیول.

اکاګانو مي د سقاوي دوره لیدلې وه او د احتمالي چور او چپاول د دفع کولو له پاره ئې تیاری ونیو. حاجي عبدالمجید اکا مي ناوخته کور ته راغی او ځرنګه چي د هغه کره وړه د ملا په شان ول، په ښار کي امنیتي قواوو د ځو ساعتو له پاره توقیف کړی وو. زه په دا بله ورځ سهار پلار مکتب ته پرې نه ښوولم او په دا دوهمه ورځ ئې ولاړم. د دغو دوو شپو په جریان کي به هره شپه مسلسل ټکان ول. خو زموږ مشرانو کوم تشویش نه ښکاره کاوه او د حکومتي قواوو ډزي ئې پر ښار باندي د دولتي حاکمیت نخښه بلله او په خوشحاله به ول.

وروسته موږ د خپلو مشرانو له خولې د ښار د عمومي بلوا جریان داسي واورېد:

ملایانو د بلوا په دا پرون په خرقه مبارکه کي غونډه کړې وه. په دا سبا ئې له کرز، ذاکر او نورو شاوخوا کلیو ځخه خلک پر ښار رامات سول. سینما ته ئې اور واچاوه. د زینبي لومړني ښوونځي (د نجونو مکتب) ته ئې اور واچاوه. ځه دوکانونه چور هم سول. خو دولت آمادګي درلوده او په تېره بیا د کندهار د قول اردو قوماندان جنرال خان محمد خان پوپلزي په دغو حالاتو کي پر وخت اقدامات وکړل. دی د کندهار سړی وو د خلکو په روحیه باندي پوهېدی، او د تحریک مخکښان ئې پېژندل. ده په ښار کي عسکري قطعات ځای پر ځای کړل. د کرز او ذاکر خوا ته ئې قوه وایستله. د ښار متنفذین لکه عبدالصمد اخوندزاده خروټی، صالح محمد خان پوپلزی د کرز، حاجي حبیب الله پوپلزی سوداګر، ملا سیف الدین اخوند، عبدالقدوس خان بارکزی ... (ټول ۱۷۰ تنه؟) ئې ټول بندیان کړل او کابل ته ئې ولېږل. دغه راز ئې دوه درې سوه مشکوک کسان هم له بازارو ځخه ونیول او په فرقه کي ئې بندیان کړل. په دوی کي نوي

فیصده بې ګناه خلک ول، چې په ډېره جزئې اشتباه ئې دوې، درې میاشتې په فرقه کې بندیګرت وګاله.

سردار محمد داود صدراعظم په همدغه شپه د کندهار نائب الحکومه محمدصدیق خان وزیري کابل ته لاس تړلی وروغوښت او د بې کفایتۍ په جرم ئې پر کور کښېناوه. په کندهار کې د مخ لوځۍ د تحریک اولسي مخکښان محمدحلیم سلیمي او محمدعلم بځرکی وو. دوی دوو تر ټولو دمخه خپلې مېرمنې لڅ مخ راوایستلې. دې دوو مېرمنو په ښوونځیو کې د ښوونکو په توګه وظیفې اجراء کولې. د محمدحلیم سلیمي موټر په شاه بازار کې د بلوایانو له خوا په لرګیو او ډبرو چیت پیت سو. دی پخپله هم په موټر کې وو خو ځان ئې د عبدالرحمن دندان ساز کور ته ورساوه او هغوی په کور کې وساته.

دې بلوا کندهاریانو ته سخت زیانونه ورسول او ښه ډېر کلونه په کابل او نورو ښارونو کې د بلوایانو په نامه تړل کېدل او د حکومتي مقاماتو نظر هم ورته بد وو. د بلوا متهم مشران څو کاله د کابل په دهمزنګ بندیخانه کې بندیان ول. خو په کندهاري اولس کې د صمد اخندزاده او صالح محمد خان پر بهادرۍ او اسلام پالنه باندې اولسي سندرې جوړې سوې. د کندهار د قول اردو قوماندان جنرال خان محمد خان تر بلوا وروسته څو کاله پرله پسې د کندهار عسکري او ملکي مشر پاته سو او بیا د جمهوریت تر اعلانېدلو پورې (۱۳۵۲ش سرطان) په هره کابینه کې د دفاع وزیر ټاکل کېدی.

زما د لومړني ښوونځي د تعلیم په وخت کې زما نیکه مولوي صالح محمد خان هوتک په ملي شورا کې لومړی معین او د کندهار وکیل وو. هغه وخت د ملي شورا غړي د پاچا له خوا په انتسابي توګه ټاکل کېدل. د ښوونځیو د عمومي رخصتۍ په شپو کې (۱۵ جوزا – ۱۵ سنبله) به زه د نیکه په غوښتنه کابل ته تلم او هورې به مې درې میاشتې د نیکه په کور کې تېرولې. د نیکه کور مې د کابل په کوټه سنګي (میرویس میدان) کې وو. کوټه سنګي په دغو کلونو کې نوې اباده سوې وه. زیاتره برخې ئې زراعتي کروندې وې. یو د تېلو ټانک پکښې وو د ټانک لوېدیځ لور ته یو باغ او ورپسې زراعتي ځمکې وې. شمالي خوا ته د سېلو سړک تللی وو او جنوبي خوا ته ئې د مهتاب کلا، حربي ښوونځي سړک وتلی وو. د کندهار ښار ته هم همدغه سړک تللی وو. د مولوي صالح محمد خان کور په اول سر کې د کوټه سنګي د اوسني حمام په کوځه کې وو، د بازار جنوبي لور ته. وروسته ئې بیا د سېلو پر سړک په اوله کوځه کې د شمال لور ته دوهم کور وو. دواړه کورونه ئې په کراهیه نیولي ول. په اول کور کې اروانښاد عبدالخالق واسعي هم ورسره اوسېدی (له خپلي کورنۍ سره یو ځای). واسعي صاحب په دغه وخت کې په پښتو ټولنه کې غړیتوب درلود. په دا دوهم کور کې مولوي صاحب مرحوم یوازې له خپلي کورنۍ سره اوسېدی. دا کور د یوه محمدزي سردار سراچه وه. د رخصتیو په میاشتو کې زما تعلیمي لړۍ پر مخ نه شلېده. مولوي صاحب خپل مثنوي او نور کتابونه راته تدریسول. د مولوي صاحب د پښتو مثنوي ئې په دغه وخت په ما پاکنویسه کړ. دغه راز ئې له خانه سره د هغه وخت د مشهورو کسانو لکه عبدالهادي داوي، مولوي محمدامین خوګیاڼي، ګل پاچا الفت او نورو عالمانو مجلسو ته ورسره بېولم. د عبدالهادي خان داوي کور په منډیي کې او د خوګیاڼي صاحب کور په دهمزنګ کې (د محبس لوېدیځ ته) وو. د الفت صاحب کور مي اوس له

حافظې وتلې دئ.

په دغه وخت کي په کابل راډيو کي د کوچنيانو پروګرام نوی شروع سوی وو. زه لومړنی کندهاری ماشوم وم چي په دغه پروګرام کي (د پښتو په برخه کي) مي ګډون وکړ. د (احمد او رغ) کيسه مي په خپل آواز کي ورته واورول. د پروګرام چلوونکی زما د کندهاري لهجې له اسيته ډېر وارخطا وو، چي د مقاماتو له خوا و نه ترټل سي. په راډيو کي د کندهاري لهجې ويلو ته اجازه نه وه! دغه وخت د راډيو دفتر په پل باغ عمومي کي د منډيي بازار په مدخل کي واقع وو. ارواښاد خواخوږی د راډيو په نشراتو کي کار کاوه. د کوچنيانو په پروګرام کي زما د ګډون غوښتنه هم خواخوږي صاحب زما له نيکه څخه کړې وه. مولوي صالح محمد خان په همدغه دوهم کور کي د ۱۳۳۹ش کال د سنبلې په لومړۍ ورځ ناروغه سو. د زړه حمله پر راغله. د ماپښين مهال وو. زه د مثنوي په پاکنويسي لګيا وم چي د مولوي بل لمسي، بشيراحمد خبر راووړ چي: "بابا! په تشناب کي غوزار سو". ټولو تشناب ته وروځغستل. مولوي صاحب بېهوښه پروت وو او له خولې څخه ئې ځګونه راتلل. په دغه وخت کي په کور کي د مولوي صاحب دوه زامن (نوراحمد او بلال احمد)، مېرمن ئې (زما انا)، دوې لوڼي ئې (رابعه او مريمه) او زه حاضر وو. نور جريان مي ئې هېر دئ. خو نه پوهېږم څرنګه ئې تر علي اباد شفاخانې پوري ورساوه. هورې ئې مستقل اطاق ورکړی وو. په کابل کي اوسېدونکي کندهاريان ټول پر حاضر ول. د شپې به همدغه کندهاريان او د مولوي صاحب وراره محمدمحسن ورته پاته کېدل. د حملې په اوله ورځ ئې ژبه بنده سوه او بيا ئې خبري و نه کړې. د سنبلې پر څلرمه سهار ئې کور ته راووړ. ارواښاد عبدالخالق واسعي، مولوي محمدامين خوګياني مرحوم، مولانا عبدالباري، حاجي محمدحسين هوتکي ئې بستر ته ناست ول چي د مولوي صاحب د نزع حالت مخ پر سختېدلو سو. خوګياني صاحب مرحوم سورهٔ ياسين پر وايه. د ماپښين د درو بجو شاوخوا وه چي روح ئې والووت. دغه ورځ د ۱۳۳۹ش کال د سنبلې څلرمه، د ۱۹۶۰ع کال د اګسټ ۲۶مه او د ۱۳۸۰هـ ق کال د ربيع الاول دريمه د چهارشنبې ورځ وه. د کورنۍ د ښځمنو او نارينه وو په ژړاوو کي پر ما باندي يو راز حمله راغله او شوټ کښېنستلم. مولانا عبدالباري مړی پر ښښود او زما په غم کي سو. يو ګړی وروسته بيرته سم سوم. زما د ځوانۍ پر وخت راته مولانا عبدالباري يوه ورځ وويل چي د ده د ژوند په ترخو خاطراتو کي دغه ورځ وه چي مولوي صاحب وفات او زه (معصوم) شوټ سوم. د مولوي صاحب په وفات د کابل ټول دوستان خبر سول. د پارلمان (ملي شورا) څو غړي کور ته راغلل. د وخت پاچا (محمدظاهرشاه) امر وکړ چي جنازه دې په مخصوصه الوتکه کي کندهار ته انتقال سي. دغه وخت په کندهار کي د کولرا ناروغي خپره وه او د کندهار سره د کابل ترانسپورټي لاره بنده وه. د سنبلې پر پنځمه (۱۳۳۹ش) جنازه د ډېرو موټرو په بدرګه د کابل هوايي ميدان ته يووړل سوه او په الوتکه کي کندهار ته انتقال سوه. په الوتکه کي له جنازې سره د مولوي صاحب مېرمن، درې زامن (نوراحمد، بلال احمد، سيداحمد)، دوې لوڼي (رابعه، مريمه)، زما پلار حاجي محمود، زه (معصوم) او بشيراحمد ملګري وو. نوره الوتکه خالي وه. دغه وخت د کندهار نړيوال هوايي ډګر د جوړېدو په حال کي وو. په ميدان کي زموږ د کورنۍ نارينه غړي حاضر ول. جنازه د ارواښاد

عبدالباري واسعي په پيکپ موټر کي له هوايي ډګره تر هديرې پوري انتقال سوه. په هديره کي په سوو خلک حاضر ول او په ډېر عزت او درناوي سره خاورو ته وسپارل سو. فاتحه ئې د ملا ګلداد د کوڅې په جامع کي دوې ورځي واخيستله سوه. د ښار ټول اعزه او مخور ئې فاتحې ته راغلل د فاتحې په دوهمه ورځ د کندهار عسکري او ملکي مشر ستر جنرال خان محمد خان هم راغی.

کله چي جنازه د کابل له هوايي ډګر څخه د الوتکي په ذريعه پورته سوه او بدرګه کوونکي خپلو کورونو ته روان سول، په دغه وخت کي يوه بله دلخراشه واقعه پېښه سوه. په هغه موټر کي چي اروابناد عبدالخالق واسعي او مېرمن و اولادونه ئې سپاره ول، د بي بي مهرو کلي ته نژدې موټر له يوې ونې سره وجنګېدی، د واسعي صاحب مېرمن، زوی او لور پکښې شهيدان او پخپله واسعي صاحب[9] په سر او خوله کي سخت ټپونه وخوړل. دې واقعې په يوه غم کي بل غم جوړ کړ. خدای دې ټول وبخښي.

زه د مولوي صالح محمد خان اول لمسی وم، ځکه نو ډېر پر ګران وم او زياته پاملرنه ئې راته کوله. خو له بده مرغه د دغه ستر او عالي انسان له لارښووني څخه ډېر ژر محروم سوم. پر ما باندي نوم همدغه مهربان نيکه ايښی دئ. زه له پاک خدايه ډېر راضي يم چي ما ته ئې توفيق راکړ چي د خپل ژوند په ډېرو پېچلو مراحلو کي بالاخره هغه لاره وپالم چي مرحوم نيکه مي د ځان له پاره ټاکلې وه. دا لار هغه لار ده چي نه د ده په زامنو کي چا وپالله او نه ئې نورو لمسيانو و کړوسيانو.

زه له موضوع څخه د وتلو له ډاره د قلم څوکه بيرته د خپل تعليم زمانې ته راګرځوم. د لومړني ښوونځي دوره مي د سترګو په رپ کي تېره سوه او په ۱۳۴۰ش کال د ميرويس لېسې په اووم ټولګي کي کنښېنستلم. دغه ټولګي ته زما د ده خوجې لومړني ښوونځي پر همصنفيانو سربېره د کندهار له شالمار مکتب او تېمورشاهي ښوونځي څخه نور زده کوونکي هم راغلل او د لېسې تر پايه مي ډېر صميمي دوستان او ملګري پاته سوي دي. زموږ د دې نوي ټولګي (اووم صنف) همصنفيان دغه کسان ول:

ډاکټر محمدصديق ظهير، اوس په ويرجينيا کي اوسي.

محمدصديق حميدي (په امريکا کي د سرطان په ناروغي مړ سو).

نعمت الله عزيز (په ټورنټو کي اوسي. د کابل پوهنتون د ادبياتو پوهنځي د تاريخ له څانګي فارغ).

عبدالباري جهاني (مشهور شاعر، په ويرجينيا امريکا کي اوسي).

انجنير عبدالهادي دستيار (د کابل پوليتخنيک د معدن او جيولوژۍ د څانګي فارغ)، په هالينډ کي اوسي.

انجنير صلاح الدين (د کابل پوليتخنيک فارغ) اوس په مزارشريف کي اوسي.

انجنير نوراحمد (د کابل پوليتخنيک د بند و نهر له څانګي فارغ)، په کليفورنيا کي اوسي.

انجنير فيض الله ناصري (د کابل پوليتخنيک له سرکسازۍ څخه فارغ) اوس په ټورنټو – کاناډا کي اوسي.

عبدالقادر پالوال (د کابل پوهنتون د ساينس پوهنځي فارغ او د عالي دارالمعلمين

---

[9] عبدالخالق واسعي د مولوي صالح محمد هوتک د ماما زوی او اخښی (د ماندينې ورور) کېدی.

استاد) په کندهار کې اوسي.
قاضي محمدیعقوب (د کابل پوهنتون د حقوقو پوهنځي فارغ)، په کندهار کې اوسي.
سید محمدامین پالیال (د افغانستان د علومو اکاډیمۍ پخوانی غړی، د ادبیاتو لیسانسه)، په کوټه کې اوسي.
شېراحمد (د کابل پوهنتون د ادبیاتو پوهنځي لېسانسه)، په کابل کې اوسي.
عبدالعلي لعلی (د ادبیاتو لېسانسه، د حفیظ الله امین په دوره کې شهید).
اغامحمد (د پولیسو اکاډیمۍ فارغ) په کندهار کې اوسي.
عبدالمجید مل (بکلوریا پاس)، په کندهار کې اوسي.
سیدعبدالغفور (بکلوریا پاس)، اوس په ټورنټو – کاناډا کې اوسي.
عبدالواحد (بکلوریا پاس)، اوس په نیویارک کې اوسي.
محمدامین (بکلوریا پاس)، په کندهار کې اوسي. ولي محمد (بکلوریا پاس)، په کندهار کې اوسي. فیض محمد نومیر (بکلوریا پاس) په کلیفورنیا کې اوسي.
فضل محمد (بکلوریا پاس)، په کندهار کې اوسي. د تجربوي ښوونځي سرمعلم (۲۰۱۳ع).
شام لعل (د کابل پوهنتون د اقتصاد پوهنځي فارغ)، په ټورنټو – کاناډا کې اوسي.
نندلعل (د ملګرو ملتو مامور) په نیویارک کې اوسي. روشن لعل په امریکا کې اوسي. رام چند (د پولیتخنیک فارغ)، حال نه په لرم چې چیرې اوسي.
حبیب الله، فضل محمد، فضل باري (په دوی حال نه لرم).
نیازمحمد (د دوولسم ټولګي تر فارغېدو وروسته سمدستي د توبرکلوز په ناروغۍ مړ سو).
نور بیا ...

* * *

لیکوال: جبران خلیل جبران
مترجم: احمدالله څرګند

## هیله

درې خلک په یوه شرابخانه کې سره کېناستل. یو جولا وو، بل ترکاڼ او دریم ګورکېن وو.
جولا وویل: "نن مې د کفن لپاره یو ښایسته سان په دوو زرینو سکو خرڅ کړ. راځئ د زړه له اخلاصه شراب وڅښو".
"او ما"، ترکاڼ وویل: "ما یو نامي تابوت خرڅ کړ. د شرابو سره به ښه ډېر کباب هم وخورو".
"ما فقط یو قبر وکیندی"، ګورکېن وویل: "خو ګراک مې دوه چنده مزد راکړ. راځئ چې یو خوندور کیک هم وخورو".
په هغه شپه د شرابخانې کاروبار خورا جوړ وو، ځکه چې ګراکانو ئې هره لحظه د شرابو، کیک او غوښو فرمایش ورکاوه او ډېر خوشحاله ول.
د شراب خانې خاوند لاسونه سره ومښل او خپلې مېرمنې ته مسکی سو، دا ځکه چې ګراکانو یې خورا پیسې مصرفولې.
کله چې دوی تلل نو سپوږمۍ هم د آسمان پر سر وه، او دوی هم په نارو او زمزمو سرک په مخه ورکړی وو.
شراب خانه والا او مېرمن ئې د شراب خانې په وره کې ولاړ ول او ورته کتله ئې.
"هی!" مېرمني ئې وویل: "دغه ښاغلي ډېر خوشحاله او ډېر سخیان ول! که یوازې دوی هره ورځ راسي نو زموږ بخت به بیدار سي! او زموږ زوی به ولي شراب خانه کوي او ولې به سخت کار کوي. موږ به زده کړه په وکړو او یو پادري به ورڅخه جوړ سي".

## هارون خپل شعشعي / لندن

# وختونه او یادونه

دوهمه برخه

### د لالا عکاس د وطنپالني نه هېرېدونکي درسونه

کله چې د کابل رژیم د مزدورانو له خوا و وطن پر ښښوولو ته اړ وتم، څه موده شپه و ورځ په دې چورتو کې ډوب وم، چې څنګه له کابله ځان و باسم؛ ځکه دا مهال کابل ښار له څلورو خواوو څخه کلابند ؤ؛ شاوخوا تې د اردو، خاد او پولیسو امنیتي پوستې پرتې وې؛ او د ښار په هره کوڅه و بازار کې هم د عسکري جلب و احضار بې شماره عملیاتي ډلي ګرزېدې. له ځینو دوستانو او اشنایانو څخه مې د کومک غوښتنه وکړه، یوه دوست و دوو پېښوریانو ته معرفي کړم، چې له ده سره یې د سوداګرۍ اړیکې لاره. په هغو کې خو یوه له لویه سره، پاکستان ته د مهاجرت کولو سلا نه راکوله. څو واره یې په خبرو کې را ته و ویل: جي! د کابل دا خکلې (ښکلې) هوا څنګه پرېګدې (پرېږدې)؟ په پېخور کې خو به د ورځې یواځې د پینځلسو روپو اوبه

څکې (څښې)! بل یې ویل: رور (ورور) جانه: اوس لارې زخته (زښته) خراپې شوي دي. د لارې امنیتي پوستې ډېرې سختې تلاشي کیي. یو و نیم یې رشوت هم اخلي؛ خو له ځینو سره یې خدای قسم چې هېڅ مامله (معامله) نه کیګي (کېږي).

ما ته د پېښوري سوداګرو له دې بدبینانه او مایوسانه مشورو څخه تر یوه حده سیاسي او استخباراتي بوی را ولاړ سو. د کورودانې په ویلو سره مې رخصت ځنې واخیستئ.

د پېښوري سوداګرو تر دې نامېندوونکو جوابونو وروسته مې د یو بل دوست دروازه ور و ټکوله، چې هغه هم کله نا کله پاکستان ته د ځان او دوستانو د تګ را تګ خبرې کولې. په جواب کې را ته و ویل: ځیني کوچیان مې پېژندل، چې خلګ یې د پیسو په مقابل کې تر پېخوره رسول. په دې روستیو کې مې یو دوست ور وسپاره، خو نامردانو هم ډېري زیاتې پیسې ځنې اخیستي وې او هم یې په نیمایي لاره کې خوشې کړئ ؤ. بېچاره درې – څلور ورځې په

غرو او درو کې مزلونه کړي وه؛ په لار کې د مجاهدينو پر بېلابېلو ډلو اوختئ (اوښتی) ؤ؛ چا د خاديست، چا د صاحبمنصب، چا د پرچمي او خلقي په نامه مزبوته وهلئ ډبولئ ؤ؛ او څه پيسې چې ورپاتې وې، هغه يې هم ترې چور کړي وي. بېچاره پسله ډېرو سختيو په مړژواندي حالت کې تر پېخوره (پېښوره) رسېدلئ ؤ.

د دې خبرو په اورېدو سره مې خوله چپه ونيوله؛ او په مايوسۍ سره بېرته کور ته راغلی سوم.

څو ورځې مې د تېښتې پر بېلابېلو لارو چارو سوچونه او چورتونه وهل؛ خو د سرريښتې (سرربښتې) هيڅ څرک نه لګېدئ. په دې ورځو کې نابېره يو نيژدې خپل، اسلم جان، کور ته راغئ، چې تازه د کراچي له سفره کابل ته راستون سوئ ؤ؛ او په څو لنډو ورځو کې بيرته له خپل کور و کهول سره پاکستان ته رهي ؤ.

اسلم جان د لاس او پښې خاوند ؤ. له حکومت، رعيت او مجاهدينو ټولو سره يې اشنايي او انډيوالي لرله. څه سر به مو ګرزوم تر تقريباً دوو – دوو نيمو هفتو انتظار وروسته د اسلم جان د اشنايانو په کومک په حکومتي طياره کې خپل پلرني ټاټوبي، کندهار ښار، ته ورسېدو. شکرونه مې و ايستل، چې خدای په خير او سلامتۍ د کابل له کلابند ښار څخه و خپلي ازادي مځکي ته راوستم. دا خبره مي هم له ځانه سره پخه کړه، چې هيڅکله به پر نامالومو لارو، له ناولدو (نابلدو) خلګو سره ملګری نه کوم.

شپه مو په «منزل باغ» کي د اسلم جان دوی د خپلوانو کره تېره کړه؛ او په سهار يې د سفر په بندوبست پسي بازار ته و وتو. زه ډېر کلونه پخوا له کندهاره وکابل ته تللئ وم؛ او نورو کابليانو غوندي هورې کلابند پاته وم. دا اول وار ؤ، چې تر اوږده ځنډ وروسته پاکستان ته د مهاجرت په نيامت کندهار ته راغلئ وم؛ خو اسلم جان د جنګو او ناارامييو لومړي کلونه ټول په کندهار کې تېر کړي وه. په دې خاطر يې د کندهار په امنيتي، سياسي او نورو حالاتو تر ما ښه سر خلاصېدئ. ده به د ښار په بېلابېلو برخو کې د مجاهدينو او حکومتي قواوو تر منځ د جنګو او حملو کيسې را ته کولې؛ او ما به په ځير ځير غوږ پر نيولئ ؤ.

له دوراهي سره تر څه ځنډ وروسته و يوې زړې او بداوازه رخشې ته و ختو. د لارې په اوږدو کې مو په ډېره تلوسه د سړک د دواړو خواوو دوکانو او ودانييو ته کتل. د هغه ښکلي او سوکاله کندهارهيڅ اثر او نښان نه ښکارېدئ، چې تر جنګو او ناارامييو مخکې مي ليدلئ ؤ. هر څه پر بل مخ اوښتي وه. د ازرجي (حضرتجي) بابا و مخ ته له څو ماتو ګوډو رېړييو په ايسته، تر سردار مدد چوک پوري نه د خلګو د پخواني بېروبار څه اثر مالومېدئ، نه د جوپو جوپو بايسکلانو، شرنګولو رخشو، برېښندوکو بګييو او منظمو ښاري سروېسو څه نخښه پاته وه. خپلوان، دوستان، اشنايان، ګاونډيان، همصنفيان او داسي نور ګرده د جنګو له شامته يوې او بلې خوا ته خواره واره سوي وه. هر څه پردي او نااشنا ښکارېدل. له سردار مدد چوک څخه د شنو ګومبتو پر خوا رهي وو، چې نابېره اسلم جان و ويل:

– هارون جانه! ته راځه چي اول د ولايت د دروازې سره يو څو عکسونه واخلو، وروسته به پر ارامه د چمن د موټرانو پوښتنه وکو. په پاکستان کې د مجاهدينو د يوه تنظيم کارټ درلودل ښځي ضروري دي. ما تېره پلا په کوټه کې د محمدنبي د حرکت اسلامي کارټ واخيستئ؛

خو د کوټي څخه د راتګ پر مهال په ارغنداو
کي را څه (څخه) ورک سو. اوس مجبوره یم
ستا سره یو بل واخلم. که کارټونه و نه لرو د
پاکستاني پولیسو د لاسه به روز نه سو
کولای؛ هره ورځ به رنګارنګ دوسي را ته
جوړیږي؛ او لنګي غوا غوندي به مو په دې او
هغه بانه لوشي. نور دپترونه خصوصاً د
ګلبدین دپتر چا ته په اسانۍ کارټ نه
ورکیږي. د حرکت دپتر پینځلس کلداري
پیس (فیس) اخلي؛ او په پینځو دقیقو کي
خپل کارټ راکیږي.

– اسلم جانه! زما و ستا فقط کارټ په
کار دئ، چي د پاکستاني پولیسو خوله په
بنده کو، په نورو خبرو پسي بې سره نه
ګرزوو؛ خو دا دي ډېره ښه خبره وکړه، چي
عکسونه مو اوس لا تیار په جېب کي پراته
یي.

– هو ترکوټي دلې ارزانه هم لوېږي.
اسلم جان په خندا و ویل.

د ولایت تر څنګ په کواړي بازار او د
سړک پر بله غاړه د خلقي (خرقې) شریفي و
شاوخوا ته چپه چپتیا وه.

– اسلم جانه په یاد خو به دي یي، چي
د ارامۍ په کلونو کي پر دې لار د موټرو،
رخشو او لارویانو له بیروباره رؤ نه کېدئ.

– هارون جانه! هغه زمانې ولاړې. په
هغو کیسو به نور سر نه خوږیې!

زما او اسلم جان دردونکې مرکه لا
روانه وه، چي د ارګ چوک ته نیژدې د
عسکري تشکیلاتو د پخواني مدیریت و مخ
ته د فوري عکسو زړه درې پنبې لرونکې
کامره را ښکاره سوه. څو شېبې وروسته مي
پر هغه شناخته لالا هم سترګي و لګېدې،
چي له کامرې څخه څو ګامه آخوا د دېوال و
څنګ ته پر خپله محقره لرګینه چوکۍ
ناست ؤ. لالا مي کلونه کلونه پخوا د ارامۍ او
سوکالۍ په زمانه کي و خپل کور ته نیژدې د
سرپوزې د ترافیکو د مدیریت و مخ ته لیدلئ ؤ.
په دې زړه چادونکو شرایطو کې له لیدو څخه
هېښ پېښ سوم.

لالا، چي اوس مې نوم هېر سوئ ؤ، د همغو
ارامو او سوکالو زمانو په شان اوږده وېښتان، غټ
برېتونه او بېتلان (شقیقې) پریښي وه. پخوا به
هم همېشه په دریشي کي ګرزېدئ، نن یې هم د
امنیتي شرایطو او مسلط رسم و رواج پر خلاف له
نسواری رنګه پتلانه سره بانجني رنګه ګلداره
کمیس اغوستئ ؤ.

– لالا ته خو لا تر اوسه دلې یې! په خندا
خندا مي ور ږغ کړه.

– سه (څه) وکو؛ چیري ولاړ سو؛ دا مو
کور او وطن دئ؛ څو واره مو کور په راکټو و
ویشتل سو؛ مګر موژ (موږ) بیا هم دلې ور ته
ناست یو.

لالا د اوږده څند او شکلي بدلونو په وجه
ځای ته ور نه وستم؛ خو د سرپوزې د ترافیکو
مدیریت و مخ تې د خپل کار خاطرې ټکی په
ټکی، په یاد وې.

– لالا! د کابل بازار او ښکاپر بازار د
خوندورو جلبیبو، میټایانو او ترخو پکوړو
دوکانونه اوس هم سته که یا؟! اسلم په خندنۍ
لهجه پوښتنه څني وکړه.

– یو دوه دوکانه پاته دي، خو هغه پخوانی
حساب و کتاب یې نسته. ستاسي به په یاد یي،
چي یو وخت به د شپې تر ناوخته د هندوانو
دوکانو خلاص وه. مسلمانانو او هندوانو به
سوداوي څني کولې. اوس د پخوا یو پر سلمه
خلګ هم نه دي پاته.

وروسته مي له لالا څخه د ښار د نورو
هندوانو پوښتني وکړې.

– د کابل بازار او ښکاپر بازار ډېر هندوان

ولاړه.

– چیري ولاړه؟ ما پوښتنه وکړه.

– ځیني هندوستان ته ولاړل، ځیني کابل ته ولاړل، ځیني پر نورو خواوو ولاړل.

– اوس څوک پاته دي؟

– هو یو څه پاته دي. زموږ کور هم اصلاً په کابل بازار کي ؤ، خو په جنګو کي و نړېدئ. اوس په ښکارپر بازار کي د خوسر (خُسر) سره ژوند کوم.

– لالا له دې پټلانه، خریلي ړیري او اوږدو بېټلانو سره څنګه په دې ځنګله کي ژوند کیې؟! اروېدلي مي دي، چي د مجاهدینو ډلي کرې شپه د ښار په بازارو او کوڅو کي دې خوا آخوا چکرونه وهي.

– مجاهدین خو د ورځي هم ګرزي؛ مګر د لالا سره هیڅوک غرض نه لري. که حکومت دئ، که مجاهدین دي دواړه زموږ ورونه دي. دواړي خواوي پوهیږي، چي هندوان بې غرضه خلګ دي.

– لالا دا راته و وایه، چي د ښار هندوان اوس هم د خوجه (خواجه) خضر مېلو ته ځي که څنګه؟!

– عجبه خبره دې وکړه. د خوجه خضر مېلې بیا چیري راځي. هغه وختونه ولاړل، چي هندوان به شپه و ورځ په پښو یا په ګاډییو کي د زاړه ښار پر لار و خوجه خضر ته تله او راتله.

لالا دا خبري په داسي غمجنه او خواشینوونکې لهجه وکړې، چي له ورایه یې د هغه د ژور درد او حسرت استازیتوب کاوه.

د لالا له دې خبرو سره مي سمدلاسه د کوچنیوالي هغه خاطرې و سترګو ته ودرېدې، چي څه د پاسه څلویښت کاله وروسته مي هم پرون غوندي په ذهن کي تازه دي؛ او په هر وار یادولو سره یې تر پخوا ډېر شرمېږم. ښه مي یادیږي، چي د کندهار د خوجه خضر و مېلو ته به د ښار پر هندوانو سربېره د افغانستان د نورو ولایتو او آن هندوستان هندوان هم را تله.

که څه هم خوجه خضر د هندوانو درمسال یا عبادتځای ؤ، خو د مېلو پر وخت به د شاوخوا سیمو مسلمانانو هم د سیل او ساتېري په خاطر، په ازاده پښه برخه پکښې اخیستله. هر چا به نوي یا پاکي جامي اغوستي؛ وېښتان په شرشمو یا نورو تیلو مزبوته غوړ کړي؛ رنګارنګ عطرونه او خوشبویي ګاني وهلي؛ د خوږو میټایانو، ترخو پکوړو یا نورو نشو و پاڼو لوښي په لاس کي نیولي، د بشپړ امنیت او خوشالۍ په فضا کي کله کله په پښو، خو زیاتره د ښار په ښکلو او جل و بل بګییو کي د خوجه خضر پر خوا رهي وه. دا مهال زما د جهالت او شیطنت وختونه وه. ما او د کوڅې ځینو نورو شوخو همزولو به د مسخرو او ساتېري په مخسد په ګاډییو کي سپورو هندوانو ته چغې ور وهلې:

– لالا! لالا!

کله چي به هغوی زموږ و خوا ته مخونه را واړول، نو موږ به په همغسي لوړ اواز ور ږغ کړل:

– ژړه غوا مړه سوه.

تر دې شیطنت او شرارت وروسته به په تراټ د کوڅې په پای کي چیري پټ سوو.

ځینو لالاګانو به زموږ کوچنیوالي ته په کتو سره له صبر او زغمه څخه کار اخیستئ؛ څه بې نه ویل؛ خو ځینو نورو به فوراً په خښم او عصبانیت را غبرګه کړه؛

– ستاسي مور مړه سوه.

موږ چي په حقیقت کي نه د ژړې غوا په مفهوم پوهېدو؛ او نه مو د خپلو مندو د مړیني په مانا سر خلاصېدئ، یوازي به د لالا ګانو پر ځورولو خندېدو؛ او د هغوی له خښمېدو او عصبانیت څخه به مو خوندونه اخیستل.

د کوچنيوالي د شيطنت او شرارت د دې کيسې پر خلاف مې د زلميتوب د زمانې يوه بله خاطره را هم په ياد سوه، چې د موضوع له اړخه له دې خاطرې سره بې ارتباطه نه ښکاري. کيسه داسي وه، چې زموږ کور کابل پوليتخنيک ته مخامخ د کارتهٔ مامورين په سيمه کي ؤ. يوه ورځ د کور مخ ته په تمځای/تمځی کي و برقي سروېسو ته منتظر وم. سروېس ته د پورته کېدو پر مهال مي و څنگ ته يو سپينږيرى سيک (سپينږيري سيکهـ) ولاړ ؤ. ما سيک بابا ته په پارسي و ويل: سردارجي بفرماين (بفرماييد). سرويس ته تر پورته کېدو وروسته سردارجي يوې خوا ته ودرېدئ؛ او زه څو گامه ليري و بلي خوا ته. په دې وخت کي د پاخه عمر يو توربخونه، کم جانه، گيردي سړي، چې ږيره او برېتونه يې پاک خرېلي؛ نسواري درېشي يې اغوستې او پولادي رنگه قره قلي يې پر سر وه، په داسي خښم او عصبانيت زما خوا ته را تېر سو، چې غوښتل يې بې له سوال و جوابه مي څو مزبوتي چپلاخي تود کي:

– او بچه! د وخت بالا شدن ديدمت، که او دو روپه سيکه (سيک را) سرادرجی خطاب کدی (کردی). تو نمی فامی (فهمی) که سردار لقب کيست؟!

– نی کاکا جان تا حال جايی نه شنيديم!

– سردار لقب پيغمبر ماست؛ ازی خاطر تو حق نه داری، که هندو و سيکه (سيک را) سردار بگويی.

– کاکا جان! مگر پيغمبر ما هيچگاه احترام به بزرگان ديگه ادیانه (ديگر اديان را) منه (منع) نه کرده. با سردارجی گفتن مه دل او بېچاره خوش شد، حال آن که از اسلام و مسلمانی مه يک سر موی کم نه مېشه (نمی‌شود).

متعصب کاکا لا همغسي سور و شين کېدئ، چې د سروېس نورو سپرليو بگانې وکئ؛ زې (زه يې) يوې او دی يې بلي خوا ته کش کئ؛ او په دې ترتيب هغه لفظي شخړه پای ته ورسېده، چې کېدای سوای په لويه فتنه واوړي.

خير، له لالا عکاس سره تر اوږدو خبرو او مرکو وروسته لومړی اسلم جان له سپيني رخچيني او بيا زه له خپلي ماشي رنگه لونگۍ سره د کامرې و مخ ته کښېنستو. لالا، د کامرې په مربع ډوله سندوخ (صندوق) کي تر څو واره کتلو او لاس ننيستلو وروسته د کامرې د اوږدې، پنډي او نسبتاً خيرني کځوړي له لاري داسي ښکلي او روښانه عکسونه راوايستل، چې له برقي عکسو سره يې سيالي کول.

له لالا سره مو پر همغه ځای خدای پاماني وکړه؛ او د چمن د موټرانو په سرريښتې پسي د شنو گومبتو خوا ته روان سوو. ما او اسلم جان له وطنه د تښتي لاري چاري سنجولې، خو لالا په متانت، مړانه او ټينگ هوډ د وطن په کنډواله بازارو او کنډوکپر کوڅو کي له يوه عالَم خوراييو او کړاونو سره د اوميدوارۍ، باور او اطمينان شپې و ورځي سبا کولې. د لالا دا خبري مي له هغې ورځي څخه تر نن پوري همېشه په مغزو کي ازانگې کيي؛ او په هره پلا يادولو يې له شرمه تر مځکي وزم:

چيري ولاړ سو؛ دا مو کور او وطن دئ.

### موږ لکه د هندوانو مؤمنان نه مسلمانانو په ځان گڼولو نه هندوانو

د اسلم جان د ټينگار له مخي مو، کوټې ته تر رسېدو وروسته، سمدلاسه د مهاجر کارټ

جوړولو و کار ته ملا و تړله. پښتون اباد د خلگو له گڼي گوڼي، د رخشو، موټرانو، موټرسیکلانو او بایسکلانو د هارنو، د ښانو او ټټارانو د سوټک وهولو له اوازو او نورو دوکاندارانو له چغو او نارو څخه پر له چوپړدئ. د یوه تنگ او چټل سړک پر غاړه و ښاري سروېس ته و درېدو. څو دقیقې وروسته د کوټي شرنگولي ښاري سروېس، چي سر تر پایه په برېښندکو پلاستیکانو، سپینو ځنځیرانو او ژړو زنگولو پوښلی ؤ؛ او له هر وار شرنگېدو څخه بې په زړه پوري رغ پورته کېدې، په تېزی له تمځای سره ودرېدئ. د سروېس په منځ کي د نارینه او ښځو د بېلولو دپاره داسي پنډه خیرنه پرده ځړېدله، چي تر سوریانو او چولو یې دواړو خواوو په اسانی یو بل ته کتلای سوای. په سروېس کي درېدو ډېر په تکلیف کړو؛ ځکه د موټر چت دونه کښته وه، چي تا به ویل د کوچنیانو یا لنډ قدو خلگو دپاره جوړ سوئ دئ. څو شېبې وروسته اسلم جان را رغ کړه:

– هارون جانه راځه کښېنه!

– دا څونه تنگي ترشي چوکۍ دي. ما ور ته وویل.

– راځه وروره! دا پاکستان دئ. دلته د کابل د ملي بس چوکۍ نسته. آ مُرداري، خیرني پردې تې نه گورې، چي د موټر په منځ کې ځړولې ده. تا داسي پرده کله په کابل یا کندهار کي لیدلې وه؟ آ بله پلا چي راغلئ وم، یوه ښځه، کوچنی یې هم په غېږ کي، له مازدا څخه د کښته کېدو پر مهال پر سړک ولوېده؛ موټروان، کلېنر او نورو ټولو په رډو سترگو ورته کتل، خو هیچا یې پوښتنه لا ولا که کړې یې. ته گورې نارینه او ښځي گرده په څه ځغاستبه کښته کیږي، پورته کیږي. په دې ملک کي د مساپرو د ارامۍ او اسرهت خبري نسته. چوکۍ ئې هم په دې خاطر تنگي ترشي جوړي کړي دي، چي ډېر خلگ پکښې تخته کي.

– اسلم جانه! مگر دا دي و نه ویل، چي کلېنر او مساپر ولي موټر په چپلاخو وهي؟

– هو! دا د پاکستان جال دئ. شاید د انگرېزانو څخه به په میراث ور پاته یې. هر سواري چي کښته کیږي، تر کښته کېدو دمخه د موټر چت په زوره په چپلاخه وهي. موټروان چي د چت اواز واوري، په دې پوه سي چي څوک کښته کیږي. کلېنر هم چي د موټر باډۍ په چپلاخه وهي، مخسد یې د موټر درول دي.

– آ ښه دا بیا څه مانا لري، چي کلېنر څو واره لېوني غوندي د موټر باډۍ په چپلاخو وهي، خو موټر وار په وار لا پسي تېزیږي.

– ښه ښه پوه سوم. د دې پرله پسې چپلاخو مانا دا ده، چي اکسلېټر ورکوه، نور د پورته کېدو یا کښته کېدو څوک نسته.

– ښه ښه.

کلېنر یا د دوی په اصطلاح کلېنډر، د «جناح روډ»، «کنداري بازار»، «سریاب روډ»، «کاکړ کالونۍ» او داسي نورو ځایو نارې وهلې، زه او اسلم جان په رفتار کي له مازدا څخه کښته سوو؛ او د حرکت اسلامي د دپتر پر خوا ور رهي سوو. د دپتر مخ ته دوه درې نوي دوه سیټه ټویټاوي ولاړي وې. د موټرانو تر څنگ پر یوه تخت، چي سره افغانۍ غالۍ پر هواره وه، څو مجاهدین په خبرو او مرکو اخته وه. تر دوی تېر سوو؛ او د دپتر په خوله کي مو بوټونه و ایستل. تر سلام اچولو وروسته په ډېر ادب او احترام پر هغو نسواري رنگه لرگینو چوکییو کښېنستو، چي د آمر صاب د لوی توربخونه مېز و مخ ته اینبوول سوي وې. د دپتر آمر، چي د دېرشو – پینځه دېرشو کالو په شاوخوا کي ښکارېدئ: او له شتري رنگه پاکستانۍ سدرۍ سره یې خره

زرينليکې لونګۍ ترلې وه، لس - پينځلس دقيقې بې څه پوښتلو او څه ويلو يوازې و هغه خط ته په ځير ځير کتل، چې د مېز پر مخ يې پروت ؤ. د آمرصاب دې بې تفاوته او ناګاره چلن بالاخره زموږ دواړو حوصله ختمه کړه. څو شېبې وروسته اسلم کرار کرار مېز ته ور نيژدې سو؛ او په ډېره مودبانه لهجه يې ور ته وويل:

– آمر صاب! موږ مهاجر کارټو ته راغلي يو. زما مهاجر کارت يوه مياشت دمخه په ارغنداو کې ورک سو. اوس غواړم يو بل واخلم. وروسته يې زما خوا ته په اشارې کولو سره زياته کړه: هارون مې د خاله زوی دئ. دی هم مهاجر کارت غواړي.

– در بې کو. ته يو ګړی هلته کښېنه. آمر صاب په آمرانه لهجه وويل.

تر څو دقيقو سوچ وهلو وروسته، آمر صاب پر مېز پراته کاغذونه او خودرنګه قلم يوې خوا ته کښېښول؛ او په کراره يې پوښتنه وکړه:

– عکسونه مو راوړي دي؟

– هو عکسونه تيار دي. اسلم ورغبرګه کړه.

داسې مالومېده لکه د آمر صاب چې د اسلم څېره له تېري کتنې څخه په ياد وه؛ ځکه يې نو بې څله ويلو او څه پوښتلو په دوو – درو دقيقو کې نوی کارت جوړ او مخ ته کښېښاوه.

– تا ته خو مالومه ده، چې زموږ د کارت بيه پينځلس کلداري ده.

– هو خبر يم. دغه يې پينځلس کلداري دي. اسلم ورغبرګه کړه.

وروسته زما رَوَن را ورسېدئ.

آمر صاب زما په ليدو سمدستي و اسلم ته مخ ور واړاوه:

– د خاله زوی دي کله راغلئ دئ؟

– دا اوس زما سره راغئ.

– څه کار يې کاوه؟

ما او اسلم، چې پخوا لا پر دې مسأله خبري کړي وې، په ګډه مو ورږغ کړل:

– دوکانداري.

که څه هم زه خپله مخامخ ورته ناست وم، خو آمر صاب زما په باره کې د هري خبري جواب له اسلم څخه پوښتئ. کله چې مو د دوکانداری ټکی تر خوله را و وتئ، آمر صاب يو دم قلم پر مېز کښېښاوه؛ او په تعجب سره يې و ويل:

– څنګه دوکانداري؟

مانا يې ښايي دا وه، چې د ده پاک کالي، منظمه لونګۍ او لنډۍ ږيره خو د دوکاندارانو ته نه ايسي. اسلم چې د آمر صاب په شک او ګومان سد و رسېدئ، سمدلاسه يې په هوښياری سره ژبه واړوله:

– يو څو کاله يې مکتب و وايه. وروسته يې کتاب او مکتب پر لو لار پرېښوول؛ او د پلار سره يې د کواړي دوکانداري شرو کړه.

د آمر صاب زړه د اسلم په دې بيان هم صبر نه سو. د شک او ناباوری په ډول يې و ويل:

– مخسد مې دا دئ، چې په حکومت موکمت کې خو بې کار نه کاوه؟

– يا يا حکومت څه کيي، خپل دوکان لري. څورلس- پينځلس کاله کيږي، چې د سپينږري پلار پر دوکان ناست دئ.

تر دې اطميناني خبرو وروسته د آمر صاب تندی وغوړېدئ؛ او په نسبتاً خندنی لهجه يې و ويل:

– ښه ښه چې په حکومت او مکتب کې نه يې، نور سر مه ګرزوه! د ده کارټ هم پينځلس کلداري کيږي.

پينځلس روپۍ مې پر مېز ور ته کښېښولې؛ مهاجر کارټ او د حرکت انقلاب

اسلامي د غړيتوب زرغونه کارټ مي را واخيستل. خدای پاماني مو ور سره وکړه؛ او له دېتره يې را ووتلو.
– اسلم جانه! د کواړي تر دوکاندارييه مي د احسان کيسه را په ياد سوه.
– ستاسي احسان ښيې!
– هو.
– تې وکه چې هغه څه کيسه وه.
– د دې شر و شور په اولو کلو کي يو وخت احسان له کندهاره په سروېس کي کابل ته رهي ؤ. د مېزان يا عقرب مياشت وه. د ښايسته چوبي انارو يو دوه کرېټه يې هم له ځانه سره اخيستي وه. د کلات په شاوخوا کې سروېس مجاهدينو گرځولئ ؤ. ده ول، په دې ورځ يې د کابل او کندهار د لاري نور ډېر موټران هم را گرځولي وه. ټول مساپر يې له سروېسو څخه را کښته کړل؛ ښځې او کوچنيان يې د سړک پر غاړه ايله کړل؛ خو موږ يې د پسو او وزگړو د لويې رمې په شان مخ پر غرونو هی کړو. داسي يې ځغلولو لکه وحشي لېوانو چې د پسو او وزگړو رمه پسي اخيستې يي. چا چې به لږ نوکي ځان و ځړاوه، تر شا بې د توپک ټکان پر وکړه. درې – څلور کسان، په لار کي و ويشتل سوه؛ او هورې پر مځکه ولوېدل. ده ول کله چې به ما داسي صحنه وليدله، هوسی غوندي به مي يو يو متر خېز واهه؛ او د نورو خلگو په منځ منځ کي به ځغاستم. له دې ېېري چې مبادا کمه گولی مولی را پکښې و موښلي. هر څوک د خپل نفس غم اخيستئ ؤ.
څه اوږدې و لنډې به درته کوم، کله چې غرونو ته بېولي وه، له هر چا څخه يې پوښتني گروېږني شرو کړي وې. اوله پوښتنه يې د کار او دندې په باره کي وه. چا ول متعلم يم، چا ول معلم يم. چا ول عسکر يم، چا ول څښي، چا ول څښي. هره ډله يې په جلا جلا ځايو کي کښېنوله. ده ول ما په لار کي لا د پوهنتون کارټ و غورځاوه. کله چې د کار او کسب پوښتنه را څه (څخه) وکړه، ما ول دوکاندار يم. دوه – درې سوکان يې کش کړم. ول دا خرېلې رېره او پاسته لاسونه خو دي د دوکاندار نه دي. ول ما په جواب کي ورته و ويل، چې ورورِه زه خو د کواړي دوکاندار يم، نه خښتي موږم نه روزانه کوم، چې لاسونه مي تناکي يا چاودلي يي. تر دې خبرو وروسته يې د دوکاندارانو او کسبکارانو په ډله کي کښېنولئ ؤ. درې ورځي وروسته يې د همغي ډلي له نورو کسانو سره را ايله کړی ؤ. کور ته چې راغئ له ډېرو يخو او تکليفو څخه تک تور اوښتی ؤ.
– دآ نورو کسانو په باره کې څه و ويل؟
– دآ نورو بېچاره گانو دَرَک مالوم نه سو. زما په گومان د انگار صاب زوی – انجينر زلمی انگار هم په همدغه ډله کي ؤ، چې بيا يې سنه و تذکره چا و نه ليدله.
– په دې حساب خو نو د کواړي دوکانداری د احسان ژوند هم د مرگه ساتلی دئ.
– ريشتيا وايې، خدای تعالی يې د همدې دوکانداری په سَوَب ژوند له مرگه خلاص کئ.
اسلم جانه! د افغانستان و دې کرغېړنو سياسي شرايطو ته چې سړی وگوري، موږ و تاسي غوندي خلگ د هندوانو د مومنانو مثال لرو، چې نه يې خپل هندوان په ځان گڼيي، نه يې مسلمانان. د کابل رژيم مزدورانو د مخربينو او مخالفينو په نامه يادولو؛ خو د «دين غازيان او غاوران» بيا د حکومتي کار يا تعليم او تحصيل په خاطر د کمونيسټ او ملحد ټاپې را باندي وهي.
– هارون جانه! ښه مي سر په خلاص دئ. ټوله دونيا و تعليم يافته سړي ته د قدر او عزت په ستر گه گوري، خو په دوی کي څوک د خپل تعليم و تحصيل نوم هم نسي اخيستلای.

اسلم جان د کوټي په کمپو کي د ځينو خپلوانو او اشنايانو د ليدو دپاره ځو ورځي په کوټه کي پاته سو، زه په سبا ماښام د کراچي پر خوا رهي سوم. تر ځو ورځو بېکارۍ وروسته مي د «سوهراب ګوټ» په «الآصف پلازا» کي د کابل د وختو يو فاضل او معزز دوست وليدئ، چي دا مهال يې د جمعيت اسلامي په مدرسه کي د سرمعلمۍ چاري پر غاړه وې. «الآصف» د افغانانو د اوسېدو او کاروبار داسي ځای ؤ، چي د غيرقانوني وسلو، نشه يي موادو، قاچاقي سامانو، انسانوژنو، شخړو او سلو نورو فتنو په سوَب يې په ګردو کراچي کي تور نوم پروت ؤ.

استاد ميوندي صاب تر روغبړ او لنډي پوښتني وروسته را ته و ويل:

– که بل کار نه لرې، راسه دلته معلمي وکه! درې درې مياشتي وروسته اته سوه کلداري تنخا درکيي. د کور د کرايي کار خو به دي په کيږي.

دا وخت کاملاً يوازي وم. بې له ده مي د بل هيڅ دوست او اشنای ځرک نه لاره. د مهاجرت په يوازيتوب کي د دوستانو، هغه هم داسي نېک او فاضل دوست و مجلس ته ډېر تږی وم، سمدلاسه مي ور سره خوښه کړه.

د خپلي محقرې ادارې د مېز له جعبې څخه ئې يوه ورقه کاغذ را و ايستئ؛ او را ته ويې ويل:

–و نيسه پر دې کاغذ خپل درخواست وليکه!

يوه شېبه وروسته يې سر غوړ ته را نيژدې کئ؛ او په بوڼ بوڼ يې را ته و ويل:

– پام چي په درخواستي کي د خپلو تحصيلاتو او ماموريت په اړه څه و نه ليکې. دا خلګ له دې خبرو څخه ډېر بد وړي.

ما چي پخوا لا په کوټه کي د حرکت اسلامي د دپتر د آمر عکس العمل ليدلئ ؤ، په دې خبره ښه پوهېدم. غوښتنليک مي وکښئ؛ او له همغې ورځي څخه و معلمۍ ته و درېدم.

نور بيا...

* * *

ليکوال: جبران خليل جبران

مترجم: احمدالله څرګند

## هوښيار باچا

يو وخت په يو ليري ښار، ويراني کي، يو باچا واکمن وو چي هم هوښيار هم زورور وو. د ښار خلک يې له زوره بېربدل خو د هوښيارۍ په خاطر پر ګران وو.

د ښار په منځ کي يو څاه وو چي اوبه يې يخي او رڼې وې؛ ټولو ښاريانو د باچا او د هغه درباريانو په ګډون، اوبه ور څخه چښلې، ځکه چي هلته بل څاه نه وو.

يوه شپه چي ټوله بيده ول، يوه جادوګره ښار ته راغله او د يوې نااشنا مايع اووه څاڅکي يې په څاه کي وڅڅول او ويې ويل: "سر له اوسه چي څوک دغه اوبه وچښي نوارومرو به لېونی کېږي".

کله چي سهار سو، له باچا او درباريانو پرته، ټولو ښاريانو د څاه اوبه وچښلې او لکه څنګه چي جادوګري وړاندوينه کړې وه ټول لېوني سول.

د هغې ورځي په اوږدو کي د ښاريانو له خوا اوازې خپرې سوې، په کوڅو او بازارونو کي به يې يو بل ته په غوږ کي ويل: "باچا لېونی دئ. زموږ باچا او وزير خپل عقلونه له لاسه ورکړي دي. موږ لېونی باچا نه منو. موږ بايد دی له واکه ايسته کړو".

په هغه شپه باچا امر وکړ چي د سرو زرو يو ګيلاس د څاه له اوبو ډک کړي. کله چي يې جام ورته راوړ، باچا پر سر پورته کړ، وروسته يې جام خپل وزير ته ورکړ او هغه هم اوبه ور څخه وچښلې.

ها بس، په ويراني ښار کي خوشحالي ګډه سوه ځکه چي باچا او وزير بېرته پر سد سوه.

# د عبدالرحیم هاتف لیکونه

## (د عبدالظاهر څرک په نوم)

۱۹۹۸/۲/۱۶ع

څلرم لیک:

ظاهر جانه! السلام علیکم

دوعا کوم چې د دوستانو او متعلقینو سره روغ او جوړ اوسې. د روژې کوفتونه او د اختر ستړیاوي دې په خیر تېرې کړې وي. تا د موجوده قشر په باب په خپله ښه صحبت کړی دئ، هم دې د مرحوم شهید شفیق ښه اقتباس راوړی دئ.

ما هم کله کله د دغې فرقې سره تماس درلودلی او څه خاطرې ئې راسره دي. که څه هم زما د نیکه نوم او شهرت دواړه "ملا محمدنور" وو، حتی ځینو خلګو لا زه اخندزاده هم بللم. خو اوس زما موقف داسې راغلی دئ چې که زه خپل د ستر ګو لیدلي حالات یا د غوږو اورېدلي روایات یا د خپل ذهن ذخیره کړي خاطرات هم بیا ووایم څوک به ئې بې غرضه و نه ګڼي، ځکه نو زه خپل ډېر ږغېدل په دې باب مناسب نه ګڼم. خو یوه حادثه مې ښه په زړه ده، چې یو

چیري د پلوخورۍ په محفل کې یاده سوه چې د کابل په تفسیر کې ئې لیکلي دي چې باران له اوریځې رااوري. په مجلس کې ملا غلام دستګیر اخند حاضر وو. د دې روایت په اورېدو سره ملا صاحب سور سو، شین سو، زرغون سو، ښار ګونه ئې وپړسېدل، عصبي سو، په رېږدېدو سو، پر ګونډو سو، جدي سو، او دا وینا ئې ډېره جاهلانه یا له بداعتقادۍ څخه ناشي وګڼله او وئې ویل چې: دا خبره غلطه ده. اصلي خبره دا ده چې باران له آسمانه را اوري، نه له اوریځې څخه. د ملاصاحب سره خو چا استدلال هم نه سوای کولای، خلګ پټه خوله سوه، خو لکه ملا صاحب چې د چا په ستر ګو کې د انکار علامې لیدلي وې نو ئې د حُجت البالغه په دود قسم واخیست په جدي قسم باندي او وئې ویل: "که په داسي حال کې چې پر مځکه د شرپ باران اوري، پورته هم تخته او توره اوریځ وي او ما د دې خبرې د اثبات له پاره څوک په طیاره کې سپور کړي تر اوریځې مې پورته کړي او دا راښکاره کې چې

هلته غوړ لمر ځلېږي او باران هم نسته هم دي زما په هغه قسم قسم وي چې زه به دا نه ومنم چې باران دي له اوريځې را واوري.

ملا صاحب د حق او باطل د تفريق له پاره خپل قسم نهايي دليل وګاڼه او د حق تعالی کلام ئې "د ده په زعم" په خپل قسم او لوړه د منکرانو د اذعان وړ وګرزاوه. دا منطق نو چا ورسره ويلای سوای چې سما په عربي کي لوړي ته وايي او سحاب هم د باران منبع بلل سوی. نور تحقيق او خبري خو لا بېل فصل او باب دئ.

د دوی مسلماني په دغه کي ده چې د خدای تعالی لايتنهاهي دنيا داسي د خپل محدود ذهن له پاره متناهي کړي چې هغه احاطه پر ولري، ځکه که د ده د محدود علم له احاطې څخه کوم شی ووزي نور خو د ده علم او منطق ورسره ختم سي، له دې قبيله مي ډېري افسانې او تُرت د کفر حکمونه په ياد دي. خو مثال دغه يو بس دئ. اوس که زه د کندهار د شريعت ږغ[1] له اورېدو څخه محروم يم خو برابر پنځوس کاله مي د عقل او بلوغ په حالت کي مخامخ او په مړه خېټه د کندهار د شريعت ږغ له ډېرو او مختلفو منابعو څخه اورېدلی دئ. هغه اوړده او منظمه استماع د نظريې قايمولو له پاره کفايت کوي، حتی اوس لا هم کله کله د کابل د شريعت ږغ له لاري د جناب علامه شيخ الحديث مولانا عبدالعلي اخند فتاوی او درافشانې اورم، تر دغه حده چې يوه ورځ ئې په خپلو افتخاراتو کي په دې وياړل چې دی د ملا غلام دستګير د شاګردانو له جملې څخه دئ. د کوم چې د قسم توسل ئې ما وړاندي درته وليکه.

نو: درخانه اګر کس است، يک سخن بس است.

که کله څوک دا قوم د قرآن قضاوت ته راوبولي، جواب ئې دا وي: شينکيه ته هم اوس دونه سوې چې په قرآن وپوهېږې؟ ته ناسخ او منسوخ پېژنې؟ تا ته د آيتو شان نزول درمعلوم دئ؟ دا خبري مي پخپله هم د ځان په باب هم د نورو په حق کي اورېدلي دي. اوس نو کوم دئ هغه نر چي و ده ته ووايي چي د احبارو او رهبانانو په څېر د خدای تعالی د کلام فهم مه انحصاروئ او د بني اسرائيلو د ملايانو غوندي د خپلي ناپوهی په نتيجه کي د خدای د کلام ځيني برخي مه منسوخوئ، يا د قرآن عالم شموله مفاهيم چي د خدای دين ئې تر قيامته تکميل کړی دئ، د شان نزول د داسي وړې حادثې تابع مه ګرزوه، چي حتی ډېره ځله د هغې په باب هم روايات يو ډول نه وي، مخالف او حتی متضاد وي او د راويانو ثقت ئې هم د سوال مورد ګرزېدلی وي.

ستا فرموده چي دا مخلوق په ډېرو خبرو نه ارزي خو په هر صورت خبري ډېري سر ئې يو. اصلي خبري د حکم تنده ده نه د حکمت لوږه، ځکه په حکمت هر څوک موړ دئ. پوره دئ. موړ او پوره خو لا څه کوې چي خواږېته وي او اروی ئې لا هم بد وي. اما د قدرت لوږي سکندر تر توري تياري تېر کړ او د پيسو هوس قارون په مځکه ننه ايستی.

تا په خپل ليک کي د مرحوم سرور کاکو يوه قصه د جناب مرحوم او مغفور شيخ صاحب په روايت کښلي وه. زما دا فکر دئ چي ته هغه وخت ډېر کوچنی وې، ممکن د مرحوم شيخ صاحب روايت دي په حافظه کي سالم نه وي پاته سوی، که زه اجازه ولرم د هغه روايت د تازه کولو په منظور به له خپله يادداشته يو ځل بيا هغه قصه درته وليکم!

---

[1] د کندهار راډيو د شريعت ږغ په نامه وه.

و سپوږمۍ ته د انسان د رسېدو حادثه نوې خبره وه. زړې او سربسته ټولني طبيعتاً له نوو حادثو څخه کرکه کوي، خصوصاً چې د دوی کټوري کړي دنيا ته نوي چولې ورخلاصوي. زموږ خو لا دا حال وو چې له يوې خوا هغه زړې خبري لا په مسلماتو نه وې راته بدلي سوي، د خدای تعالی لمر به کله په څلرم آسمان کي وو، کله به په تورو اوبو کي، سهار په سهار به په وابنکيو او زنځيرونو آسمان ته خېژول کېده او تر ماښامه به په جبري چکر مجبور کېده او بله خاصه هم زموږ د ټولني دا وه چې د کفر د حکم مُهر او ټاپه يوازې په باصلاحيته لاسو نو کي نه بلکي د هر عادي او عام سړي په جېب کي به هم پراته وه.

له هغې جملې څخه مرحوم سرور کاکو هم وو، چې د دغه امتياز تښتن وو او له ځانه سره مباحثه ئې د خدای سره دلايل بلل. سرور کاکو مرحوم په کوټه کي مخ پر جنوب ناست وو. شا ئې و هغه تړلي دربند يا کړکۍ ته وه چې د کوټې په شمالي دېوال کي پرېښود سوی وو.

په هغه دربند او طاقچه نمايه ځای کي به کله کله موږ د چايو لوښي، راډيو او کتابونه ايښوول او د دوبي له خوا به مو پايه داره بادپکه هم دلې ايښووله. سرور کاکو چي کله دغه د ورځنۍ موضوع (سپوږمۍ ته د انسان رسېدل او هورې د متحده ايالاتو د بيرغ نجتل) په باب نظر ښکاره کاوه، نو ئې د خپلو خبرو په ترڅ کي مخ بادپکې ته ور واړاوه او پوښتنه ئې وکړه چې سپوږمۍ خو به تر دغې بادپکې لو نه وي؟ چا جواب ورکړ چې په هيڅ صورت.

بيا نو ده وويل، چې: ... پر دغه نو انسان څه ډول کښته کېدای سي او تاسي فرض کړئ چې کښته سو نو په هغه صورت کي خو د سپوږمۍ مخ پټېږي او سپوږمۍ نه ښکاري. تاسي ته داسي کومه شپه در په يادېږي چې په هغه کي سپوږمۍ پټه سوې وي؟

د ده استدلال د هر چا قناعت حاصل کړ خو د نوري توضيح په غرض چا ورته وويل يو شی چې د ليري ځايه وکتل سي کوچنی ښکاري، په داسي حال کي چې هغه اصلاً لوی وي. نو سپوږمۍ هم ممکن تر دغې بادپکې غټه وي، لکه څه ډول چې زموږ عموم پوهان او علماء عصبي مزاجه او اندک رنجه وي نو مرحوم سرور کاکو هم استثنا نه وو. په قهر سو، ځکه داسي گومان ئې وکړ چې گويا د ده لومړۍ خبره چا نه وه منلې. نو ئې وويل: د دغه دربند د يوې خانې تر اندازې خو به سپوږمۍ نه وي لو؟ دا وخت په اتفاق ټولو وويل چې دا نو سمه اندازه ده او تر دغه نو لوئېده امکان نه لري.

سرور کاکو پر گونډو سو، مخ ئې د دربند و خوا ته وروااړاوه، خپله دوپټه ئې په دواړو لاسو د دربند و مخ ته د پردې په شکل وغوړول وروسته ئې وويل اوس تاسي سپوږمۍ وينئ؟ (مطلب د دربند له هغې برخي څخه وو چې چا د سپوږمۍ سره برابر بللې وه). هر چا وويل چې يه نه معلومېږي وروسته ئې بيا په توضيحاتو شروع وکړه، چې د امريکا بيرغ خو به زما تر دوپټه لوی وي، تاسي خو لا واياست چې کښتۍ لا هم وه، اوس انسانان هم ورختلي وه. اوس چې سپوږمۍ زما تر دوپټه لاندي پټه سوه هغه وخت تر دغو ټولو شيانو ولي پټه نه سوه؟ او که پټه سوې وي خو تاسي وواياست سپوږمۍ خو هره شپه معلومېږي.

زموږ د خلکو دلايل او سوالونه تمام سول، حتی چا دا جرئت هم و نه کړ چې هغه به د ورځي ورختلي وي، چې د دې سوال علمي جواب به لا نور هم په زړه پوري وای. ځکه چې

زمور علماء عموماً کم حوصلې وي او سوال د بداعتقادۍ نتیجه بولي نو څوک جرئت هم نه سي کولای چي د ځان د قناعت له پاره پوښتنه وکړي.

سرور کاکو مرحوم تر دغو توضیحاتو وروسته د اهل محفل و کم عقل ته په تعجب کي سو او خپل فضیلت په عُجب کي واچاوه. خدای تعالی دي جنتونه ورکړي، د سردارانو د دور اوږد اختناق موږ د ده په ایمان افروزو صحبتونو پر ځان لنډاوه. نه یم خبر چي اوس به هم تاسي دغه ډول مراجع ولری که نه؟

په دغه لیک کي به زه د مرحوم شیخ صاحب د مختلفو وختونو او بېلو بېلو دورو د ناستي ولاړي ملګري او د دوستانو، اشنایانو محدودي حلقې درمعرفي کړم.

په چمن کي د څه وخت پاته کېدو په دوران کي:

۱. د برو دروازې اوسېدونکی "چاچا معصوم"[۲].

۲. محمدکریم اخندزاده د مشهور قاضي غلام لمسی، هغه قاضي غلام چي د کوندل خان سردار په عصر کي ئې د خلګو د ږیرو کالخوایي اخیستې وه، خو د دې امتیاز سره چي هغه عادل قاضي د حیواناتو د حقوقو هم لوی مدافع وو او څوک ئې نه پرېښوول چي بوده درانه بار کړي یائې ووهي وټکوي.

د ادبي انجمن د کار په دوران کي:

۱. مرحوم محمداعظم ایازي

۲. مرحوم عبدالخالق واسعي

او وروسته چي حج ته ولاړی او په مدینه منوره کي پاته سو:

۱. حاجي عبدالرحیم الکوزی

۲. حاجي عبدالغفار الکوزی د حاجي حبیب الله الکوزي ورور چي له ډېره وخته په مدینه منوره کي پاته دئ. د شیخ صاحب لقب هم له هغه ځایه راغلی او هغو دوستانو ایښی دئ.

کله چي مرحوم حاجي عبدالغفور خان له عربستانه بیرته هیواد ته راستون سو. نو په هرات بازار کي ئې د ناستي محل د ملا فرح الدین اخند د دهانې په مقابل کي د حاجي محمدایوب دوکان وو. هغه وخت دغه خلګ د مرحوم شیخ صاحب پر شاوخوا الیدل کېدل:

۱. حاجي محمدایوب عادي دوکاندار وو

۲. محمدحلیم سلیمي

۳. آغا محمد کرزی

۴. محمدیوسف ایازي، او محمدیوسف ایازي په اخبار کي د کار د ډېري اوږدې سابقې سره هم کم سواده پاته سوی وو. له مرحوم حاجي عبدالغفور خان څخه ئې استفاده کول.

د محمدحلیم سلیمي ځیني اخباري لیکني هم په هغو وختو کي خلګو د شیخ صاحب مرحوم قلمي آثار ګڼل. خو په خپله هغه مرحوم له دې خبري څخه انکار کاوه او نه هم اقرار. اما د محمدحلیم سلیمي او اغامحمد کرزي لکه چي پخوا هم ډېر څه زده وه او له مرحوم حاجي عبدالغفور خان څخه ئې په لږ زده کړه لوښی ډک سو او هر یو پر خپله تږ ولاړ. اوس دواړه په امریکا کي مېشته دي او د سپین ږیرتیا او پناهندګۍ ژوند هورې تېروي.

کله چي مرحوم شیخ صاحب د ښاروالۍ په نماینده ګانو کي د خلګو له خوا ټاکل سوی وو، هغه وخت ئې:

---

[۲] د عبیدالله بختیالي پلار.

۱. مرحوم حاجي نورالحق خان توخی
۲. مرحوم حاجي عبدالغفور خان خياط اشنايان وه.

کله چي حاجي عبدالغفور خان په شوری کي نماينده وټاکل سو نو ئې:

۱. محمدرسول خان توخی د تيرين وکيل
۲. حاجي خالقداد توخی د کلات وکيل
۳. محمدکريم نزيهي (اوزبيک) د اندخوی وکيل، چي وروسته بيا افراطي اوزبيک او د پښتنو سخت دښمن سو اشنايان وه.

د مرحوم شيخ صاحب له ډېرو عمرو څخه واقعي اشنايان:

۱. مرحوم خيرو اخندزاده چي ډېر پخوا مړ سوی او ده به همېشه په درنښت ياداوه. د ده همزولی او د ماما زوی وو.
۲. حاجي عبدالرحيم کاکړ، د زړې جامع چي هغه هم پخوا مړ وو او ده به ئې نوم په عزت ياداوه. حتی د هغه د زوی حاجي عبدالحليم بزاز سره ئې هم مناسبات پالل. يو وخت لا د هغه سره د بزازۍ په دوکان شريک هم سو، مگر حاجي عبدالحليم يو بازاری سړی وو او له مرحوم حاجي عبدالغفور خان څخه ئې هغه کانې او سلوک غوښته چي په بازار کي باب وه، خو د شيخ صاحب مقام تر دغو خبرو ډېر لوړ وو، ځکه نو شراکت ډېر دوام و نه کړ.
۳. فضلو اخندزاده چي ورته آشنای نه بلکي يو کشر يا مخلص ويل به مناسب اوسي.

د پلرگنی د خپلوانو له جملې څخه مرحوم عبدالغني ميوندي او د هغه کشر ورور حاجي محمدامين د شيخ صاحب زيات حرمت کاوه. هغوی د مرحوم عبدالحکيم خان خروټي زامن وه، چي شيخ صاحب د هغه سره په چمن کي د تجارت همکار او ملگری وو او د اکا زوی ئې وو.

هغه کسان چي شيخ صاحب عقيده ورته درلوده:

۱. په خارجي او بين المللي سطحه کي: مصطفی کمال باشا اتاترک
۲. په هندوستاني مسلمانانو کي: مولانا ابوالکلام آزاد
۳. په پښتني مشرانو کي: الف: محمود بېگ خان طرزي، ب: خان عبدالغفار خان او تر هغه په کښته رديف کي: محمدگل خان مهمند، په وطني سپين ږيرو مشرانو کي: حاجي عطاجان مرحوم.

مرحوم حاجي عبدالغفور خان د عمر په وروستيو کلونو کي د تصوف سره علاقه پيدا کړه او د مرحوم مولوي عبدالعزيز د درس په حلقه کي کوم چي د مرحوم شهيد خطيب صاحب عبدالله په جامع کي ئې د هغه مرحوم په حجره کي کله د مولانای روم مثنوي او کله د امام رباني صاحب مکتوبات لوستل کېدل او توضيح کېدل حاضرېدی.

حاجي عبدالغفور خان يو نشنلسټ انسان وو. په عربستان کي ئې ټوله وخت ملي پښتني جامې اغوستې، کله چي د سعودي عربستان دولت ورو ورو بدای سو نو ئې غوښته د مسلمانانو پر اقامت قيود وضع کړي. هغه وخت ئې مرحوم ته اختيار ورکړ چي د افغاني تابعيت او سعودي تابعيت تر منځ يو انتخاب کړي. هغه

مرحوم خپل افغاني تابعيت وساتی او مليت ئې له مذهبه ښېل وګاڼه. که څه هم مرحوم ټينګ مسلمان وو او اقلاً درې واره له مدينې منورې څخه پياده حج ته راغلی او تللی وو او په دغه ماحول کې روزلی وو.

اوس وګورئ د سعودي عربستان تابعيت خو لا پرېږده د اقامت له پاره څه خرې پرې هم نه کېږي؟ اما مرحوم عبدالغفور خان د تابعيت د عدم قبول سره د اقامت سهولت هم له لاسه ورکړ. اما هيڅ ئې خوا هم نه کړه بده. اوس خو دا دئ خلک حتی د پاکستان او ايران پر تابعيت هم سرقلفي ورکوي او د چا چې واک ورسېږي و هر غربي مملکت ته د ورتلو له پاره هغه هم په قاچاق او ګريزي د مليونو افغانيو، يا لکو کلدارو يا زرو ډالرو د ورکولو له پاره لا هم آماده ګي ښکاره کوي.

زما پېژندګلوي د محترم شيخ صاحب سره د ۱۳۲۴هـ ش کال څخه کله چې زه نوی د ادبياتو فاکولتې ته شامل سوی وم لاس ته راغلې ده. هغه وخت به زه هم د حاج محمدايوب دوکان ته چيري چې به مرحوم شيخ صاحب د ماپښين له خوا کښېنوست ورګرزېدم. هغه مرحوم به زما څخه د درسي نصاب په باب پوښتني کولې او معلومات به ئې کول چي کوم کوم مضامين موږ لولو او ما به د ځينو مفرداتو په باب له هغه څخه پوښتني کولې. زما معرفت هغه وخت چي په ۱۳۳۱ کي شيخ صاحب په شوری کي وکيل سو او زه د معلم په توګه کابل ته تبديل سوم او موږ په يوه کوټه کي سره انډيوالان سوو زيات او نږدې سو او د هغه مرحوم تر مړيني پوري ټينګ او باقي پاته وو. ما هغه وخت هم غنيمت باله، اوس ئې هم فقدان ضايعه بولم او دوعا ورته کوم. تاسي دي خدای د هغه مرحوم وارثان کړي.

نور بيا، انشاء الله

هاتف

پنځم ليک

۱۹۹۸/۹/۲۳

ګران حاج عبدالظاهر جانه!

السلام عليکم

کورنۍ او دوستانو ته دي هم زما سلام او احترام ورسوه. هيله ده چي ټول روغ او جوړ اوسئ او له هره مصيبته په امان، نور نو!

ستاليک پر ۱۹۹۸/۶/۵ کله چي به تاسي د شاليمار يا توتو او چارمغزو مېلې کولې راورسېدی او ستاسي د خوښيو او هوسونو حال ئې راورساوه. نوش جان، تل دي وي مېلې او خوښۍ، اما باور دي وسه چي د کابلي (پرکوک) توتو او چارمغزو رنګ او خوند او زړه وړونکي بويونه مي سترګو او د خولې و تصور ته جګ ودرېده او زړه مي ولاړ سو، خدای تعالی دي ئې پر تاسي پراخي او ارزاني لري او دا چي پر ما مو هم پېرزو کړې ده، کور مو ودان.

قطع اميد کرده نخواهد نعيم دهر

شاخ بريده را نظری بر بهار نيست

د مرحوم نجيب الله يا نورو د عقيدې په باب به تر اکاډميک بحث او څېړني تېر سو، ځکه په "لکم دينکم ولي دين" کي ښه فيصله نغښتې ده او زه د هغو مفسرينو پيرو يم چي د خدای تعالی د کلام دغه آيت منسوخ نه ګڼي صرف د استعمال مورد او موقع او محل ئې پېژندل غواړي.

د سيد محمدقاسم رشتيا د خاطراتو کتاب دي لوستی دئ. هغه واقعاً معلوماتي اثر دئ او مرحوم رشتيا يو پدرکرده او په خپله هم سابقه دار بيروکرات وو. د هغه تر ليدو او لوستلو وروسته زړه ته درګرزېدلي وو چي کشکي زه هم

د یوه کندهاري په صفت یو دغه ډول د خاطراتو کتاب ولیکم، ګوندي چې ادبي ښکلا او علمي غنی ولري او په عین حال کې د پانیات او عبرت مثال او د راتلونکي نسل د لاري مشال سي او د ماضي انعکاس ورکوونکې هینداره ثابته سي.

دا خو به ډېر ښه وای، کشکي ممکن او میسره وای. هر که را از بهر کاری آفرید. مرحوم رشتیا لیکوال وو، هم سیاسي مبصر، هم مؤرخ وو هم درباري او دربارشناس. له زانګو څخه تر ګوره پوري ئې ټول عمر په دغه لار کې صرف کړی وو او په عین حال کې هغه ځان ته په یوه سترګه هم کتل. د دغه اثر د کښلو هدف ئې لا له ځوانۍ څخه ټاکلی وو. یادداشتونه ئې ورته راغونډول. څو په پای کې ئې د ځان د تبرئې په غرض له یوې خوا او نورو ته د مثال کېدو په مقصد دا کتاب وکیښ. زما چې د فکر په وروستنۍ زاویه کې هم د مثال کېدلو د دعوې ښکلګه نسته، د تبرئې ضرورت هم نه احساسوم. ژوند مي د ممتدو درنو مسئولیتونو په صحنه کې نه دئ تېر سوی، د دغو دلایلو پر مبنا ما قبلي تیاري نه ده نیولې، اوس نو فقط د حافظې په اتکا چې د سپین ږیرتیا په نسبت ذهول غلبه هم پر کړېده دا کار مناسب هم نه راته ښکاري او زما په عاجل پروګرام کې هم نسته. دا چې د چاپولو له پاره ئې تا چمتووالی ښکاره کړی دئ، ته دي ژوندی يې. دولت دي زیات سه، آباد اوسې. که چیري ضرورت سو یوازي به د حافظې په استناد یو څه ولیکم، که اجل مهلت راکړ. اما نه دستي. خو اوس مي د قرآن مجید د ځینو مشکلو او کثیرالمعاني کلماتو ترجمه او توضیح تر لاس لاندي ده او تر یو ځایه هم رسېدلې ده. که په ژوندون د دغه کار تر عهده ووتم د هغه له پاره به ږغ درباندي وکړم او زما په فکر به دا کار ستا له پاره ډېر مناسب وي تر هغه چې زما د خاطراتو کتاب نشر کړې او بېځایه د تهمت په محل کې ودرېږې.

ستا د لیک جواب زما سره څکه وځنډېدی چې مضمون مي نه درلود او نه ئې لرم. د انسان فکر او طبع هم هر وخت زېږنده نه وي او بلا تشبیه: "کل یوم هو فی شان" وي ممکن زما دا عذر ومنلای سې.

اوس به نو د پخوانۍ وعدې او ستا د پخوانۍ غوښتني سره سم بیا هم د مرحوم شیخ صاحب څه اوصاف او مناقب درته ولیکم. هیله ده چې مطالب مي تکراري نه وي.

د مرحوم شیخ صاحب تر ټولو لوی خصوصیت او ویاړ دا وو چې مرحوم پر خپل نفس حاکم وو. نفس ئې پر ده غلبه نه درلوده او دی د ضبط نفس څخه برخوردار وو او دغه نو د تقوی جوهر او عصاره ګڼل کېدای سي. د دغه سجیې په تبع کې ئې د ټولو آدابو رعایت درلود، له هغې جملې څخه یو د ډوډۍ خوړلو د ادب مراعات وو چې نوموړي په ټولو حالاتو، سفر او حضر کې ورځ وځ ګولي اخیستلې. تر مراده ئې ژوولې، کله کله چې به موږ لنډهرو ځوانانو د ځوانۍ د بې ادبیو په لړ کې پر ډوډۍ یا مېوه وحشیانه چور اچاوه، د مرحوم شیخ صاحب پر استقامت ئې د ذرې په شان هم اغېزه نه کوله او د رحمان بابا د شعر کامل مصداق وو:

لکه ونه مستقیم پر خپل مکان یم
که خــزان راباندي راسي که بهار

زما په ژوند کې د څو خلیقو او عالي انسانانو سره مخامخ سوی یم، چې له هغې جملې څخه زما په ذهن کې لوړ ځای فقط درې تنه لري او په هغو کې یو شیخ صاحب وو. بل مرحوم افندي امین مرزاخان قفقازی او سویتیشن مسلمان وو چې له روسانو څخه یا د

کمونیزم څخه ئې افغانستان ته پناه راوړې او ډېري ناخوالي ئې لیدلي وې او په استقامت او مصابرت کي ئې د مثال حیثیت درلود زما استاد وو او دریم هم زما نیکه (مورنی) رحمت الله بابا وو چي ډېر قانع، صابر او صادق سړی وو. خدای تعالی دي پر درو واړو ورحمېږي.

مرحوم شیخ صاحب پر قناعت، مناعت، امانت او صداقت سربېره ډېر حیاناکه، کمرویه او منزوي انسان وو. د هر چا سره نه حشر کېدی. په ۱۳۳۲ش کال کي ډېره کاختي سوه، امریکائیانو څه سپین اوړه او غنم د مرستي په توګه راولېږل. د کابل ښاروالۍ به هغه غنم پر نانوایانو وېشل، څو خلګو ته ډوډۍ ورسېږي. د عادت سره سم به نانوایانو مخامخ غنم یا اوړه خرڅول او ډوډۍ به ئې لږ پخول، ځکه تر ډوډۍ پخولو ئې په دغه کار کي ګټه وه، بیا به هم کله کله خلګو ته ډوډۍ نه ور رسېدل.

یو مازیګر زه په ډوډۍ پسي وتلی وم، ماښام تش لاس راغلم. شیخ صاحب په ډېر اطمینان راته وویل: خیر دئ کښېنه.

ما ورته وویل: اوس لا وخت سته یو هوټل ته به ولاړ سو، هورې به ډوډۍ وخورو او که څه ناوخته سو هغه مو هم لا خولې وزي.

هغه راته وویل: ته ولاړ سه، ما ویل ته څه شي کوې؟ جواب ئې دا وو چي هیڅ. ما اصرار وکړ او دی مي په تګ راضي کړ.

د مرحوم شیخ صاحب دا عادت وو چي له وچي ډوډۍ پرته ئې هیڅ خواړه نه سوای خوړای، او دغه نعمت د خدای په قدرت کم سوی وو.

کله چي هوټل ته ولاړو هغو عادتاً ورجي غوښي راوړې، د یوې وړې ټوټې ډوډۍ سره، ډوډۍ د شیخ صاحب تر سترګو کمه او ناکافي ورغله چي دغسي هم وه. ما ته ئې وویل چي: (چک چلان یا د هوټل مزدور) ته ووایه چي نوره ډوډۍ راوړي. په داسي حال کي چي هغه موږ ته ولاړ وو. ما ورته وویل: جناب شیخ صاحب دغه دئ هغه ولاړ دئ ته ورته ووایه. د مرحوم د مخ پوست دومره نازک وو چي حتی دغه امر یا تقاضا ئې پېش خدمت ته نه وکړه. ډوډۍ خوړل ئې بس کړه، ځکه چي له وچي ډوډۍ پرته ده څه نه سوه خوړلای. پېش خدمت ولاړ او زه مجبور سوم د هوټل د پارچاله څخه مي کافي وچه ډوډۍ ورته راوړه، او هغه د ډوډۍ خوړل له سره پیل کړه.

د شیخ صاحب خیرات ورکول نه وه خوښ، تل به ئې توصیه کوله چي چا ته کار یا مزدوري ورپیدا کړئ څو هغه په خپل همت روزي پیدا کړي په خیرات خوري څوک مه روږدوئ.

شیخ صاحب مرحوم به ډېر ځله بېکاره وو او د دې خبري اغېزه به ئې د کورنۍ پر معیشیت هم پرېوتله. یو وخت ئې هغه لور چي د میرزا عبدالباقي خان الکوزي و زوی ته ئې ورکړې وه، د ده د بېکارۍ په نسبت تشویش ښکاره کړی وو او شیخ صاحب چي هغې ته کوم جواب ورکړی وو هغه دا وو، چي: د حق تعالی له طرفه روزي مقدره او ټاکلې ده. پخوا ئې موږ ته دومره رزق راکاوه چي ستا برخه هم پکښې وه، اوس چي ستا برخه بل دسترخوان ته نقل سوې ده، هغه اندازه زموږ له قسمته څخه کمه سوې ده. دا یو مقدر او حسابي کار دئ چي موږ باید په قانع اوسو او تشویش نه ولرو.

پر دغه ځای به دي تر بله صحبته پوري پر خدای وسپارم. ښاد او آباد اوسې.

مخلص

هاتف

ډاکټر عبدالرزاق پالوال
دوې خاطرې:

# د غلو پر مېنه او نور بدوان[1]

زه درې پلاوي و ختیځ نورستان، ګاتیرګل، ته تللئ یم چي تر بګرامتال پوري موټران تلای سي. نو مي داسي خیال کاوه چي و ختیځ نورستان، رامګل، ته به هم په موټر کښي ولاړ سم. په ۱۳۵۰هـ ش کښي له کابله څخه و لغمان او بیا د الینګار درې تر نینګراج پوري په موټر کښي ولاړم. تر نینګراج وروسته نه یوازي د پښو لار وه، بل لا باید تر ۴ – ۵ غرونو اووښتئ وای. زما سامان او خوراکي مواد څلورو پشه یانو راسره وړل. تر څلورو یا پنځو غرونو واوښتلو. درې ئې څلور وې چي د یوې نوم مي ئې هېر دئ او زما خورا ډېر کتابونه او لیکني را څخه قبضه سوي دي او ځني محروم کړه سوئ یم. درې ئې پیار Pyar، ودوو Wadawu، او څلرمه ئې ژونیا Zhunya نومېدلې. موږ چي به و هري درې ته تر غره ورواوښتو او ورکښته به سوو، شپه به مو هم د هغې درې په کلي کښي وه. کله چي مو ګهیز له دوهمي درې څخه حرکت وکړ او د غره و نیمایي ته به ور رسېدلي وو، هورې داسي لږ څه ګوګ یا دالانچه غوندي ځای ؤ، چي بار وړونکو به ساه پکښي اچوله، راحت به ئې کاوه. په دغه ځای کښي دوو بار وړونکو بغاوت وکړ چي موږ ډېره مزدوري غواړو. ما ورته وویل چي په نینګراج کي حکومت و هر بکس وړونکي ته پنځوس افغانۍ مزدوري وټاکله تاسي به هورې ورته ویلي وای چي تاسي دغه په پنځوس افغانۍ نه وړئ. سل افغانۍ غواړئ. نو دوی (حکومت) خو و ما ته دوه سوه افغانۍ راتصدیق کوي، نو دا خو د حکومت پیسې دي و ما ته د سند له مخي څخه مجراینه راکوي. نو زه و تاسي ته څلور سوه افغانۍ درکولای نه سم. هغه زمان پیسو (افغانیو) ارزښت لاره.

په دوی کښي دوو کسانو به ګوسي gawsi واخیستې او زما له څنګه سره به ئې غر په وویشتئ، چي موږ ته به هرومرو سل – سل افغانۍ راکوې. په دوی کښي هغه نور دوه کسان، چي پلار او زوی ول، خاموش ول. زوی ئې د ښوونځ په لسم یا دوولسم صنف کښي متعلم ؤ. ما چي د دوی دغه تونډ – تونډ حرکات او ږغېدنه ولیده، ځني وخوځېدم او ځني ولاړم. له ما څخه لار ورکه سوې وه، لوړ و غره ته ختلئ وم. څه نیم ساعت وروسته مي ولیدل چي دوی کښته پر پوزه باندي وګرځېدل. ما به نو له یوه ځایه څخه بل ځای ته ځان ورواچاوه یا ځان و کښته ځای ته ورځړولئ او ورکښته سوی به وم. خو په ډېره خوارۍ سره د دوی و لاري ته ورکښته سوم او په دوی پسي ورغلم. دوی له یوې چینې سره راته ناست ول. نور ئې لجاجت نه وکړ. ویل ئې چای راوایشوه. ما هم له بکس څخه لوښي راوکښل او و دوی ته مي چای وروایشولې.

د پاخه عمر کس راته وویل چي په پسې کلي کښي چي زموږ به شپه هورې وي، خلګ ئې ښه سپک سپاند که. دی په خپله د دغه

[1] بدوان د بدو badu جمع نوم دئ.

کلي ؤ. څنګه چي دی بدو badu ؤ نو ئې له
کلي څخه ایستلئ او شړلئ ؤ. دی په نینګراج
کښې اوسېدئ. موږ چي و کلي ته ورسېدو، د
کلي خلک داسي چوپ او خاموش راسره ناست
ول، زما ملګري هم دغسي ول. څنګه چي
کلیوالو دغه له ما سره بار وړونکئ په کلي کښې
نه غوښتئ، نو ئې زما له اسیته څخه څه ورته
ویلای نه سوای، او داسي درنه خاموشي
چاپېره وه، چي دخښم کاسه ئې ډکه وه او په
ښورولو سره به چړپېدلې وای.

کله چي له ژونیا څنګ درې څخه و لویې
درې ته وروتلو په نژدو کښې ئې د نورستان
ولسوالۍ د دفترونو کنډوالې وې. دوی د نورستان
حکومت له دغه ځایه څخه ایستلئ او شړلئ ؤ.
هغه دغه مهال په نینګراج کښې ؤ چي دغه کلئ
هم په الینګار ولسوالۍ پورې اړوند ؤ.

کله چي له ژونیا څخه و منځ درې ته
وروتلو، د لارې ملګرو راته وویل چي د
حکومت په تلیفونخانه کښې غله اوسېږي.
تلیفون ئې نور وجود نه لارء. ما و دوی ته وویل
چي دلې کښېنئ، زء هورې ورځم او پوهوم ئې
چي زء سوداګر نه یم. زء د کابل پوهنتون
استاد یم اوس و نورستان ته ځم. زء چي
هورې ورغلم یو ځوان پر پیتو لویو ډبرو،
شاځو، باندې بیدء ؤ. دی راولاړ سو، روغبړ ئې
راسره وکړ. په دغه ترڅ کښې دوه نور کسان
پیداسول. دوی توت راټکوهل. و ما ته ئې کټ
راوړئ او زء پر ناست وم. خو کله چي دوی
توت راوړل او کښته ئې پر کمبله باندې راته
کښېښوول چي دوی هم کښته ناست ول، نو
زء هم له کټ څخه ورکښته سوم او له دوی
سره و توتو ته کښېناستم. په دوی کښې هغه
ځوان راولاړ سو. زء ئې د کورتۍ او کالو سره تر
غاړې ونیولم. پورته ئې کړم او پر کټ باندې ئې بیرته
کښېنولم. ما چي ویل دغه دئ راحمله ئې کړل. مانا
ته د لوړ مقام سړی ېې کښته به نه راسره کښېنې.
سم دلاسه ئې ماهیان ونیول او غرمې ته ئې راپاخه
کړل. ما خپل ځان ترمخه لا ورښوولئ ؤ او ورته ویلي
مې ول چي څلور بارکښان راسره دي. دوی په ډېر
عزت او ښېګڼې سره وضعیت راسره وکړ. د غرمې تر
خواړو خوړلو وروسته ځني رخصت سوم.

د راداء اوبه مخ پر کښته خورا توندي
بهېدلې او هم ډېرې سړې وې. پر راداء باندي
د یوې جګې ونې تیر ایښوول سوئ ؤ. زء له
راسره ملګرو سره پر دغه تیر باندې تر راده
واوښتلو، او په بله ورځ و نورستان ته ورسېدم
چي دغه د کولم دره وه. زء هورې په کښتنې
کلي، شوردمي shurdami کښې ځایي سوم.
د دغه کلي مشرانو دوو ملایانو ته بلنه ورکړه
چي د دوی په کلي کښې پر دیني مناقشوي
مسایلو باندې سره وړغېږي. نو هغه ملا چي
افغاني زدکړې ئې لرلې له رامګل څخه وربلل
سوئ ؤ، خو هغه ځایي ملا چي په پښتونخوا
کښې ئې خپلې زدکړې کړې وې د کولم له لوړ
کلي څخه وربلل سوئ ؤ. دوی د خپلو کتابونو
په استناد او شهادت دلایل سره ویل.

څنګه چي ما د دوی او ډېرو سره کوتړم
کړل سوو کتابونو عکسونه اخستل، نو دوی
هم زما حضور هورې نه غوښتئ نو زء هم
وامګل درې ته ځني ولاړم.

څنګه چي د امیر عبدالرحمن د
مسلمانولو د لښکرکښۍ په ترڅ کښې
رامګلیانو تر خپل نهائي مقاومت وروسته غونډ
د کابل و پغمان ته لېږدول سوي ول، او د دوی
کلي د برید په نتیجه کښې نړېدلي ول، او هم
ئې دره د پنجشېریانو له خوا څخه اشغال سوې
وه نو کورونه ئې هم پر پنجشېري شکل او
جوړښت باندي ول. نو په دره کښې لوړ تر
کوراچ لوړ یو کلئ رایاد کړء سو چي هورې
پخواني نورستاني کورونه سته، او له ما سره یو

تکړه سړی هم ملګری سو. دء زء و یوه کور ته وروستم او د کور و خاوند ته ئې وروپېژندلم چي زء په لوړ کلي کښي د پخوانیو کورونو عکس او نقشه اخلم. د کور خاوند زما مکتوب وکوت او راته ئې وویل چي زء و لوړ کلي ته وروخېژم، په لوړ کلي کښي ما هیڅ پخواني کور پیدا نه کړای سوای. خو هورې خلګو د دوی و هدیرې ته بوتلم او شپږو قبرونو ته ئې ودرولم چي دغه د ورونو او تربرونو قبرونه دي. دوی ټول هغه کس وژلي دي چي ته ئې لاندي و کور ته ورغلئ وې. له دغه وژلو کسانو څخه یو ورور پاته دئ چي هغه باوله او له کلي څخه تښتېدلئ دئ. دی د ځنګ درې په یوه لوړ کلي کي اوسېږي. که ئې څه توپک په اوږه کښي اچولئ دئ، خو و خپل کلي او کور ته راتلای نه سي. د دوی او د کولولو کس پر یوې توټې مځکي باندي سره شپخړه وه چي دواړو ئې د ملکیت ادعا لرله. کولولو ئې دغه شپږ کسان وروژلي او بل ئې تښتېدلئ دئ.

زء له هغه ځایه څخه و کوراچ او په دره کښي کښته د یوه صافي و کور ته ورسېدم. تر ما څه ګړی وروسته یو پنجشېری په خورا چابکوالي راورسېدئ. زموږ کوربه چي صافي پښتون ؤ په خپل کلي کښي ئې بدي کړې وه او د نورستان و دغي کښتني اویجي ته ورتښتېدلئ ؤ. ما دمخه و دء ته ویلي ول چي زه د پېګل له لاري څخه و کولم ته ځم. دء راته وویل چي په مخ کښي دي ځنګل دئ. هورې لار درڅخه ورکه کېږي. خو کله چي هغه پنجشېری راورسېدئ، ماینې ئې ورته وویل چي دی به ئې ملګرتیا وکي. دء و دې ته وویل چي تا پرون د دء تګ ولیدی او بیا دي د پنجشېري تګ ولیدئ، نو دوی ملګرتیا سره کولای سي؟ دی له کوراچ څخه مازیګر راورسېدئ او هغه له پنجشېر څخه.

ګهیز چي له هغه ځایه وخوځېدلو، دء له ما څخه هم لار واړوله هم راڅخه چابک سو. زما نه په یادېږي چي شل افغانۍ مي ورکړې که مي دوه شلیان ورکړل چي ما د درې په خوله کښي تر ځنګل تېر کړي او د پېګل درې ته مي ورکښېباسي. ځکه ئې ملګرتیا راسره وکړه. دء زما غوټه bag په لاس راکړه او راته ئې وویل: ته هغه د منځ کلي ته ولاړ سه. دی د درې د سر کلي ته وروګرځېدئ. ځنګه چي دغه غرمه مهال ؤ او زء و بل کلي ته رسېدلای نه سوای نو په دء پسي ورغلم. زء د کلي و یوې او بلي خوا ته وګرځېدم، خو و کلي ته د ورننوتلو لار مي پیدا کولای نه سوای.

په یوه لوړه خونه کښي خلګ سره رغېدل. ما د لاندي له خوا څخه وررغ کړه چي د دغه کلي او کورونو لار چیري ده؟ په خونه کښي کس تر کلکین سره راایسته کړ او دی هغه زما د لاري ملګرئ ؤ. ویل ئې: ته هم دلته راځې؟ ما ویل: هو! په دغه ترڅ کښي یوء بل کس هم سر راایسته کړ، ویل ئې: هلته غرء ته وخېژه، لار د هغي خوا څخه ده.

زء چي ورغلم یوه ځوانه ښایستوکې ښځه د خونې په دروازه کښي ورته ولاړه وه او د ورغلي کس و بیان ته ئې غوږ نیولئ ؤ. په کور کښي کس له ما څخه پوښتنه وکړه چي زء خط لوستلای سم؟ ما ورته وویل: هو! دء هم هغه لیک راکړ چي له ما سره ملګري کس له پنجشېر څخه ورته راوړئ ؤ. د لیک مضمون ئې داسي ؤ:

... ته پوهېږې چي زء ویشتل سوئ یم. نور جنګ کولای نه سم. که نه ګانه زموږ دښمنان راسي او ستا ماینه له کوره څه وباسي، دا به لویه بدنامي وي. ته چي په هر ډول کولای سې، د شپې له خوا څخه راسه او خپله ماینه دي له دې ځایه څخه دروله چي دښمنانو راڅخه بېولې نه وي. زموږ له پاره به

دغه د نامه او ناموس ډېره بده پېښه وي.

دې و نورو دوو کسانو ته بیان کاوه چې دوی غوښتل زموږ په کور راننوتلي وي او دا (اشاره ئې و هغې ښځې ته وکړه چې په دروازه کښې ولاړه وه) ئې په زور سره راځخه ایستلې او بېولي وي. زه د لوړي خوني په کړکۍ کښې ورته ناست وم او توپک هم راځخه ؤ. ما ورږغ کړل، چې خلګو مه راځئ. دوی نه ګرځېدل. بیا مي ورږغ کړه، که مو پر دغه پله پل راواړولئ ؤ، زه مو ولم. دوی هم تر پله راواوښتل او ما هم دوه مخکښان ځني ورووېشتل. زه او انډیواله مي په دغه شپه له کور او کلي ځخه ځني راووتلو.

زه چې کله له کولم ځخه وبجېګل ته تلم، شپه مي د ښوک درې په خوله کښې کلي کړه وه. د دغه کلي د مشر په کور یا مېلمستون کښې څه اته کسان فراریان اوسېدل. دوی د شپې وتل او ننوتل او ټول هم په بوړیانو (پیاوړي توپکانو) سره سمبال ول. ګهیز چې ما د کلي له مشر ځخه غوښتنه وکړه چې زما بارونه و بجېګل ته راپسي راواستوي پنجشېري فراریانو ویله موږ به ئې درسره یوسو. ما ورته وویل: سمه ده. له دوی ځخه دوه – درې ولاړ سول او بکسونه ئې په ستمي سره لنګر کړل. ویل درانه دي. زه ورولاړ سوم په یوه او بل لاس سره مي دوه بکسونه پورته کړل او و دوی ته مي وویل: دا درانه دي؟ د نورستان ښځو راسره وړي دي او هم ئې راسره وړي. دوی پر هر باړوړیني باندي ځلور – ځلور سوه افغانۍ غوښتې. ما ورته وویل چې: ښځي ئې په پنځوس – پنځوس افغانۍ په ډېري خوښۍ سره وړي. ولي و تاسو ته ځلور – ځلور سوه افغانۍ درکم. دوی ویل: موږ خو بدیدار یو. دښمنان لرو. موږ به د مرګ له خطر سره مخامخ سوي یو.

– نو بیا ئې مه وړئ. ولي د ځلور سوه افغانیو له پاره خپل ژوند په خطر کي اچوئ؟

بارونه مي و بجېګل ته ګاندې (سبا) ښځو راپسي راوړل.

دا چې دغه پنجشېران ولي د کولم او رامګل درو و کښتنیو برخو ته ورتښتېدلي ول، دوی څه نه ویل، بې له دې ځخه چې دوی دښمنان لري. ما ترمخه وویل چې د نورستانیانو – کاتیر او اشکوڼ او هم پشیانو تر منځ حکومت ئې له اویجي ځخه ایستلئ او په نینګراج کښې ئې حکومت جوړ کړئ ؤ چې په الینګار پوري اړوند کلي او دره ول. نور بدوانو د رامګل او کولم په کښتنیو کلو کښې ټاټوبئ موندلئ ؤ.

د کلاش – کشکار کافرانو چې به هم ښځه وتښتوله، یا به ئې وژنه کړې یا بل داسي جرم کړئ ؤ، هغوی د دوی د درو رومبور Rumbur، بمبوریت Bamburet، او بیریر Birir و کښتنیو برخو ته پناه وړله چې هورې لږ ویجاړي کوډۍ وې. کله چې به مجرم و دغي کښتني ټاټوبي ته ورسېدئ، نور له جزا او تجاوز یا غچ ځخه خوندي او مصئون ؤ. کله چې به ئې د مرکې له خوا ځخه جوړه وسوه او مجرم یا د ده کورنۍ به تاوان ورکړ، دی به نور تور نه ؤ او سپین کړه سوئ به ؤ، نور خپل کور او کلي ته ورګرځېدلای سوای. دا چې تورانو صافیانو او پنجشېریانو هم ځانونه ځنګه سپینولای سوای، زه ځني آګاه سوئ نه یم.

## ویوهېدم چې نه پوهېدم

نه پوهېږم، په یاد مي نه دي چې څو کلن به وم. خو د سهار له خوا ځخه و ښوونځ یا مکتب ته تلم، او د ماپښین له خوا ځخه مي د خپلي کوځې پر یوې ښځي باندي د عربي ژبي پاره (سي پاره) ویله. د دې کور د پاتاو د غاړي کوځې د یوه اوږده سوپ په پای کښې ؤ. دا

مرزوقې مور نومېدله. موږ کوچنیان چې په دغه نامه نه پوهېدلو، نو به مو دا زرکي مور بلله. ځکه چې زرکه هر چا پېژندله.

زرکي مور ډېري نجوني شاګرداني او لږ شمېر کوچنیان شاګردان هم لرل، چې یو ئې زه هم وم. دې به و لویانو نجونو ته سبق وایه، خو د دې یوې نجلۍ شاګردې بیا و کوچنیانو نجونو او هلکانو ته سبق وایه. دغي کوچنۍ استاګکي چې به و ما ته سبق راکاوه نو به ئې هر ګړی یوه نوکاره هم راکوله. کله چې به دې نوکاره راکړه، ما به سم دلاسه چپلاخه ورسره کړه. دا نو هره ورځ زما او د دې دغه سروکار ؤ. د دې به نوکاري وې او زما به چپلاخي وې.

د دې نوکاري راکول خو چا نه لیدل، ولي زما چپلاخي هر چا لیدلې. نو کله چې به زرکي مور هم زما چپلاخه ولیدله، دې به و ما ته ښکنځل کول: سترګي دي ووزه! مخ دي پرته سه! ولي په چپلاخو وهل کوې؟ ما به ورته وویل: خو دا نوکاري راکوي. دې به وویل: نو ته ولي سبق نه وایې؟ سبق خو دا دئ وایمه. دا پر ناحقه نوکاري راکوي. و دې ته ئې نو بیا هیڅ نه ویل چې نو ته ولي پر څه باندي نوکاري ورکوې؟

کله چې به زرکي مور و ما ته نژدې ناستو نجونو ته سبقان ویل. نو استاګکي به و ها خوا نجونو او هلکانو ته سبق وایه. خو کله چې به زرکي مور و څه ایسته نجونو ته سبق وایه، نو استاګکه به زما و مخې یا څنګ ته کښېنسته او تر سبقه راته ویلو دمخه به ئې لا نوکاره راکړه. ما به هم چپلاخه ورسره کړه. بیا به هم د هري ورځي په شان د دې نوکاري او زما چپلاخي وې. زما د چپلاخو سرپ او سروپ خو نورو اورېدلای سوای، خو د دې نوکاري چا لیدلای نه سوای.

ما نو په خپلو دغو چپلاخو ورسره کولو سره غاړه نه ایستله. کله چې به ملا یا طالب په مسجد کښي د مازیګر آذان ږغ پورته کړ، شاګردانو به په څغستا سره خپل کتابونه او پارې پر رپ باندي ایښوولې او په څغاسته به تلل. خو زه به په هغه اوږدء سوپ کښي ورته پټ وم. استاګکه به تر ټولو وروسته یوازې تلونې وه. دا چې به زما و حد ته راورسېدله، ما به په تلواري سره اوز سوکان او چپلاخي ورسره کړلې او ځني و به مي څغستل. په لومړني سر کښي چې به مي و دې ته دغسي سوکان او چپلاخي ورسره کړلې، په سبا به مي په زړء کښي بېره وه، چې استاګکي به و زرکي مور ته غاو کړئ وي یا وکي چې ما دا په سوپ کښي لګاو کړې ده. هغه به شکر دئ چې د دې هېر وه، او استا ته به ئې ویلي نه وه. یا به دې ځکه دغه شکایت و استا ته نه کاوء، څو نه ګانه هغې ورته ویلي نه وي چې ته خو پر دء لویه یې، چې دی تا وهي نو ته دی وهلای نه سې؟

که څه هم د دې د نوکارو او زما د چپلاخو جنګ هره ورځ ؤ او هم مي هره ورځ په سوپ کښي په سوکانو او چپلاخو وهله خو دې هیڅکله زما له لاسه څخه و استا ته غاو نه وکړ. البته په نوکارو سره ئې کسات راڅخه اخستئ او نو ما هم هره پلا او هره ورځ دا بې له کسات کښلو څخه داسي روغه رمټه پرې ایښې نه وه.

که زه پوهېدلای د نوک جواب به مي په سوک نه ورکولای. خو کله چې زء وپوهېدم، نو هغه مهال بیا نه نوره دا وه، او نه هم زء وم.

ژوندون مو سهوه، غلطي او بیا نو پښېماني ده، چې زء ولي نه پوهېدم؟ خو کله چې وپوهېدم، نور نو د دې مجال نه ؤ چې بخښنه مي ځني غوښتې وای. که زء پوهېدلای، نو به مي د نوکاري غچ په نوکاري سره ځني اخستئ وای، چې نو استا به هم ښکنځل نه راته کولای، او قصاص خو نو هم دغسي وي. نو به سره ادا په ادا وای.

پای

ډاکټر نثاراحمد صمد/ کاناډا

# زموږ یو لایق استاد

## (زما د ځوانۍ یوه خوږه خاطره)

بسم الله الرحمن الرحیم – کله چي زه په ۱۳۶۰ لمریز (یعني ۱۹۸۱ میلادي) کال کي د کابل پوهنتون د وترنري پوهنځي د پنځم صنف محصل وم، نو یو ډېر مشکل مضمون مو د «اساساتِ اقتصاد زراعتی» په نوم درلود. دا مضمون زموږ د پوهنځي اصلي مضمون نه بلکي یو فرعي مضمون وو چي د زراعت د پوهنځي مربوط وو خو پوهنتون داسي فیصله کړې وه چي موږ هم باید په پنځم کال کي دا مضمون لوستلی او زده کړی وای.

زموږ فاکولته د مرحوم داود خان د جمهوریت پر دربیم کال نوې افتتاح سوې وه، چي د ملګرو ملتو د «ایف . اې . او» څانګي له خوا پر مخ بېول کېده او ټوله بودجه ئې هم دغه نړیوال جوړښتون ورکوله. نو ځکه مو فقط درې – څلور افغان استادان لرل، نور ټوله استادان مو خارجیان ول او هغوی سبق په انګریزی ژبه راکاوه مګر ترجمانان ئې افغاني استادان او مرستیال استادان (اسیستنټس) ول.

په هر صورت، د نوموړي مضمون د تدریس له پاره د زراعت پوهنځي څخه یو استاد راتی، چي په هفته کی مو یو ساعت دغه مضمون درلود. دا عجیب تکړه استاد وو. ماسټري ئې په یو امریکایي پوهنتون کی اخیستې وه او تازه هیواد ته راستون سوی وو. دا استاد زموږ په ټولو استادانو کي غیرتي، مېړنی او زړه ور استاد وو. دا لا څه، په خپل مضمون کي هم خورا لایق، په تشریح کي خورا فایق او په مسئولیت کي خورا صادق وو. دغه استاد مو د دې هر صفت تر څنګ ښه ځواني، عالي اخلاق او پاکه پښتونولي هم لرله چي نور استادان مو هیڅ دغسي نه ول.

د دې استاد یوه زړه ورتیا او سپېڅلتیا دا وه چي چاپي ګستتنر ئې د نورو استادانو پر خلاف په پښتو ژبه وو، خو تشریح ئې د نورو استادانو غوندي په دري ژبه راکوله. کله چي ئې په لومړۍ ورځ چاپي ګستتنر په صنف کي راووېشی نو موږ ټوله حیران سوو چی دا څنګه نر پښتون دئ چي د کابل پوهنتون په تاریخ کي د لومړي ځل

له پاره چاپي گستتنر په پښتو ژبه توزیع کوي. وروسته چي مو خبري ورسره وکړې نو پوه سوو چي کندهاری دئ. دري ژبو محصلینو شکایت ورته وکړ چي:

استاد! ما این گستتنر را نمی فهمیم. چرا به فارسی نه نویشته اید؟

استاد ورته وویل چي تشریح په فارسي ژبه درکوم، نو که ئې زده کولای سئ زما له د تشریح څخه ئې زده کړئ او که نه، نو تاسي پوهېږی او کار مو! کابلیانو او نورو دري ژبو غالمغال ورسره کاوه. خو دغه استاد دونه نر افغان او نر پښتون وو چي آخر ئې اخطار ورکړ چي گورئ! هغه د صنف دروازه ده او هغه هم د پوهنتون رئیس دئ او هغه هم د عالي تحصیلاتو وزیر دئ. لاس مو تر هغه ځایه خلاص! کله چي موږ پښتنو محصلینو وغوښتل چي د استاد په دفاع کي یو څهووایو ، نو استاد منع کړو او راته وئې ویل چي تاسو ځانونه مه پکښي راگیروئ، آخري کال مو دئ چي کوم تاوان در و نه رسېږي زه ئې تر عهدې وتلای سم، بېغمه اوسئ.

موږ په صنف کي څلور کندهاریان وو، او په دغه استاد مو د نورو پښتنو محصلینو په شمول سرونه ډېر جگ ول. استاد په موږ څلورو کي تر هر یوه زما سره ډېر صمیمي او راز داره وو. دا د شوروي اشغال او د مجاهدینو د جهاد موج وو. هره ورځ به د افغانستان په مختلفو سیمو کي مجاهدینو شورویانو او د هغوی داخلي گومارلو ته سخت زیانونه او تلفات اړول. دغه استاد زما سره ډېر آزادانه مجلس کاوه. کرار به راغی او زما څخه به ئې وپوښتل چي په کندهار کي څه حال دئ؟ واصفي صاحب څنگه دئ، احوال ئې لرې؟

ما به هم تازه خبرونه ورته وویل چي د کندهار څخه به یو څوک راغلی وو او تازه خبرونه به ئې راوړي ول. بیا به مي د واصفي صاحب په باره کي تازه معلومات ورکړل (دا ځکه چي واصفي صاحب زما اکا دئ، داسي اکا چي زما د پلار د اکا زوی دئ، خو موږ تر پایه په یوه کور کي اوسېدلي یو، نو ځکه تر سکه اکا هم راته دئ).

خیر، کابلیانو او نورو دري ژبو محصلینو خورا ډېر کوښښ وکړ چي دغه چاپي گستتنر بیرته په فارسي ژبه کړي خو الحمدلله چي دغه استاد دومره اوسپنیز هوډ درلود چي د هغوی ټولي نقشې او حیلې به ئې حنثی کولې او شنډولې.

یوه ورځ د نورو ورځو غوندي ما ته راغی او راڅخه وئې پوښتل چي نثارجانه! زما مضمون څنگه دئ؟ یعنی آسانه دئ که مشکل؟ ما ورته وویل چي: استاده! والله که ما تر اوسه داسي سخت مضمون لیدلی وئ. ستا مضمون خورا مشکل دئ چي ټول ارقام، احصائیې او عددونه دي. له یوې خوا زموږ له پاره فرعي مضمون دئ خو له بلي خوا فوق العاده مشکل هم دئ. آیا پوهیږئ چي دغه محترم استاد څه راته وویل؟ هغه راته وویل چي: نثار جانه! څو نمرې غواړې؟ ما په حیرانتیا سره ورته وکتل. هغه سر وښوراوه او په مطلب ئې پوه

ر دسانو ته هدایت وکړي

. ستاد ئې د څو کالو راهیسې د ډېر بوی او پراخ میدان څخه یو تنګ اطاق ته ننه ایستلی دئ. الله دې ئې ساتندوی او پالندوی اوسي. والسلام، (ن. صمد).

***

لیکوال: جبران خلیل جبران
مترجم: احمدالله څرګند

## هوښیار سپی

یوه ورځ یوې ډلې پیشیانو ته نژدې یو هوښیار سپی تېرېدی.

کله چې ښه ور نژدې سو، ګوري چې پیشیانې خپل تر خپل خورا سره اخته دي او ده ته یې هیڅ فکر نسته؛ ودرېدی.

د دوی له منځه یوه غټه او زیږه پیشي را پورته سوه، دوی ته یې شاوخوا وکتل او ویې ویل، "اې ورونو! تاسې دعاوې وکړئ؛ که مو دعاوې کولې- کولې، نو بې له شکه او هرومرو به د موږکانو باران کېږي".

سپي چې کله دا واورېدل نو له ځانه سره یې وخندل او ورڅخه رهي سو؛ ویل یې، "هی هی بېعقلانو او ړندو پیشیانو! نه یو ځای لیکل سوي، نه مې له پلار او له نیکه اورېدلي، چې په دعا سره دې د موږکانو بارانسوي وي؛ په دعا خو د هډوکو باران کېږي".

***

. بور مې
م لیدلی وي.
ې متحانونه راورسېدل نو دغه
ښه استاد د پارچې له پاره یو کوډ راکړ او چم ئې راوښود او ما هم هماغسې وکړه څو چې د نتایجو تر اعلان وروسته مې په رښتیا هم ۵۵ نمرې اخیستې وې. دا د دغه مهربان او ځوان استاد پیرزوینه وه چې زه ئې ونازولم.

هو، د دې استاد سره ما یو سمستر تېر کړ خو دومره خوارہ مجلسونه او باندارونه ئې راسره کړي دي چې په خپل پنځه کلن تحصیلي ژوند کې ئې ساری نه وینم. زه د دغه استاد ډېر شاکر، منندوی او مرهون یم. زه ځان تل د دغه استاد شاګرد بولم او هغه تل خپل استاد بولم او په دې ډېر ویاړم.

ښه ګرانو لوستونکو! آیا پوهېږئ چې دا معزز استاد څوک دئ؟ څه ګومان کوئ چې څوک به وي؟ والله توله ئې ښه ترا پېژنی. هو، دا ښاغلی تورياليي ويسا دئ!

کله چې څو کاله مخکې خبر سوم چې ويسا صاحب د کندهار د والي په حیث مقرر سوی دئ، نو زړه مې په اصطلاح ولوېدی. ځکه هغه یو اکاډمیک او علمي شخص دئ او د سیاسي او جنجالي مقام له

# شبرین




## د هدیرو بلبلان

موږ په کندهار کې دوه ډوله مساکین او غریبان لرو:

یوې ډلې فقر خپل کسب ګرځولی وي او دغه ئې کار دئ، که څه هم دی ډېرې پیسې لري بیا هم فقر کوي.

د هدیرو بلبلان هم په دغه ډله کې شمېرل کېږي. دا یوه مخصوصه ډله ده، هر ځای چې مړی سوی وي یا فاتحه وي دوی ځان ورحاضروي، د هدیرې د خیرات پاکټ او د فاتحې وریجې، غوښې او په ډک نس مړېدل غنیمت بولي. مرحوم عبدالرحیم هاتف به د هدیرو بلبلان "دوعاچیان" بلل.

یو وخت د کندهار د معارف تکړه استاد عبدالمنان خان مړ وو. د صوفي صاحب په هدیره کې ئې د شپې ښخوی. کله چې مړی ښخ سو، هاتف صاحب ویران صاحب ته وروږغ کړه چې اوس نو دوعاچیان راوبوله چې دعاوې وکړي. دا رواښاد منان خان د تکفین او تجهیز مصارف د هاتف صاحب پر غاړه ول.

دوعاچیان اکثره د خانانو په مرګ خوشحالېږي.

بله ډله مسکینان چې موږ ئې "سفیدپوشه" بولو هم سته. دا ډول مسکینان ډېر باعزته او غیرتمن خلګ دي. اکثره داسې خلګ پکښې وي چې د ماښام پر ګوله قدرت نه لري خو بیا هم .

پروسږکال په روژه ... ته لاس ورکړ، چې تر بازاره مې ورسره رخشه کې سپور سوم. د مجلس په ترڅ ئې مې رخشه وان ته وویل:

رخشه دي خپله ده؟

ده ویل: یا، زما د باجه ده. د ورځې درې سوه افغانۍ زه هغه ته ورکوم نورې چې پاتېږي هغه زه اخلم.

ما ورته وویل، چې تا ته نو څو پاتېږي؟

ده ویل چې مصرف ځني وباسم، کله سل، کله دوه سوه افغانۍ راپاته سي.

ما پوښتنه ځني وکړه: په دې نو ستا ګوزاره کېږي؟

ده ویل: د وچې ډوډۍ او شلومبو مو بسېږي.

ما پوښتنه ځني وکړه: څو اولادونه لرې؟

جواب ئې راکړ: زما دا څلور دي. اما د ورور پنځه یتیمان هم راپاته دي. د سپوږمۍ صالون په چاودنه کې مې ورور شهید سو. اوس چې اختر رانژدې دئ، کوچنیان زما څخه کالي غواړي اریان یم چې له کمه ئې کم.

ما ورته وویل: رخشه په څو ده؟

ده ویل: په یو لک کلداري هم سته، په اویا زره هم پیدا کېږي.

کله چې زما د ښکته کېدو ځای

او د کاري ټیم په همکاري، د دوست هندوستان هیواد په حمایه توانېدلي یو چې په کندهار کې د نورو انکشافي او اقتصادي پرمختګونو تر څنګ د علم په برخه کې هم ډېرې لاسته راوړنې ولرو چې ښه بېلګه ئې نن د دې پوهنتون پرانیستنه ده".

کندهار والي د خبرو په دوام زیاتوي چې یاد پوهنتون د افغانستان په کچه د زراعتي علومو او ټکنالوژۍ لومړنی ملي پوهنتون دئ چې د ماسترۍ او دکتورا تر کچې پورې پروګرامونه مخته وړي او هڅه به وسي چې د یاد پوهنتون د پرمختګ او پیاوړتیا له پاره ټولې لارې چارې په کار واچول سي.

د افغانستان اولسمشر جلالتماب حامد کرزي یادي غونډې ته د خبرو په ترڅ کې د دې پوهنتون پرانیستل د علم او پوهې په ډګر کې یو ستر او خورا مهم ګام وباله او یادونه ئې وکړه چې په دې پوهنتون کې به د ټول افغانستان په کچه د ماسترۍ تر کچې پورې رسېدلي کسان زده کړې وکړي.

اولسمشر زیاته کړه چې د افغانستان په کچه د کرهنې پوهنتون له پاره زیاته اړتیا لیدل کېده او له هندي چارواکو سره ئې درې کلونه وړاندې د دې پوهنتون د جوړېدو په اړه خبرې کړې وې خو د وزیرانو شورا تر تایید وروسته ئې دغه مرکز په کندهار کې جوړ کړ.

اولسمشر د هندوستان له لورې د یاد پوهنتون حمایه کېدل له افغانستان سره د هند د ټینګو اړیکو د دوام په معنا یاد کړ او یادونه ئې وکړه چې د افغانستان او هندوستان تر منځ به دوستانه اړیکې نورې هم ټینګې او پخې سي.

د اولسمشر په خبره هندوستان د افغانستان د پوهې په لوړولو کې هغه رول لوبولی چې په هیڅ ډول سترګې نه سي ځنې پټېدلای.

د هندوستان د بهرنیو چارو وزیر سلمان خورشید غونډې ته په خپله تاریخي وینا کې د یاد پوهنتون جوړېدل د افغانستان له پاره ډېر اړین وباله او یادونه ئې وکړه چې افغانستان یو زراعتي هیواد دئ یاد پوهنتون به د نوموړي هیواد زراعت ته وده او پرمختګ ورکړي.

نوموړي د هند او افغانستان تر منځ دوستي ډېره زړه او تاریخي وبلله او کندهار ئې د افغانستان د امپراتورانو، شاهانو او ادیبانو د زانګو په نوم ونوماوه او یادونه ئې وکړه چې کندهار د مغل او شاه جهان د زوکړې ځای دئ چې په خبره ئې له همدې کبله د هند او افغانستان تر منځ دوستي پېړیو ته رسېږي.

ښاغلي خورشید له افغانستان او په ځانګړي ډول له کندهار سره د یاد پوهنتون د حمایې تر څنګ د هر اړخیزو مرستو ژمنه هم وکړه.

د افغانستان د لوړو زدکړو وزیر عبیدالله عبید له هغو ټولو کسانو څخه چې د دې پوهنتون د جوړېدو په برخه کې ئې هلې ځلې تر سره کړې ستاینه او مننه وکړه.

***

# Kandahar

Bi-Monthly Magazine of Kandahar information & culture Department

د افغانستان لنډ تاریخ

لیکوال:
علامه عبدالحی حبیبي
مترجم
استاد عبدالرؤف بېنوا











د افغانستان لنډ تاریخ، د علامه حبیبي لیکنه
او د استاد بېنوا ترجمه په نوي او بشپړه بڼه